


افغان پوهنتون

د اسلامي ثقافت څانګه



# الغزو الفکري

# فکري استعمار



لیکوال:

پوهنمل زاهدي احمدزی

افغان پوهنتون

د اسلامي ثقافت څانګه

## الغزوالفکري

---

# فکري استعمار

---


لیکوال

پوهنمل زاهدي احمدزی





## کتاب پېژندنه

| | | |
|---|---|---|
| د کتاب نوم | :: | فکري استعمار |
| لیکوال | :: | **پوهنمل زاهدي احمدزی** |
| خپرندوی | :: | مسلم خپرندویه ټولنه - جلال آباد |
| چاپ وار | :: | دولسم ځل |
| کمپوز | :: | عبدالهادي اثر |
| چاپ شمیر | :: | ۱۱۰۰ ټوکه |
| چاپ لړ | :: | ۲۱۸ |
| چاپ کال | :: | ۱۳۹۵ هـ ش |





**د ترلاسه کېدو ځای**

**مسلم کتاب پلورنځی**

پته: اسحاقزی مارکېټ، لاندینی پوړ، جلال آباد ښار، افغانستان

اړیکشمیرې: ۰۷۰۶۲۶۲۴۶۳ - ۰۷۷۶۰۰۶۴۱۶

برېښنا لیک: muslim-pub@yahoo.com

# لړلیک

موضوع | مخ

# لړلیک

# لړلیک

موضوع | مخ

# لړلیک

موضوع | مخ

## لړ لیک

موضوع | مخ

# لړلیک

موضوع | مخ

# لړلیک

# لړلیک

موضوع | مخ

# لړلیک

# لړلیک

# لړلیک

# لړلیک

| موضوع | مخ |
|---|---|
| ۵- ترور او اختناق: | ۲۶۹ |
| ۶- د کمونستي ایډیالوژۍ په زور تحمیلول: | ۲۶۹ |
| ۷- دماګوژي (Demagogic): | ۲۶۹ |
| ۸- د دیني شعایرو او قوانین ختمول | ۲۶۹ |
| ۹- د انتقاد مخنیوی: | ۲۷۰ |
| ۱۰- لا قانونیت: | ۲۷۰ |
| ۱۱- فحشا خپرول: | ۲۷۰ |
| ۱۲- شوینیزم: | ۲۷۱ |
| په ټوله نړۍ کې د کمونستانو شمېره | ۲۷۲ |
| هېوادونه: | ۲۷۲ |
| انحرافي مذهب | ۲۷۴ |
| د مخنیوي تدابیر | ۲۷۵ |
| الف: سالمه روزنه: | ۲۷۵ |
| ب: تعلیمي نصاب: | ۲۷۵ |
| ج: د ټولنې اصلاح: | ۲۷۶ |
| د: ثقافت: | ۲۷۶ |
| هـ: اسلامي اخلاق: | ۲۷۶ |
| و: فکري استعمار: | ۲۷۶ |

# فکري ښکېلاک

## سریزه

الحمد لله الذی خلق الانسان ولم یکن شیئا مذکورا، فهداه السبیل اما شاکرا و اما کفورا، والصلاة والسلام علی افضل الرسل محمد الذی ارسله للخلق بشیرا و نذیرا، و علی آله الطیبین و اصحابه الطاهرین و علی من اقتفی آثره الی یوم دمر الله فیه کل شئ تدمیرا و بعد!

غزو فکري یا په بل عبارت کفري ښکېلاک د طاغوتي ځواکونو هغه معنوي جنګ دی، چې یوازې او یوازې د اسلامي امت په خلاف پیل کړای شوی دی، له همدې امله د اسلامي امت پر علماوو، روڼ اندو او زیرکو مجاهدو دعوتګرانو لازم دی، چې په دې هکله د خپل وس او پوهې په انډول ددغه مهلک او تباه کوونکي عقیدوي توپان د مخنیوي لپاره پاڅون وکړي او د خپل توحیدي او اسلامي کفر لړزوونکي رسالت او هاند له تاړاکونو څخه وژغوري.

د دعوت او جهاد پوهنتون د همدغه رسالت په احساس سره خپل مومن او مسلمان امت د نوي نړیوال کفري ښکېلاک د ثقافت په ځانګه کې د غزو فکري یا په بل عبارت د فکري استعمار تر عنوان لاندې د مسلمانو ځوانانو د تنویر لپاره د لازمي درسي مضمون په توګه د خپلو عالي زده کړو په نصاب کې شامل کړی دی.

الله تعالی دې مثمر او ګټور وګرځوي.

امین

زاهدي احمدزی

# غــزو فکــري

# فکـري استعمار

**تعریف:**

غزو عربي لفظ دی او عربي ژبدود پوهانو ویلي دي، دغه لفظ د غزا یغزو غزواً د باب مصدر دی، چې د لغت په لحاظ په دغو لاندینیو معناوو سره راځي او هره یوه د اړوندې موضوع مطابق استعمالولی او اخیستلی کېږي.

۱- د یوې خبرې او یا یو شي د پوهېدلو په معنی، لکه چې ویل کېږي (عرفت ما یغزی من هذه الکلام).[۱]

۲- د یرغل کولو او پر یو چا د هجوم وروړلو په معنی، لکه چې په یو حدیث شریف کې د مکې مکرمې په هکله رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: لَا يُغْزَى هَذَا يَعْنِي بَعْدَ الْيَوْمِ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ یعني مکه: اي لا تعود دار کفر تغزي علیه.[۲]

ژباړه: پر مکه مکرمه له نن څخه وروسته بیا تر قیامت پورې یرغل کولی نه شي؛ ځکه چې بیا له نن څخه وروسته مکه مکرمه دار الکفر نه ګرځېږي، چې مسلمانان د جهاد په نیت یرغل پرې وکړي.

۳- د چمتو کولو او تیارولو په معنی، لکه چې ویل کېږي:

غزه، اي جهزه للغزو.[۳]

ژباړه: فلانی یې د غزا لپاره مجهز چمتو او تیار کړی.

۴- د مهلت ورکولو په معنی: لکه چې ویل کېږي: فلان امهله.[۴]

---

۱ - معجم الوسیط: ۶۵۲/۲.

۲ - النهایة في غریب الحدیث والاثر: ۳۶۶/۳ مخ.

۳ - المنجد: ۵۵۰ مخ.

۴ - مصباح اللغات: ۵۹۸ مخ.

ژباړه: فلاني شخص ته يې په فلاني کار کې مهلت ورکړ.

۵- د يو شي د مختص کولو په معنی، لکه چې ويل کېږي: بفلان اختصه من بين اصحابه.[۱]

ژباړه: فلانی شخص د هغوی د ملګرو له جملې څخه وټاکلی شو او مختص کړای شو.

**اصطلاحي تعريف:** د غزو اصطلاحي تعريف عربي ژبپوهانو داسې کړی دی: هو ان تظل الشعوب اضعيفة او النامية، خاضعة لنفوذ القوي المعادية لها.

غزو په اصطلاح کې د يو ځواکمن او مستبد ملت له پلوه د کوچنيو، وروسته پاتې يا د هغو ملتونو په ولکه کې راوستل دي، چې وده کوونکي او د پرمختګ په حالت کې وي، دغه کوچني ملتونه د ځواکمن او زبېښاکي ملت د نفوذ لپاره تابع وي او د هغه هر ډول حکم ته سر ښکته کوونکي او منونکي وي.

هرڅه چې مستبد ملت وغواړي، هغه پر دغو محکومو ملتونو قبلوي او د خپلو اهدافو او مقاصدو د ترلاسه کولو په اراده پر هغوی خپل استبدادي پلانونه تطبيقوي.

**متعارفه اصطلاح:**

د يرغل لپاره په عربي ژبدود کې د غزو فکري اصطلاح نوې ده او متعارفه اصطلاح چې خلک ورسره اشنا دي، هغه د استعمار اصطلاح ده، چې په پښتو ژبدود کې ښکېلاک ورته ويل کېږي او په انګرېزي ژبه کې Colonialism کلنيالېزم ورته ويلی شي.

د استعمار تعريف هم پوهانو کټ مټ د غزو فکري د تعريف په څېر کړی

---

۱- الغزو الفکري: ۸ مخ.

دی، یعنې د پیاوړي ملت له پلوه پر نورو ملتونو یرغل کول او د هغوی پر هرڅه یرغل کول او د هغوی پر هرڅه قبضه کول.

**تاریخ:** په تاریخي لحاظ په بشري نړۍ کې د لومړي ځل لپاره د عیسی علیه السلام له پیدا ایښت څخه (۱۱۰۰) کلونه دمخه استعمار تبارز کړی دی، چې له نن څخه (۳۰۹۸) درې زره اته نوي کلونه دمخه وو او په بشري اقوامو کې لومړی هغه قوم او ملت چې د استعمار بدمرغه پروسه یې ایجاد کړې ده فنیقیان وو.

فنیقیانو لومړی د مدیترانې د حوزې په استعمارولو لاس پورې کړ، چې تر نهمې قبل المسیح پېړۍ پورې یې خپلو استعماري یرغلونو ته دوام ورکړ، د فنیقیانو ستر استعماري مرکز «کارتاژو» ییا له فنیقیانو څخه لږه موده وروسته یونانیانو هم پر استعمار لاس پورې کړ او د اروپا بلکې د ټولې بشري نړۍ د استعمار او استبداد تاریخ له هماغه وخت څخه پیلېږي.[1]

**ډولونه یې:**

پوهانو او څېړونکو په مطلق ډول استعمار یا په نوي عربي اصطلاح غزو په دوه ډوله وېشلی دی، یو زوړ استعمار دی او دویم ډول نوی استعمار دی، چې په انګرېزي ژبه کې Noo-Colonialism نیوکلنالېزم، یعنې نوی استعمار ورته ویلی شي، د زاړه او نوي استعمار په منځ کې توپیر دا دی، چې زوړ استعمار او استعماري ملتونو د کمزورو ملتونو پر مادي امورو او مادیاتو قبضه کوله او د محکومو ملتونو عقیدوي، کلتوري او تهذیبي خصوصیاتو ته یې هیڅ ډول تعرض نه کاوه؛ بلکې د هر مستعمره کړي ملت معتقداتو ته یې په درنده سترګه کتل او د هغوی احترام یې کاوه.

مګر نوی استعمار چې په هر نوم او هره بڼه کې وي، نه یوازې دا چې د مستضعفو ملتونو پر هېوادونو او مادیاتو یرغل او قبضه کوي؛ بلکې له

---

۱- تاریخ الهذیب: ۱۴/۱مخ، سیاسي اصطلاحات: ۹۴مخ.

دي سره سره د محکومو ملتونو پر معتقداتو، ثقافت کلتور او تهذیب هم قبضه کوي او د محکومو ملتونو په هرڅه کې د بدلون او هر اړخیز تغیر هڅه کوي.[۱]

دویم توپیر یې دادی، چې زاړه استعمار به نېغ په نېغه پر یو ملت یرغل کاوه، مګر نوی استعمار پخپلې شیطاني ځیرکتیا سره دغه دریځ بدل کړ او پر وروسته پاتې او کمزورو ملتونو په منافقانه توګه د دوستۍ، مرستې او زړه سوي په نومونو غیر مستقیم، د مادي او عقیدوي استعمار پلانونه پیل کوي، د تجارت، قرض ورکولو او بشري همدردۍ په نومونو خپل اهداف سرته رسوي.

درېیم توپیر یې دا دی، چې د زاړه استعمار قیادت داسې ذواتو پر غاړه لاره، چې هغوی سیاسي وګړي وو، خپل حاکمیت به یې پر محکومو ملتونو د برچې په زور په خلکو تحمیلاوه، مګر د نوي استعمار قیادت د دوو سترو امتونو، یهودیانو او مسیحیانو د مذهبي رجالو په لاس کې دی، چې دغه دواړه د محکومو ملتونو مذهبي او عقیدوي اړخونو ته زیات متوجه دي او د نورو ټولو بشري ملتونو په پرتله اسلامي امت په خاصه توګه د هغوی د یرغلونو هدف ګرځولی شوي دي، ان تر دې چې په دې پېړۍ کې خو دغه استعماري ځواکونه په بشپړه توګه د اسلامي امت تباهۍ ته متوجه دي.

له همدې کبله زموږ د بحث او څېړنې موضوع هم د اسلام د دښمنو اسلامي ځواکونو د هغو تکتیکونو، پلانونو او سیاستونو ته پاملرنه او یادونه ده، چې د نوي استعمار مخکښانو د اسلامي امت د تباهۍ لپاره عیار کړي او په کار اچولي دي او بیا په خاصه توګه د هغو وسایلو ذکر کول، چې د طاغوت ګوند د اسلامي امت د فکري استعمار او بېلولو په خاطر یې عیار او تیار کړي دي.

---

۱- فرهنګ علوم سیاسي: ۴۲ مخ.

**د نوي استعمار تاریخ:**

نن چې اسلامي امت د نوي استعمار د طاغوتي ځواکونو له پلوه له هر راز ستونزو، هر اړخیزو ربړونو، کړاوونو او مشکلاتو سره لاس او ګرېوان دی او په مختلفو نومونو د کفري یرغلګرو یرغلونو د الله تعالی دغه سره ځمکه سور تنور پرې ګرځولې ده، دغه ټولې ناخوالې او ازموینې اوسنۍ نه دي او نه دغه ښکېلاکي اسلام دښمنه ځواکونه اوسني دي؛ بلکې که تاریخ مطالعه کړای شي، نو دا به جوته شي، چې له اسلام او مسلمانانو سره د طاغوت د پلویانو دغه وحشیانه او معاندانه چلن ډېر پخوانی دی.

په (۶۱۰) مسیحي کال کې د اګست په شپږمه د ربیع الاول د میاشتې له دولسمې نېټې سره سم د دوشنبې په شپه کله چې د الله تعالی له پلوه د خاتم الانبیاء محمد صلی الله علیه وسلم په نېکمرغه بعثت سره د اسلام د مقدس دین ابدي او نړیوال ځلانده لمر طلوع وکړه، نو له هماغه مهال څخه بشري ټولنه پردو بېلا بېلو او متضادو ګوندونو باندې ووېشلی شوه.

یوه هغه ډله او ګوند و، چې د دغه نېکمرغه لمر په راختلو سره یې د غړو زړونو د سترګو نور له پخوا څخه څو چنده زیات شو.

د الهي توحید حق دعوت ته یې لبیک ووایه او د زړه له کومې یې د اسلام حق دین په بشپړه توګه قبول کړ او ددغه حق فطري الهي دین څخه چې له مودو څخه یې راتګ ته سترګې په لار وو، د دفاع، دعوت او خپرولو لپاره یې د خپلو سرونو، مالونو، اولادونو او تاټوبي په قربانۍ ورکولو سره له امام الانبیاء محمد صلی الله علیه وسلم سره بیعت وکړ.

ددغه مبارک ګوند غړي الله تعالی مومنان او مسلمانان ونومول، هغوی ته یې د افضل الامم غوره خطاء عطا کړ او دغه ټولګی یې د حزب الله په نوم سره مسمی کړ، ددغه ویاړلی ګوند د غړو مواصفات یې پخپل معجز فصیح او بلیغ مبارک کتاب قران کریم کې داسې معرفي کړې دي:

﴿لَا تَجِدُ قَوۡمًا یُّؤۡمِنُوۡنَ بِاللّٰهِ وَ الۡیَوۡمِ الۡاٰخِرِ یُوَآدُّوۡنَ مَنۡ حَآدَّ اللّٰهَ وَ رَسُوۡلَهٗ وَ لَوۡ کَانُوۡۤا اٰبَآءَهُمۡ اَوۡ اَبۡنَآءَهُمۡ اَوۡ اِخۡوَانَهُمۡ اَوۡ عَشِیۡرَتَهُمۡ ؕ اُولٰٓئِکَ کَتَبَ فِیۡ قُلُوۡبِهِمُ الۡاِیۡمَانَ وَ اَیَّدَهُمۡ بِرُوۡحٍ مِّنۡهُ ؕ وَ یُدۡخِلُهُمۡ جَنّٰتٍ تَجۡرِیۡ مِنۡ تَحۡتِهَا الۡاَنۡهٰرُ خٰلِدِیۡنَ فِیۡهَا ؕ رَضِیَ اللّٰهُ عَنۡهُمۡ وَ رَضُوۡا عَنۡهُ ؕ اُولٰٓئِکَ حِزۡبُ اللّٰهِ ؕ اَلَاۤ اِنَّ حِزۡبَ اللّٰهِ هُمُ الۡمُفۡلِحُوۡنَ ﴿۲۲﴾﴾. (المجادله/۲۲)

ژباړه: ته به هیڅ داسې یو قوم ونه مومې، چې د هغه وګړو په الله تعالی او د قیامت په ورځ ایمان راوړی وي او بیا له هغو کسانو سره به دوستي کوي، چې هغوی له الله تعالی سره او د الله تعالی له رسول سره مخالفت کوي، که څه هم دغه مخالفین د مومنانو خپل پلرونه وي او زامن یې وي او یا یې ورونه وي او یا د دوی خپلوان وي، دغه قوم چې وګړي یې د الله تعالی او دده د رسول له دښمنانو سره دوستي نه کوي، الله تعالی د دوی په زړونو کې ایمان لیکلی دی او دوی یې له خپل لوري څخه په غیبي فیض او مدد سره ځواکمن کړي دي.
او دغه خلک به الله تعالی داسې جنتونو ته داخل کړي، چې د هغو له مانیو لاندې به ویالې بهېږي او دوی به تل ترتله په کې وي.
الله تعالی له دوی څخه راضي شوی دی او دوی له الله تعالی څخه راضي شول، د همدغو وګړو امت او ټولنه د الله تعالی حزب دی او خبردار شه، چې د الله تعالی د حز غړي بېشکه همدوی مفلحین،مراد ته رسېدونکي او بریالي دي.
دویمه ډله او ګوند د هغو وګړو دی، چې د دغه بختور لمر په طلوع او نور سره د هغوی د زړونو سترګې بېخي ړندې او بې نوره شوې، بدمرغي یې په برخه شوه، پر عقلونو او زړونو یې شیطان ولکه وکړه او د شیطان په لمسه یې له اسلام او د الله تعالی له ګوند سره دښمني پیل کړه او د دغه ګوند

وګړي الله تعالی د شیطان دوستان ونومول او د دوی مجتمع او ټولنه یې د شیطان حزب ونوموله، لکه چې فرمایلي یې دي:

﴿إِنَّ الَّذِينَ يُحَادُّونَ اللَّهَ وَرَسُولَهُ أُولَٰئِكَ فِي الْأَذَلِّينَ ۝٢٠ اسْتَحْوَذَ عَلَيْهِمُ الشَّيْطَانُ فَأَنْسَاهُمْ ذِكْرَ اللَّهِ ۚ أُولَٰئِكَ حِزْبُ الشَّيْطَانِ ۚ أَلَا إِنَّ حِزْبَ الشَّيْطَانِ هُمُ الْخَاسِرُونَ ۝١٩﴾. (المجادله/۱۹- ۲۰)

ژباړه: په تحقیق سره هغه وګړي چې له الله تعالی څخه او د الله تعالی له رسول محمد صلی الله علیه وسلم څخه مخالفت کوي، بېشکه دغه وګړي د ذلیلانو په جملې کې دي، پردوی شیطان برلاسی «غالب» شوی دی، نو دوی د الله تعالی یاد هېر کړی دی، همدغه وګړي د شیطان د حزب غړي دي، خبردار شئ، چې په تحقیق سره د شیطان د حزب غړي همدوی زیانکاران دي.

هماغه وو چې د حق او باطل، د شیطان ګوند د غړو او د الله تعالی د ګوند د غړو ترمنځ مخالفتونه منځته راغلل او د دغو مخالفتونو پیل هم د شیطان د ګوند د غړو له پلوه پیل شو، چې په اوسنۍ اصطلاح کې کفري استعمار هم ورته ویلی شو.

د اسلام د مقدس دین په لومړیو اوخارو پیروانو راز راز مشکلات راوړل پیل کړل او د شیطان د خوشحالتیا په خاطر یې د مومنانو په مخه کې د هیڅ ډول خنډونو له اچولو څخه دریغ نه کاوه.

**هدف:** له پیل څخه د اسلامي امت په مقابل کې د شیطان د ګوند مخالفت ولې او د څه لپاره وو؟

مقصد او مطلب یې څه وو؟

او له مومنانو سره یې ولې دښمني پیل کړه، په داسې حال کې چې د اسلام په پیل کې د الله تعالی په ګوند کې داسې کسانو هم دغړیتوب شرف او نېکمرغي ترلاسه کړه، چې په خپلوۍ، نسب او قومیت کې له دغو اسلام

دښمنو سره شریک وو، زامن، پلرونه، تربرونه او سره ورونه وو، نو بیا ولې دوی د دغو حقپالو وګړو په مقابل کې میرڅمن صف ونیو؟

له مومنانو سره د طاغوت د ګوند غړو؛ ځکه دښمني کوله، چې دوی فطري دین قبول کړ، د شیطان پر قدمونو له تللو څخه جار وتل، د بې شمېرو خدایانو او بتانو د عبادت کولو پرځای یې د یو الله تعالی چې په واقعي توګه د ټولو کایناتو، خالق، مالک او رب دی عبادت پیل کړ او د ایکي یو الله تعالی عبادت ته یې نور خلک هم دعوت کول.

او د مشرکانو، کافرانو او د شیطان د ګوند غړو د مومنانو دغه توحیدي عقیده او توحید ته دعوت زغملی نه شوای، همدغه د هغوی د دښمنۍ علت وو او د همدغه علت له مله یې له مومنانو سره د اماره نفس او طاغوت په لمسه دښمني پیل کړه او په دغه دښمنۍ کې خپل او بېګانه ورته برابر او یو شان وو.

د دویمې پوښتنې چې د اسلام دښمنو قوتونو لـه دغـه معاندانه قیـام څخه هدف څه وو؟

ځواب دا دی، چې دوی ټولو دا غوښتل او غواړي، چې د الله تعالی نور یعنې اسلام په ځمکه کې له منځه یوسي، دوی ټول پخواني کافران او مشرکان وو او که اوسني استعماري او کفري ځواکونه دي، همدغه ایکي یو مشترک مقصد او هدف لري، چې بشري ټولنه د الله تعالی له حق دین څخه واړوي او دغه الهي نور په بشریت حکومت ونه کړي، لکه چې الله تعالی فرمایلي دي:

﴿يُرِيدُونَ أَن يُطْفِـُٔوا۟ نُورَ ٱللَّهِ بِأَفْوَٰهِهِمْ وَيَأْبَى ٱللَّهُ إِلَّآ أَن يُتِمَّ نُورَهُۥ وَلَوْ كَرِهَ ٱلْكَٰفِرُونَ ۝٣٢﴾. (التوبه/۳۲)

ژباړه: دوی اراده لري، چې د الله تعالی نور پخپلو خولو مړ کړي او الله تعالی نه خوښوي، مګر دا چې خپل زور بشپړ کړي او په ټوله نړۍ او

کايناتو کې يې رڼا تيته او خپره شي، که څه هم کافران ددغه حق دين خپرول او پوره کول بد ګڼي.
او د صف په سورت کې الله تعالی په دې هکله داسې فرمايلي دي:

﴿يُرِيْدُوْنَ لِيُطْفِـُٔوْا نُوْرَ اللّٰهِ بِاَفْوَاهِهِمْ وَ اللّٰهُ مُتِمُّ نُوْرِهٖ وَ لَوْ كَرِهَ الْكٰفِرُوْنَ﴾. (الصف/۸)

ژباړه: کافران اراده لري او غواړي، چې پخپلو خولو سره د الله تعالی نور مړ کړي او الله تعالی د خپل نور بشپړ کوونکی او پوره کوونکی دی، که څه هم کافران ددغه نور پوره کول بد او ناوړه ګڼي.
مطلب دا چې کفري ښکېلاک نوی وي او که زوړ، برابره خبره ده، که په هر يو نوم باندې وي او که په هره سيمه کې وي، له اسلامي امت سره د دوی د دښمنۍ کولو ايکي يو مقصد دی او هغه دا چې د اسلام مقدس دين او د قران قانون حکومت ونه کړي او بشري نړۍ د اسلام له حاکميت څخه محرومه کړي او لرې يې ورڅخه وساتي.
د طاغوت د حکومت او د طاغوت د پيروانو قوانين پلي کړي او بشريت د تباهۍ په لوري سوق کړي، د همدغه مقصد په تکل اسلام دښمنو ځواکونو د اسلام او مسلمانانو په خلاف د جنګ اعلان وکړ، مګر الله تعالی د اسلام د حق دين پيروانو ته زېری او ډاډ ورکړی دی، چې الله تعالی به د اسلام حق دين پر نورو ګردو باطلو اديانو غالبوي او ددغه حق دين پيروان به کاميابوي، لکه چې فرمايلي يې دي:

﴿هُوَ الَّذِيْٓ اَرْسَلَ رَسُوْلَهٗ بِالْهُدٰى وَ دِيْنِ الْحَقِّ لِيُظْهِرَهٗ عَلَى الدِّيْنِ كُلِّهٖ وَ لَوْ كَرِهَ الْمُشْرِكُوْنَ﴾. (الصف/۹)

ژباړه: الله تعالی هغه ذات دی، چې خپل رسول محمد صلی الله عليه وسلم يې په هدايت او سمه لاره او حق دين سره مبعوث کړی دی، ددې لپاره چې

الله تعالی خپل دغه حق دین پر نورو ټولو باطلو ادیانو غالبه کړي، که څه هم مشرکان د اسلام د حق دین برلاستیا غلبه او حاکمیت بد او ناوړه ګڼي.
دا ځکه چې دغه دین نور دی، داسې نور چې بشریت د دنیا او اخرت ګټو او منافعو ته رهبري کوي، دا دین دومره پراخه نور او رڼا لري، چې خپل پیروان د جهالت، کفر او شرک له تورتم څخه د عرفان او توحید رڼا او نوراني دنیا ته رابهر کوي، د بشریت سیادت او قیادت او د کایناتو تسخیر ورته ودیعت کوي او ددغه بختور الهي نور په لرلو سره نه یوازې دا چې دوی پخپله د هلاکت په کندو کې له غورځېدو څخه ژغورل کېږي، بلکې نورو ته په دعوت سره هغوی هم سمې لارې ته برابروي، څو هغوی هم د شیطان له جوړو کړیو، تباه کوونکو کندو څخه وژغورل شي.
الله تعالی فرمایلي دي:

﴿ اَوَمَنْ كَانَ مَيْتًا فَاَحْيَيْنٰهُ وَجَعَلْنَا لَهٗ نُوْرًا يَّمْشِيْ بِهٖ فِي النَّاسِ كَمَنْ مَّثَلُهٗ فِي الظُّلُمٰتِ لَيْسَ بِخَارِجٍ مِّنْهَا ۭ كَذٰلِكَ زُيِّنَ لِلْكٰفِرِيْنَ مَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ﴿١٢٢﴾ ﴾.

(الانعام/١٢٢)

ژباړه: ایا هغه څوک چې د ناپوهۍ او کفر په مرګ مړوي، نو موږ یې په اسلام سره ژوندی وګرځوو او د هدایت مشال ورته ورکړو، چې د هغه په رڼا او نور سره چې خلکو کې تګ کوي، د هغه چا په څېر دی، چې په تیارو کې او د جهل او کفر په تورتم کې پروت وي او له هغه څخه وتونکی نه وي؛ بلکې دواړه سره برابر نه دي، همداسې د شیطان له پلوه کافرانو ته هغه څه ښایسته کړای شوي دي، چې دوی یې کوي.

***

# مراحل

له اسلام او اسلامي امت سره د کفري او طاغوتي نړۍ دښمني او بیا د دغې نه پای ته رسېدونکي دښمنۍ عواقب پر مطلب د پوهېدلو د اسانتیا په خاطر په عمده توګه پر درې مراحلو وېشل کېږي، چې هر پړاو یې د کیفیت او کمیت له نظره له نورو سره توپیر لري، نو له بحث او مضمون څخه د نتیجې د ترلاسه کولو لپاره هره مرحله تر ځانګړي عنوان لاندې وړاندې کولی شي او دا هغه مراحل دي، چې د اسلامي امت د ازموینو، غفلتونو، بریالیتوبونو، پرمختګونو او تنزلاتو ترجماني کوي او د طاغوتي ښکېلاکي او زبېښاکي ځواکونو له وحشت، بربریت څخه مملو او ډک دي. په لومړي پړاو کې د مومنانو د زغم، په دویم پړاو کې د اسلامي امت د حماسو، اتلوالیو او شهامتونو او پېرزوینو انځورونه کوي او درېیم پړاو یې د اسلامي امت د بې ثباتۍ، عیاشۍ، غفلت او له خپل عظیم رسالت څخه د مخ ګرځولو او د طاغوتي استعمارګرانو د عیارۍ، چالاکۍ او د اسلامي تولنې د هر اړخیزې تباهۍ په خاطر د هر راز موامرو او دسیسو زړه دردوونکې کیسې بیانوي.

**لومړۍ مرحله:**

دغه مرحله چې له (۶۱۰) مسیحي کال، یعنې د محمد صلی الله علیه وسلم له نبوت څخه پیل کېږي او په (۶۲۲) مسیحي کال پای ته رسېږي.

په دغه مرحله کې د خاتم الانبیاء صلی الله علیه وسلم په ګډون د اسلام تولو پیروانو د الله تعالی د رضامندۍ په تکل او د اسلام د مقدس دین د پرمختګ په هیله د اسلامي دعوت په لاره کې د طاغوت د ګوند د پیروانو هر راز تعذیبونو ته خپلې مبارکې فولادي سینې سپر کړې وې، هیڅ ډول

عکس العمل یې نه ښکاره کاوه؛ ځکه چې هغوی ته د حکیم الله تعالی همداسې حکم وو.
په لومړۍ مرحله کې اسلام دښمنو پرګنو د خپل وس په اندول د اسلام د مقدس دین د له منځه وړلو لپاره خپلې ټولې حربې په کار واچولې او دا زیار یې ویسته، چې د اسلام مقدس نور د نطفه او د تبارز په لومړي ټاټوبي کې خنثی کړي او د خپل دغه شوم هدف لپاره نه یوازې دا چې په مکه کې دننه یې پر مسلمانانو د ژوند کولو ټولې لارې تړلې وې، خپل کورونه یې پرې سور تنور ګرځولی وو؛ بلکې هغوی ته یې له بهر څخه مکې ته له راتلونکو حجاجو او سوداګرانو او سیاسي وفودو سره لیدلو کتلو او د خپل دعوت وړاندې کولو ته هم اجازه نه ورکوله.
سربېره پردې د مکې اسلام دښمنو مستکبرینو او د طاغوت د ګوند غړو د اسلام په نور لومړي منورین دېته هم نه پرېښودل، چې له مکې څخه کوم بل هېواد ته هجرت وکړي.
ځکه د هغوی دا باور و، چې که مسلمانان هر هېواد ته لاړ شي، نو هغوی د خپل حق دین په دعوت سره نړیوال قیادت ترلاسه کوي او پردې باندې همدوی او هم ددوی رهبر شیطان ډېر خپه کېدل.
له همدې کبله کله چې په (۶۱۵) مسیحي کال کې د نبوت له پنځم کال سره سم د رجب المرجب په میاشت کې مسلمانانو له مکې څخه حبشې ته هجرت وکړ نو د مکې مشرکانو خپل دوه تنه استازي عمرو بن عاص او عبدالله ابن ابي ربیعه د حبشې «صومالیه» نصراني پاچا نجاشي ته ولېږل، څو هغه مهاجر مسلمانان له خپل هېواد څخه وشړي، خو هغوی له نېکه مرغه په دغه موخه کې بریالي نه شول.[1]

---

۱- سیرت ابن هشام: ۱/ ۳۴۴مخ، طبقات ابن سعد: ۱/۱۳۶مخ، انساب الاشراف: ۱/۸۹مخ، جوامع السیرت: ۸۵مخ، خیار المقول في سیرة الرسول: ۴۰ مخ.

د مکې دغو اسلام دښمنو هیڅ داسې حربه پرېنښوده او د مسلمانانو د ربړولو په ذریعه یې صرفه ونه کړه، چې په لاس ورتله. ان تردې چې د مظلومانو پر شهادت یې اقدام وکړ، چې نمونه یې سمیه رضي الله تعالی عنها وه او په دومره ظلم یې هم بسوالی ونه کړ؛ بلکې په (۶۱۷) مسیحي کال کې د نبوت په (۷) کال خاتم الانبیاء یې له خپل تول کهول سره له مکې څخه خارج کړ او په شعب ابي طالب «بطحی» کې چې له کعبې مبارکې څخه په درې کیلو مترۍ کې شمال لوېدیځ ته یوه غرنۍ دره وه، کلابند کړي وو او هیڅ شی یې نه ورته پرېښودل، پوره درې کلونه یې دغې محاصرې ته دوام ورکړی وو او کله چې پردې هم د کافرانو زړه یخ نه شو، نو د شیطان په لمسه یې د محمد صلی الله علیه وسلم د قتل شومه او بزدلانه پرېکړه وکړه، چې الله تعالی تورمخي نامراده او ناکام کړل.

**دوېمه مرحله:**

د اسلام او اسلامي امت په خلاف د کفري او طاغوتي استعمارګرانو د هر اړخیزو یرغلونو دغه مرحله له (۶۲۳) مسیحي کال له (۲) هجري سره سم پیل کېږي او په (۶۶۰) هجري قمري له (۱۲۷۰) مسیحي کال سره سمه ختمېږي، یعنې دغه مرحله په مدینه منوره کې د لومړني اسلامي حکومت له قیام سره سم منځته راغله.

دغه مرحله د لومړي پړاو په پرتله زیاته سخته وه، د دوېمې مرحلې هغه خصوصیات چې له لومړۍ مرحلې څخه یې جلا کوي، په لاندې کرښو کې خلاصه کېږي:

**الف:** له لومړۍ مرحلې سره د دوېمې مرحلې یو ستر توپیر دا و، چې په لومړۍ مرحله کې لکه څرنګه چې د مسلمانانو شمېر لږ وو، دغه راز دښمنان یې هم محدود وو او یوازې په مکه مکرمه او د هغې په چاپېریال کې هستوګنو مشرکانو د عناد او دښمنۍ ملا ورته تړلې وه، مګر په دوېمه مرحله کې د طاغوت د ګوند په شمېر کې زیاتوالی راغی، یهودیانو او

نصرانیانو هم د مشرکانو په ملاتړ د اسلام او مسلمانانو په خلاف قیام وکړ او د اسلام د ژوند ښښونکي نور په مړ کولو کې دغه دواړه ملتونه هم ورسره مله شول، چې په دې اساس په لومړۍ مرحله کې یوازې شرکي ملت له مسلمانانو سره دښمني کوله خو په دوېمه مرحله کې درې ملتونو، یهودیانو، نصرانیانو او مشرکانو ټولو پاڅون وکړ.

ب: دوېم توپیر یې دا و، چې په لومړۍ مرحله کې مسلمانان د دښمنانو له اقتصادي او سیاسي فشارونو سره مخامخ وو، مګر په دوېمه مرحله کې نظامي فشار هم پرې زیات شو او مشرکانو وسلوال جنګ ورسره پیل کړ.

ج: درېیم توپیر یې دا و، چې په لومړۍ مرحله کې مسلمانانو اداري مرکزیت نه لاره، مګر په دوېمه مرحله کې الله تعالی دغه نعمت هم ورته عطا کړ او د هجرت په لومړي کال له (۶۲۳) مسیحي کال سره سم د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم تر مدبرانه او پیغمبرانه بې سیاله قیادت لاندې یې د حجاز په دوېمه لویه سیمه مدینه منوره کې د اسلامي حکومت بنسټ کېښود او په تدریجي پرمختګ سره د یوې مدبرانه کروړلي اداري خاوندان وګرځېدل.

د: څلورم توپیر یې دا و، چې په لومړۍ مرحله کې اسلامي دعوت خصوصي او محدوده بڼه لرله، مګر په دغه دوېمه مرحله کې د دغه حق، فطري او معقول دین بڼه نړیواله او عمومي وګرځېدله.

او هغه داسې چې د انبیاوو د سردار محمد صلی الله علیه وسلم له پلوه د نړۍ لرې او نژدې پاچاهانو او حاکمانو ته دعوت لیکونه ولېږل شول، قبیلوي سرداران اسلام ته دعوت کړای شول، د یهودو او نصرانیانو علمي چیلنجونو ته په عالمانه توګه غاښ ماتوونکي ځوابونه ورکړای شول او د اسلام د مقدس دین د دعوت لمن پراخه شوه، په ډله ییزه توګه خلک د اسلام په دین مشرف کېدل، ان تردې چې پېریان هم له دغه نعمت څخه برخمن وګرځېدل او د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم په اغېزمن او

معجزانه تبلیغ او دعوت سره د پېریانو یوه لویه ډله مسلمانه شوه، لکه چې په قران کریم کې په نهه ویشتمه سیپاره د جن په سورت کې پېریانو ته د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم د دعوت او د پېریانو له پلوه د دغه نېکمرغه دعوت قبلول په تفصیل سره مذکور دي.

هـ: پنځم توپیر يې دا و، چې په لومړۍ مرحله کې مسلمانانو ته د کافرانو د هر ډول مظالمو د سهنې حکم وو، مګر په دغه دوېمه مرحله کې اسلامي امت ته اجازه ورکړای شوه، چې د اسلام دښمنو د سوک ځواب په سوک ورکړي او د برچې ځواب يې په برچې وکړي، نور نو دوی ته د کافرانو د ظلمونو په مقابل کې چُپ پاتې کېدل ګناه وګڼلی شوه.

د هجرت په دوېم کال له (۶۲۴) مسیحي کال سره سم د صفر المظفر په میاشت کې د لومړي ځل لپاره د الله تعالی له پلوه پر مسلمانانو د في سبیل الله وسله وال جهاد حکم نازل شو او د همدغه کال د صفر المظفر په میاشت کې د قتال دغه مبارک ایت نازل شو.

﴿ أُذِنَ لِلَّذِينَ يُقَاتَلُونَ بِأَنَّهُمْ ظُلِمُوا ۚ وَإِنَّ اللَّهَ عَلَىٰ نَصْرِهِمْ لَقَدِيرٌ ﴿٣٩﴾ الَّذِينَ إِن مَّكَّنَّاهُمْ فِي الْأَرْضِ أَقَامُوا الصَّلَاةَ وَآتَوُا الزَّكَاةَ وَأَمَرُوا بِالْمَعْرُوفِ وَنَهَوْا عَنِ الْمُنكَرِ ۗ وَلِلَّهِ عَاقِبَةُ الْأُمُورِ ﴿٤١﴾ ﴾. الحج/۳۹-۴۱)

ژباړه: هغو کسانو ته د قتال او جنګ حکم ورکړای شوی دی، چې د کافرانو له پلوه جنګ ورسره کولی شي، په دې سبب چې پر دوی ظلم کړای شوی دی او په تحقیق سره الله تعالی د دوی په مرسته ارو مرو قادر دی.

دغه مظلومان هغه کسان دي، چې له خپلو کورونو څخه په ناحقه سره ویستلی شوي دي، د دوی بل هیڅ قصور نه وو پرته له دې څخه چې دوی به ویل:

زموږ پالونکی او رب یوازې او یوازې الله تعالی دی او کچېرې الله تعالی ځینې خلک د دوی په ځینې نورو باندې نه دفع کولای، نو هرو مرو به

کليساوې، مدرسې، عبادت ځايونه او هغه جوماتونه چې د الله تعالی ذکر په کې ډېر کولی شي نړولی شوی وای او الله تعالی به هرو مرو له هغه چا سره مرسته وکړي، چې مرسته ورسره کوي، په تحقيق سره الله تعالی زيات قوي او غالب دی، دغه مظلومان هغه کسان دي، چې که چېرې موږ دوی ته په ځمکه کې قدرت ورکړو او حاکمان يې وګرځوو، نو دوی لمونځ قايموي، زکات به ورکوي او خلکو ته به د نېکو چارو په کولو حکم کوي او له بدو کارونو څخه به يې منعه کوي او د ټولو کارونو اخره خاتمه د الله تعالی په واک او اختيار کې ده.

د وسله وال في سبيل الله جهاد د دغه مبارک حکم له نزول سره سم د مسلمانانو څوارلس کلنه هيله او ارمان ترسره شوه، په دغه دوېمه مرحله کې د اسلام د مقدس دين څنګ پرمختګ کفري ځواکونه نور هم تلولي او پرېشان کړل، ډېرې هلې ځلې يې په کار واچولې، نوي نوي پلانونه يې د اسلام او مسلمانانو د ناکامولو لپاره جوړ کړل، مګر الله تعالی د يهوديانو، نصرانيانو او مشرکانو ټولې هلې ځلې او اسلام دښمنه پلانونه شنډول او اسلامي امت ته يې پر هغوی د برلاستيا، برياليتوب او پرمختګ محير العقول ځواک ورکړ.

په دغه مرحله کې د مسلمانانو په خلاف د نورو ټولو په پرتله يهوديانو زيات فعاليت کاوه، شپه ورځ يې د اسلامي انقلاب په خلاف موامرې او دسيسې جوړولې او له دې امله چې دوی د تورات لوستونکي و، پر مشرکانو يې ځانونه پوهه او هوښيار ګڼل او د مکې مشرکان هم د دوی پردغه فضيلت قايل او معترف وو، دوی به چې هغوی ته د اسلام او مسلمانانو په خلاف هر ډول تخريبي اقدام مشوره ورکړه، هغوی به قبلوله.

**درېيمه مرحله:**

دغه مرحله له (٦٦٨) هجري څخه چې له (۱۲۷۰) مسيحي کال سره سمه پيل شوې ده، چې تر اوسه پورې دوام لري او په تېرو اووه سوه کلونو کې ورځ په

ورځ د اسلامي امت په خلاف استعماري او طاغوتي تخریبي فعالیتونه مخ په زیاتېدو دي، د طاغوت پلویان نهایي کوښښ کوي، چې دغه تش په نوم پاتې اسلام او مسلمانان هم له منځه یوسي، د غیر الله حکومت، عبادت او حاکمیت پر بشري نړۍ مسلط کړي او شیطان هڅه کوي، چې د ادم اولاد په بشپړه توګه پخپله ولکه کې کابو کړي، دغه درېیمه مرحله له دوېمې دورې او مرحلې سره په عمده توګه دغه لاندې توپیرونه لري:

**لومړی:** له دوېمې مرحلې سره د درېیمې مرحلې لومړی توپیر دا دی، چې په دویمه مرحله کې د اسلام دښمنو ځواکونو قیادت او رهبري یهودانو کوله، مګر په درېیمه مرحله کې دغه وظیفه مسیحیانو هم پر غاړه واخیسته، چې تراوسه پورې یې پرغاړه لري او اوس خو یهودیان هم بېرته د دې جوګه شوي دي، چې د اسلامي امت په خلاف په پټه او ښکاره فعالیت وکړي.

**دویم:** د درېیمې مرحلې دوېم توپیر دا دی، چې د دوېمې مرحلې په پرتله په دغه مرحله کې د اسلامي امت په دښمنانو کې زیاتوالی راغی او د مشرکانو، یهودیانو او نصرانیانو په څنګ کې، بودایېزم او هندوېزم هم او دریدچې، پردې اساس د پخوانیو دواړو مرحلو په نسبت په دغه درېیمه مرحله کې د اسلام ضد فعالیتونو لمن پراخه شوه او وسایل یې زیات شول، دغه راز په دغه مرحله کې یهودیانو د مسلمانانو د ګمراه کولو لپاره د کمونېزم او سوسیالېزم په نوم یې نوی تحریک هم ایجاد کړ، څو د اسلام د مقدس دین له قوانینو او مزایاوو څخه بې خبره پرګنې په اسانتیا سره بې لارې کړای شي.

**درېیم:** درېیم توپیر یې دا دی، چې د دویمې مرحلې اسلامي امت په عزم او ایمان کې سخت قوي وو او د نبوي مدرسې داسې زیرک او بیدار روزل شوي خلک وو، چې د دښمن هیڅ ډول دسیسو، پلانونو او مانورو د هغوی په عزم، ثبات او اراده کې تزلزل رانه وسته، مادیاتو او مادي وسایلو پر هغوی یو پوټی اغېزه هم ونه کړه، په داسې حال کې چې په درېیمه مرحله

کې مسلمانان د لومړنیو دوو مرحلو د مسلمانانو په څېر د کروړلیو توحیدي مواصفاتو خاوندان نه دي، دنیوي جاه و جلال، مال او دولت، مېړانه او اتلولي ورڅخه سلب کړي دي.
د نفس عزت یې له لاسه ورکړی دی، د اماره نفس تابع وګرځېدل، عیاشي او اسایش پرستي داسې جبون وګرځول چې خپل اذلي دیني دښمنانو ته له اسلام او عقیدې څخه د دفاع په خاطر په برندو سترګو هم کتلی نه شي او که د اسلام دښمنان او اسلامي امت غلیمان ګواښ پرې وکړي، نو خپل غوږونه کاڼه کړي او سترګې ښکته واچوي.
د لومړۍ او دوهمې مرحلې مسلمانانو له کافرانو څخه داسې ځان ساته، لکه چې څوک خپلې جامې له پلیتۍ څخه ساتي؛ ځکه چې الله تعالی تعالی فرمایلي دي:
﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوٓاْ إِنَّمَا ٱلْمُشْرِكُونَ نَجَسٌ﴾. (التوبه/۲۸)
ژباړه: ای مومنانو په تحقیق سره مشرکان پلیت دي.
له همدې امله به هغوی ځان ورڅخه ساته، هیڅ ډول دوستي، مینه او خپلوي یې له هغوی سره د ځانونو لپاره عار او ګناه ګڼله؛ ځکه چې ګناه ده، لکه چې الله تعالی فرمایلي دي:
﴿يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ لَا تَتَّخِذُواْ ٱلْكَٰفِرِينَ أَوْلِيَآءَ مِن دُونِ ٱلْمُؤْمِنِينَ﴾.
(النساء/۱۴۴)
ژباړه: ای مومنانو! کافران خپل دوستان مه نیسئ، بې له مومنانو څخه.
مګر د درېیمې مرحلې مومنانو! د الله تعالی دغه حکم شاته غورځولی دی او له کافرانو سره نه یوازې دا چې دوستي کوي؛ بلکې له استعماري ځواکونو سره دوستي کول د ځان لپاره افتخار ګڼي او له کافرانو سره دوستي کول د ځانونو لپاره د عزت باعث تلقي کوي، په داسې حال کې چې الله تعالی فرمایلي دي:

﴿الَّذِيْنَ يَتَّخِذُوْنَ الْكٰفِرِيْنَ اَوْلِيَآءَ مِنْ دُوْنِ الْمُؤْمِنِيْنَ ۭ اَيَبْتَغُوْنَ عِنْدَهُمُ الْعِزَّةَ فَاِنَّ الْعِزَّةَ لِلّٰهِ جَمِيْعًا﴾. (النساء/۱۳۹)

ژباړه: هغه کسان چې دوی کافران خپل دوستان نیسي، بې له مومنانو څخه، ایا دوی له کافرانو سره خپل عزت لټوي، پس دنیوي او اخروي عزت ټول الله تعالی لره دی، د الله تعالی د دین پیروي او د توحیدي عقیدې په لرلو کې دی.

نو د الله تعالی له دغو هدایاتو سره سم د دوهمې مرحلې مومنانو صفت په قران کریم کې الله تعالی داسې بیان کړی دی:

﴿مُحَمَّدٌ رَّسُوْلُ اللّٰهِ ۭ وَالَّذِيْنَ مَعَهٗٓ اَشِدَّاۗءُ عَلَي الْكُفَّارِ رُحَمَاۗءُ بَيْنَهُمْ تَرٰىهُمْ رُكَّعًا سُجَّدًا يَّبْتَغُوْنَ فَضْلًا مِّنَ اللّٰهِ وَرِضْوَانًا ۡ سِيْمَاهُمْ فِيْ وُجُوْهِهِمْ مِّنْ اَثَرِ السُّجُوْدِ ۭ ذٰلِكَ مَثَلُهُمْ فِي التَّوْرٰىةِ﴾. (الفتح/۲۹)

ژباړه: محمد صلی الله علیه وسلم د الله تعالی رسول دی او هغه کسان چې له ده سره دي پر کافرانو ډېر سخت او پخپل منځ کې یو پر بل ډېر مهربان دي، ته به دوی رکوع کوونکي او سجده کوونکي وینې، دوی په دغه عبادت کولو، له کافرانو سره په سختۍ کولو او پخپل منځ کې یو پر بل په نرمۍ کولو سره له الله تعالی څخه فضل او مهرباني غواړي، د دوی په مخونو کې د سجدو کولو نښانې څرګندې دي او د مومنانو دغه صفتونه په تورات کې الله تعالی بیان کړي دي.

مګر په دریمه مرحله کې مسلمانانو دغه مواصفات شاته وغورځول، له کافرانو سره یې محبت او دوستي پیل کړه او پخپل منځ کې یې یو له بل سره سختي او دښمني کول او یو د بل وژل پیل کړل او په بشپړه توګه یې د خپلو سلفو بالعکس عمل پیل کړی دی، د استعماري ځواکونو په قومنده یو بل سره وژني.

**څلورم:** څلورم توپیر یې د ادی، چې په لومړۍ او دوېمه مرحلو کې مسلمانانو خپل صعودي او د پرمختګ په لوري روان وو، ورځ په ورځ پیاوړي او کروړلي کېدل، شاته یې نه کت، لکه چې الله تعالی فرمایلي دي:

﴿وَمَثَلُهُمْ فِي الْإِنْجِيلِ كَزَرْعٍ أَخْرَجَ شَطْأَهُ فَآزَرَهُ فَاسْتَغْلَظَ فَاسْتَوَىٰ عَلَىٰ سُوقِهِ يُعْجِبُ الزُّرَّاعَ لِيَغِيظَ بِهِمُ الْكُفَّارَ﴾ (الفتح/۲۹)

**ژباړه:** او په انجیل کې الله تعالی د مومنانو د ودې او پرمختګ صفت داسې بیان کړی دی، چې دوی لکه د هغه کښت په شان دي، چې خپل تېغ ځانګې راوباسي، بیا یې ملیا یعنې ډنډر کروړلي او قوي شي، نو بیا پرېړ شي او بیا دغه کښت پر خپلو پونډیو، یعنې مونډونو بېخونو ودرېږي، داسې چې بزګران زیات خوشحال کړي او تعجب هغوی ته ورولي.

**مفسرینو لیکلي:** له﴿شَطْأَهُ﴾ څخه صدیقي دور مراد دی، له ﴿فَآزَرَهُ﴾ څخه د فاروقي خلافت، له ﴿فَاسْتَغْلَظَ﴾ څخه د عثمان غني رضي الله تعالی عنهم د خلافت دور او ﴿فَاسْتَوَىٰ عَلَىٰ سُوقِهِ﴾ څخه د مرتضوي خلافت دور مراد دی.[1]

مګر په درېیمه مرحله کې استعماري توپانونو اسلامي امت په شا تلو ته مجبور کړ، ورځ په ورځ د کمزورتیا پلو ته رهي شو، چې اوسني حالت ته یې را ورساوه او شل شوټ یې کړ.

**پنځم:** توپیر یې د ادی، چې په دوېمه او لومړنۍ پېړۍ کې مسلمانان د برم او پرتم اوچت مقام ته رسېدلي وو، پخپل سر فروشانه هاند، دعوت او جهاد سره یې د اسلام مقدس دین د نړۍ ګوټ ګوټ ته ورساوه، نړیوال سیادت او قیادت یې ترلاسه کړ، د الله تعالی پر ځمکه یې د الله تعالی قانون حاکم

۱- موضح الفرقان: ۳۰۳۸/۱ مخونه.

وګرځاوه، د جاهلي تهذيبونو او ثقافتونو پر کنډوالو يې د اسلامي تهذيب او ثقافت ژوند ښونکې ماڼۍ جوړه کړه، د طاغوت ګوند يې چپ چور کړ او د هغوی ټولې دسيسې او ناولې هيلې يې له خاورو سره خاورې کړې.
مګر په درېيمه مرحله کې په تدريجي ډول د هغوی شپږ نيم سوه کلن ميراث تالا او ترغه کړای شو، د مسلمانانو او کوب په ذلت بدل کړای شو، د شيطان ګوند ته د برياليتوبونو تمه پيدا شوه او سوکه سوکه يې خپل استعماري پلانونه د تطبيق لپاره عملي ډګر ته رابهر کړل، شيطاني اسلام دښمنه تهذيبونو او ثقافتونو نه يوازې دا چې په کفري ملتونو کې سر اوچت کړ؛ بلکې اسلامي امت يې هم تر خپلې اغېزې لاندې راوسته او اوس موږ وينو، چې جاهليت يو ځل بيا پر ټوله بشري نړۍ مسلط کړای شوی دی.
د شيطان ګوند په مختلفو نومونو او بېلا بېلو ذرايعو بشريت د تباهۍ لور ته سوق کړی دی او د شيطان د ګوند ټولې څانګې که يهوديت دی او که مسيحيت، هندوييزم دی او که بوداييزم، کمونيزم دی او که سيکولريزم ټولو په ګډه سره خپل ټول امکانات د اسلام او مسلمانانو د تباهۍ لپاره په کار اچولي دي.
**خلاصه:** د پورتني بحث خلاصه دا ده، چې په لومړۍ مرحله کې مسلمانان کمزوري او د ودې په حال کې وو؛ په داسې حال کې چې دښمنان يې پياوړي وو، مګر سره له دې هم مومنانو خپل ثبات ټينګ وساته او د اسلامي نظام د بقا په خاطر هر ډول قربانۍ ورکولو ته چمتو وو، په لومړۍ مرحله کې د اسلام او مسلمانانو پر خلاف د مقابلې کولو کفري قيادت د مشرکانو په لاس کې وو.
په دويمه مرحله کې اسلامي امت د پرمختګ وروستي پړاو ته رسېدلي وو او په هر اړخيزه توګه يې د بشري نړۍ سيادت او رهبري کوله، په دغه دوره کې د مخالفينو قيادت او رهبري د يهوديانو په لاس کې وه او په دغه

مرحله کې د شیطان ګوند بېخي ناکام شوی و، استعماري قوتونه مضمحل شوي او له پښو غورځولي شوي وو.

په درېیمه مرحله کې چې تر اوسه دوام لري، د اسلامي امت د زوال مرحله ده، د شیطان ګوند چې په اوسنۍ اصطلاح کې استعمار، استکبار او ښکېلاک ورته ویل کېږي، په تدریجي توګه پیاوړی شو، په دغه مرحله کې د مخالفینو قیادت او رهبري مسیحیت پر غاړه واخیسته، چې په عملي ډګر کې په تېرو اووه نیم سوه کلونو کې د اسلام او اسلامي امت په خلاف فعالیتونه کوي او غواړي چې د اسلام ژوند ښښونکی نور مړ کړي او د خپل دغه مقصد لپاره یې مختلف محاذونه پرانستلي او مختلف وسایل او ذرایع یې په کار اچولي دي، خو ﴿وَاللَّهُ مُتِمُّ نُورِهِ وَلَوْ كَرِهَ الْكَافِرُونَ﴾ دی.



## مختلف محاذونه

د شیطان په لمسه او هدایت نوی او زوړ استعمار د اسلامي امت د تباهۍ او له منځه وړلو لپاره مختلف محاذونه پرانستلي دي، لکه چې الله تعالی فرمایلي دي:

﴿وَ اِنَّ الشَّیٰطِیۡنَ لَیُوۡحُوۡنَ اِلٰۤی اَوۡلِیٰٓـِٕہِمۡ لِیُجَادِلُوۡکُمۡ ۚ وَ اِنۡ اَطَعۡتُمُوۡہُمۡ اِنَّکُمۡ لَمُشۡرِکُوۡنَ ﴿۱۲۱﴾﴾. (الانعام/۱۲۱)

ژباړه: او په تحقیق سره شیطان هرو مرو خپلو دوستانو ته وسوسې، خیالات او پلانونه اچوي، څو له تاسې سره جګړه او شخړه وکړي او که تاسې د دوی اطاعت او منښه وکړئ مومنانو ارو مرو به تاسې مشرکان شئ.

یعنې شیطان ښکېلاکي او زبېښاکي اسلام دښمنو ځواکونو ته د متنوعو او مختلفو تاکتیکونو او پلانونو القاء کوي، دا هدایات او لارښوونې ورته کوي، چې اسلامي امت څرنګه او په کومو ذرایعو سره وځپي او که وس یې ورسېږي له منځه یوسي.

او هغه محاذونه چې استعمارګرانو د اسلامي امت د مادي او معنوي هر اړخیزې تباهۍ لپاره جوړ کړي دي، په لاندې ډول تقدیمولی شي.

دا هم باید وویل شي، چې دغه محاذونه اوس نه؛ بلکې د اسلام د مقدس دین له پیل څخه شیطان او د هغه دوستانو جوړ کړي دي، دومره خبره ده، چې د ضعف او قوت په لحاظ توپیر لري، د محدودیت او وسعت له نظره فرق سره لري، د تطبیق او پلي کولو له مخې تفاوت سره لري، مګر په اساسي توګه د نن او پرون کفري محاذونه هیڅ فرق سره نه لري او هغه محاذونه دا دي:

**الف: نظامي محاذ:**

د کفري ملت له پلوه دغه محاذ که څه هم په لومړنۍ مرحله کې جوړ کړای شو او پر مسلمانانو یې یرغلونه کول، مګر په انفرادي توګه او ډېر کمزوري څکه وو، چې مسلمانانو مقابله نه کوله، په دوېمه مرحله کې په (۶۲۳) مسیحي کال کې له دوېم هجري کال سره سم د رمضان المبارک په میاشت کې په منظم ډول د بدر له غزا څخه پیل شو، مګر د الله تعالی په نصرت سره هر ځل له ماتې سره مخامخ شوي دي او په هیڅ یو جنګ کې یې بریالیتوب ترلاسه کړی نه دی، پرته د احد له جنګ څخه، چې په (۶۲۵) مسیحي کال کې له (۳) هجري سره سم واقع شوی وو.

په درېیمه مرحله کې د مسیحي استعمار له پلوه په (۱۰۴۵) عېسوي کال کې له (۴۲۳) هجري قمري کال سره سم د صلیبي جنګونو په نوم د اسلامي امت په خلاف بې امانه جګړه پیل شوه، چې پوره دوه سوه پنځه ویشت کلونه، یعنې تر (۱۲۷۰) عېسوي کال پورې یې دوام وکړ، د مسیحي استعمار په دغه نظامي وحشیانه یرغل کې د بریتانیه، فرانسې، المان، سسلي، ډنمارک، ناروې، ویلز او نورو اروپایي اسلام دښمنو هېوادونو په رسمي توګه ګډون کړی وو او د لکونو مومنانو نارینه او ښځو لویانو او کوچنیانو وینې یې توی کړې، چې په متفرق ډول تر اوسه پورې جریان لري او پر اسلامي هېوادونو مستقیم او غیر مستقیم یرغلونه کوي.[1]

**ب: سیاسي محاذ:**

په لومړۍ مرحله کې له دې کبله چې څوارلس کلونه د مسلمانانو یوازې دعوتي مرحله وه، له همدې امله د طاغوت ګوند هم زیاته پاملرنه د مسلمانانو د دعوت د ناکامولو پلو ته کړځولې وه.

په دوېمه مرحله کې کله چې په مدینه منوره کې د هجرت په لومړي کال له

---

۱- تمدن اسلام و عرب: ۳۹۳ مخ.

(۶۲۳) هجري سره سم لومړی اسلامي حکومت جوړ کړای شو، نو کفري طاقتونه هم ورته متوجه شول او بشپړ زيار يې ويوست، چې دغه نوی حکومت پرمختګ ته پرېنږدي او مسلمانان د سياسي اداري خاوندان نه شي، مګر د الله تعالی په نصرت سره استعمارګرانو په دې ډګر کې هم ماتې وخوړله، مسلمانانو د افريقا ګېډه څيرې کړه او پر هسپانيه يې هم د اسلامي حکومت اداره جوړه کړه او تر (۴۲۳) هجري قمري کال پورې له هسپانيه څخه نيولي تر چين پورې او له ترکستاني قفقاز څخه نيولي تر اندونيزيا او تايلنډ پورې د اسلامي حکومت لمن پراخه شوه.
په درېيمه مرحله کې د مسلمانانو د خپلمنځي اختلافاتو له امله استعماري قوتونو وکړای شول، چې پر مسلمانانو سياسي يرغلونه وکړي او د جاهلي قوانينو په ترويج سره د اسلامي قانون او شريعت لمن ټوله کړي او اوس مونږ ګورو، چې په ټوله اسلامي نړۍ او اسلامي هېوادونو کې د اسلامي قانون پرځای د طاغوتي ځواکونو قوانين حکومت کوي، هغه هم د مسلمانانو په لاسونو جوړول د هغوی له پلوه وي او تطبيقول يې د اسلامي ملتونو زمامداران د هغوی له حکم سره سم کوي.
د جمهوريت، ديموکراسۍ او ملي نظامونو په منځته راوړو يې د اسلامي خلافت مخه نيولې ده.

ج: **اقتصادي محاذ:**

کفري او طاغوتي ځواکونو د اسلامي امت په خلاف او د تباهۍ په هڅه درېيم محاذ وټه ييز محاذ دی، په لومړۍ مرحله کې يوازې مشرکانو له دغه محاذ څخه کار اخيسته او د مسلمانانو پر شتو يې يرغلونه کول او هغه يرغلونه نېغ په نېغه وو، په داسې طريقه چې که مسلمان به له خپلې کفري کورنۍ څخه د بېلتون اعلان وکړ، نو هغه به د کهول کفري او شرکي غړو لوڅ لغړ له کور څخه ويوست او که چېرې به کوم مسلمان د خپلې عقيدې، ايمان او اسلام د حفاظت او بقا په خاطر له خپل ټاټوبي څخه د هجرت کولو

پرېکړه وکړه، نو له هغوی څخه به یې ټول منقوله او غیر منقوله شته ولکه کړل او لوټ لغړ به یې وشاړه.
په دوېمه مرحله کې د کفري ځواکونو دغه استعماري محاذ تر (۲۱۸) هجري کال له (۸۳۳) عېسوي کال سره سم پورې سقوط کړی وو او د درېیمې هجري پېړۍ په پیل کې یې په غیر مستقیم ډول د مسلمانانو د اقتصاد په لوټ کولو پیل وکړ او دغه حالت هغه وخت منځته راغی، چې د عباسیانو اووم خلیفه مامون رشید «ابو جعفر عبدالله» د خلافت په موده کې یهودیانو مسیحیانو او مجوسیانو، د طبیبانو، معمارانو، شاعرانو، ادیبانو، مصنفینو او مترجمینو او نورو په نومونو د خلافت دربار ته ننوتل او د مسلمانانو د بیت المال لوټول یې پیل کړل، دعباسي واکمنانو له فیاضانه پنځ او دریغ څخه په استفاده او د دوی په اسلام دښمنو طاغوتي پلانونو د هغوی د نه پوهېدلو په نتیجه کې یې د خپل اقتصادي استعمار او یرغل پلانونه په کار واچول، لکه چې علامه شبلي نعماني پخپل کتاب المامون کې لیکلي دي:
د مامون یو نصراني درباري طبیب وو، چې جبریل بن بختیشوع نومېده او (۲۱۵) هجري کې مړ شوی و.
هغه ته د عباسي کورنۍ مېرمن زبیده په ګډون چې د مامون میره کېده او د امین مور وه، دغه نصراني طبیب ته د میاشتې پنځه ویشت لکه، یعنې دوه نیم میلیونه درهمه تنخوا ورکوله.(۱)
مګر بیا سره له دې هم اسلام دښمنو په مستقیم ډول د مسلمانانو پر اقتصاد یرغل نه شوای کولای.
په درېیمه مرحله کې چې (۱۰۴۵) عېسوي کال څخه پیل کېږي او له تر اوسه پورې روانه ده، د زېښناکي او ښکېلاکي ځواکونو له پلوه د اسلامي

۱- المامون: ۱۶۴ او ۱۶۵ مخونه، مصنف علامه شبلي نعماني رحمه الله.

امت پر اقتصاد پرله پسې يرغلونه کولی شي او نن د مسلمانانو پر اقتصاد مسيحي نړۍ بودايېزم، هندوييزم او کمونېزم مزې چړچې کوي او اسلامي امت د هغوی لاسونو ته محتاج دی او خپل دولت په سوال ورځخه غواړي.
پخپلو هېوادونو کې د هغوی له اجازې پرته خپلو شتو ته لاس وروړلی نه شي او پخپلو هېوادونو کې د هغوی له اجازې پرته صنعتي مراکز جوړولی نه شي، لوټ چاپولی نه شي، وسله جوړولی نه شي، ان تردې چې پخپلو هېوادونو کې هغو فابريکو او کارخانو ته ننوتلی نه شي، چې استعماري ځواکونو په مزدورۍ او ټيکه ورته جوړې کړي دي.
لکه چې د مصر پخواني جمهور رئيس انور السادات په خپلو خاطراتو کې ليکلي دي:
په (۱۳۵۳) هجري شمسي کال کې ده يوه ورځ اراده وکړه، چې د وسلې جوړولو هغه کارخانه وګوري، چې جمال عبدالناصر په قاهره کې روسانو ته په ټيکه ورکړې وه.
کله چې سادات دغې کارخانې ته لاړ، نو د کارخانې د مختلفو کار ځايونون په ليدو مصروف شو، چې په پای کې داسې يوې خونې او کارځای ته ورسېد، چې د هغې په دروازه کې څوکيدار ولاړ وو. سادات چې دغه ځای ته د ننوتو اراده وکړه، چې هلته ننوځي، څوکيدار ورته وويل:
ته دلته ننوتلی نه شې.
سادات ورته وويل: ته ما پېژنې؟ زه د دغه هېواد، يعنې مصر جمهور رئيس يم.
هغه ورته وويل: هو؛ زه تا پېژنم، خو دلته له روسانو څخه پرته د مصر جمهور رئيس ته هم د ننوتو اجازه نه شته.
دغه راز زموږ پخپل هېواد افغانستان کې کله چې په (۱۳۴۸-۱۳۴۹) هجري کلونو کې روسي استعمار په افغانستان کې د ننګرهار په ولايت کې د غازي اباد او هډې فارمونه جوړ کړل، د دغو فارمونو د مالتړ

زیتونو او نورو مېوو خوړل د افغانستان خلکو ته ممنوع وو، هرڅه به یې روسي استعمار خپل هېواد ته انتقالول.

په دغو فارمونو کې د افغانستان خلکو د روسانو له اجازې پرته ماموریت او مزدوري نه شوای کولای د روسانو له اجازې پرته ور په کې ګرځېدلای هم نه شوای.

لنډه دا چې په دغه دریمه مرحله کې طاغوتي استعمارګرانو خپل اقتصادي محاذ د اسلامي امت پر ټولو هېوادونو داسې مسلط کړي دي، چې هرڅه یې د خپل ځان ګرځولي دي.

له خپل کفري او طاغوتي اقتصادي نظام سره سم یې ټول اقتصادي ذرایع، زراعتي دي، که صنعتي دی، تخنیکي دي که طبیعي زېرمې دي او که تجارتي لارې پخپله ګټه عیارې کړي دي او مسلمانان د اقتصاد د اسلامي کولو هیڅ ډول واک او ځواک نه لري.

د: اجتماعي محاذ:

د طاغوت د پیروانو دغه محاذ په لومړۍ مرحله کې هم زیار یوست، چې مسلمانان سره تیت و پرک کړي، مګر د پیاوړي نبوي رهبرۍ په لرلو سره یې کومه رخنته په کې وانه چولی شوه؛ بلکې د هغوی له فساد پیشه تبلیغاتو سره به مسلمانان نور هم پخپل منځ کې سره یو موټی شول او د یو بل په ملاتړ کې به هر ډول قربانیو ورکولو ته په ډېر ویاړ سره چمتو وو.

په دوېمه مرحله کې هم تر ډېرشو هجري کال پورې طاغوتي ځواکونو هیڅ ډول اجتماعي فساد په اسلامي امت کې رانه وستی شو؛ ځکه چې په دغه موده کې اسلامي ټولنې یوه پیاوړې مرکزي اداره لرله، شیطان او د هغه د ګوند وګرو نه شوای کولای په اسلامي ټولنه کې اسلام دښمنه فعالیتونه او کولای شي او یا د مسلمانانو اجتماعي شرعي قوانین پخپلو کفري القاتو سره ملوث او چټل کړي.

مګر په (۶۵۴) مسیحي کال کې له (۳۳) هجري کال سره سم د یمن د صنعاء

یو یهودي، چې عبدالله بن سبا نومېده او په ابن سوداء سره مشهور و، له یمن څخه مدینې ته لاړ او هلته یې په منافقانه او دروغجنه توګه اسلام قبول کړ، څو د اسلام تر پردې لاندې وکولای شي خپل اسلام دښمنه مقاصد ترسره کړي او په اسلامي امت کې د نفاق او شقاق په اچولو سره د مسلمانانو وحدت له منځه یوسي.

عبدالله بن سبا یهودي په (۳۳) هجري له (٦٥٣) مسیحي کال سره سم په بصره کې د مشهور عسکري قومندان حکیم بن جبله په ملګرتیا د لومړي ځل لپاره د مسلمانانو د وحدت تال ترغه کولو په خاطر د مسلمانانو په عسکري چوڼۍ کې ګوند جوړ کړ او خلک یې د اسلام د درېیم خلیفه امیر المؤمنین عثمان بن عفان رضي الله تعالی عنه په خلاف پاخون ته وهڅول او له دې سره سره یې په عقیدوي محاذ کې هم د مسلمانانو په ګمراه کولو پیل وکړ.

عبدالله بن سبا یهودي د خپل تحریک او ګوند بنسټ لومړی پر شپږو اصولو کېښود، چې هغه شپږ اصول سیاسي هم دي او عقیدوي هم دي او هغه اصول دا دي:

۱- د عیسی علیه السلام په شان د محمد صلی الله علیه وسلم یو ځل بیا دنیا ته راتلل.

۲- علي رضي الله عنه د نبي صلی الله علیه وسلم وصي دی.

۳- لکه څرنګه چې محمد صلی الله علیه وسلم خاتم الانبیاء دی، دغه راز علي رضي الله عنه خاتم الاوصیاء دی.

۴- متعه له دایمي نکاح څخه هم افضله ده.

۵- د الله تعالی په اراده کې بداء (تنسیخ رائې).

٦- له علي رضي الله عنه څخه دمخه درې واړه خلفاء غاصبین وو، له همدې کبله درېیم خلیفه باید معزول کړای شي او یا قتل کړای شي او خلافت علي

رضي الله عنه ته وسپاري.[۱]

ابن سبا یهودي پخپل دغه شیطاني حرکت سره په دېر لږ وخت کې په بصره کې یو شمېر ضعیف الایمان او نوي مسلمان شوي وګړي بې لارې کړل او د خپلو نظریاتو ګروهمن یې وګرځول او هغوی ته یې د تحریک د وسعت او پرمختګ دنده وسپارله، هغوی هم د مسلمانانو د بېلارتیا لپاره د زړه له کومې هلې ځلې کولې، په بصره کې د دغه نوي اسلام دښمنه تحریک له امله غوغا اوچته شوه او د بصرې والي عبدالله بن عامر خبر شو، چې یو سړي په عسکري چوڼۍ کې اختلاف اچولی دی.

والي ابن سبا ځان ته وغوښت او پوښتنه یې ورڅخه وکړه، ابن سبا ورته وویل:

زه مسلمان یم، عبدالله مې نوم دی، دښمن د صنعا یم، له صنعا څخه مدینې او له مدینې څخه دلته راغلی یم.

عبدالله بن عامر ورته وویل: زه خبر شوی یم، چې ته دلته د کومې فتنې جوړولو اراده لرې، ابن سبا چې څو نورې خبرې ورته وکړې، نو عبدالله بن عامر ورته په غوسه شو او ورته ویې ویل: ستا له خبرو څخه د یهودیت بوی راځي او زه پوهېږم چې ته په اسلامي ټولنه کې د نفاق او انتشار پېدا کولو هڅه کوي.[۲]

عبدالله بن سبا ووېرېده او له بصرې څخه د شام له لارې مصر ته وتښتېده، مګر په بصره کې یې د حکیم بن جبله قطاع الطریق په څېر روزل شوي وګړي پرېښودلي وو او هغوی ته یې هدایت ورکړی وو، چې تحریک مخ پر وړاندې بوځي او هغوی همداسې کول.

په (۳۴) هجري کال له (۶۵۴) عیسوي کال سره سم عبدالله بن سبا یهودي

---

۱- تاریخ خلافت اسلامیه: ۵۳ مخ، مصنف علامه صادق حسین صدیقي.

۲- تاریخ خلافت اسلامیه: ۵۴ مخ.

په مصر کې د خپل تحریک دویم مرکز جوړ کړ، چې خورا په بریالیتوب سره مخ پر وړاندې روان وو، تردې چې په نتیجه کې یې د اسلام دریم خلیفه امیر المؤمنین عثمان بن عفان رضي الله عنه د (۳۵) هجري کال د ذوالحجې په اتلسمه له (۶۵۵) مسیحي کال سره سم د جمعې په مبارکې ورځې د مازدیګر او ماښام ترمنځ د قران کریم د تلاوت پر مهال په ډېره مظلومانه توګه د دوه اتیا کلونو په عمر شهید کړای شو.[۱]

او د هماغه لومړي طاغوتي تحریک له ایجاد څخه وروسته پر اسلامي امت استعماري یرغلونه پیل شول او دغه محاذ د لومړي ځل لپاره د همدغه یهودي له پلوه جوړ او فعال کړای شو.

**په دریمه مرحله کې:**

په دریمه مرحله کې د شیطان د ګوند پیروانو، یعنې یهودیانو او مسیحیانو د اسلامي امت اجتماعي وحدت زیات تار په تار کړ او هغه داسې چې لومړی یې د هېوادونو او بېلا بېلو اوطانو روحیه ورکړه او د هر هېواد مسلمان خپله ځانګړې پاچاهي اعلان کړه، چې په دې توګه یې اسلامي امت په هېوادونو توکړې توکړې کړ، بیا یې په هر هېواد کې د قومیت، اقلیت او اکثریت پدیده رامنځته کړه او ددې په څنګ کې یې لساني توپیرونه هم رابرسېره کړل، وروسته یې د سیاسي احزابو او ګوندونو پروسه په کار واچوله او اسلامي امت یې توکړې توکړې کړ او اوس موږ ګورو، چې اسلامي نړۍ د استعمار له پلوه په منظم ډول د دغو رنځونو په پلي کولو سره له څومره تباه کوونکي ربړونو سره لاس او ګرېوان ده.

استعماري ځواکونه او د هغوی اسلام دښمنه تحریکونه ولې د مسلمانانو له اجتماعي وحدت څخه په وېره کې دي؟ ددې پوښتنې ځواب د مسیحي تبشیر یو مخکښ کسټ سیمون داسې بیان کړی دی:

---

۱- احوال بزرګان دي:۲۶ مخ، تصنیف علامه سعید قادري.

په تحقیق سره اسلامي وحدت د ټولو اسلامي ملتونو او قومونو اهداف، مقاصد او اړتیاوې ترسره کولی شي؛ ځکه چې د وحدت په صورت کې یو له بل سره په مرستې کولو سره د ټولو مشکلات لري، کېدلای شي او د لوېدیځ استعمار له سلطې او ښکېلولو څخه یې ژغوري، مګر د مسلمانانو د وحدت د اوکوب د ماتولو لپاره تبشیري حرکت اغېزمن عامل او مؤثره وسیله ده، پر همدې اساس غربي استعمار ته لازم دی، چې د تبشیر په ذریعه د مسلمانانو اسلامي وحدت توکړې توکړې کړي او د هغوی پاملرنه د وحدت او یووالي له ضرورت څخه وګرځوي او پخپلو مرموزو پلانونو سره د اسلامي امت وحدت داسې تیت او پرک کړي، چې هغوی بیا په اسانتیا سره ونه شي کولای دغه طاغوت ځپونکی نعمت ترلاسه کړي او د تل لپاره سره متفرق شي.

**هـ: فکري محاذ:**

په پنځم یعنې فکري محاذ کې هم د طاغوت ګوند پیروانو په هر پړاو کې د اسلام د مقدس دین او اسلامي امت د تباهۍ او له منځه وړلو زیار کښلی دی؛ بلکې دغه محاذ د نورو څلورو واړو محاذونو په پرتله زیات مهم دی او د شیطان د پیروانو لپاره د اسلام او مسلمانانو په مقابل کې د جنګ کولو بنسټیز حیثیت لري؛ ځکه چې له مسلمانانو سره د کافرانو اختلاف اساس فکري او عقیدوي دی، له همدې امله کفري ملتونو په هره مرحله کې د مسلمانانو د بې لارتیا په خاطر خپل ټول امکانات په کار اچولي دي او په هره مرحله کې د خپل وس په اندول د اسلام او مسلمانانو په خلاف د شیطان د خوشحالتیا په تکل جنګېدلي دي، چې دا دی په ترتیب سره ذکر کېږي:

**په لومړۍ مرحله کې:**

د اسلام د مقدس دین د تبارز په لومړۍ مرحله، یعنې مکي دور کې، چې د (۶۱۰) مسیحي کال د اګست له شپږم تاریخ د بعثت له لومړي کال د

رمضان له اووم تاریخ سره سمه پیل کېږي.
کافرانو او مشرکانو د اسلامي دعوت د مخنیوي په لاره کې له پنځم، یعنې فکري محاذ څخه هم ډېرې هلې ځلې کړې وې، چې الله تعالی د هغوی دغه طاغوتي ټولې هلې ځلې شنډې کړې وې او هغه هلې ځلې یې په لاندې ډولونو سره وې:

**۱ - نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته لېونی ویل:**

د مکې مشرکانو د رسول الله صلی الله علیه وسلم د شخصیت په هکله داسې اوازې خپرې کړې او داسې تورونه یې پرې ولګول، داسې نومونه یې پرې کېښودل، چې له هغو څخه به هر چا کرکه کوله.
دا ددې لپاره چې خلک ورڅخه متنفر کړي، څوک ورته نږدې نه شي، پر خبرو یې باور ونه کړي او دعوت یې قبول نه کړي، چې د هغو تهمتونو له جملې څخه یې یو دا و، چې خلکو ته به یې ویل: «محمد صلی الله علیه وسلم» لېونی شوی دی؛ لکه چې الله تعالی فرمایلي دي:

﴿ وَيَقُولُونَ إِنَّهُ لَمَجْنُونٌ ۝٥١ ﴾. (القلم/۵۱)

ژباړه: کافران او مشرکان وايي په تحقیق سره دغه محمد صلی الله علیه وسلم لېونی دی، نو تاسې دده خبرې او دعوت مه قبلوئ، چې بې لارې به مو کړي، نږدې مه ورځئ، چې تاوان به درته ورسوي.

**۲ - د ګمراهۍ تور لګول:**

دویم تهمت یې دا و، چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم بې لاری شوی او ګمراه شوی دی او له خپل ځان څخه خبرې جوړوي، لکه چې الله تعالی د دوی دا تهمت رد کړی او فرمایلي یې دي:

﴿ وَالنَّجْمِ إِذَا هَوَىٰ ۝١ مَا ضَلَّ صَاحِبُكُمْ وَمَا غَوَىٰ ۝٢ وَمَا يَنطِقُ عَنِ الْهَوَىٰ ۝٣ إِنْ هُوَ إِلَّا وَحْيٌ يُوحَىٰ ۝٤ عَلَّمَهُ شَدِيدُ الْقُوَىٰ ۝٥ ﴾. (النجم/۱-۵)

ژباړه: قسم دی پر ستورېو، کله چې پرېوځي، ستاسې ملګری یعنې محمد صلی الله علیه وسلم ګمراه شوی نه دی او نه یې لاره ورکه کړې ده او له خپل ځان او فکر څخه خبرې نه کوي؛ بلکې دا قران نه دی، مګر وحې ده، چې الله تعالی له پلوه ده ته کولی شي او ده ته ځواکمن ملایک یعنې جبرائیل علیه السلام ښودلی دی.

**۳- شاعر ګڼل:**

بل ناروا او ظالمانه تهمت یې دا و، چې خلکو ته به یې ویل محمد صلی الله علیه وسلم شاعر دی او د عادي شاعرانو په څېر کلام وړاندې کوي؛ لکه چې الله تعالی په قران کریم کې ددوی قول نقل کړی، بیا یې رد کړی دی او فرمایلي یې دي:

﴿ أَمْ يَقُولُونَ شَاعِرٌ نَّتَرَبَّصُ بِهِ رَيْبَ الْمَنُونِ ﴾. (الطور/۳۰)

ژباړه: ایا مشرکان او د اسلام دښمنان وایي، چې محمد صلی الله علیه وسلم شاعر دی، موږ دده په هکله پر ده د زمانې د حوادثو د راتلو انتظار کوو.

یعنې څرنګه چې نور شاعران د زمانې په تېرېدو سره په تولنه کې د خپلې شاعرۍ او کلام محبوبیت او ارزښت له لاسه ورکوي، دغه راز پرده هم داسې وخت راتلونکی دی، چې د کلام تاثیر به یې له منځه لاړ شي او بیا به ځوک پخپل کلام سره جذب کولی نه شي او یا دا چې دی به هم د نورو پخوانیو شاعرانو په څېر اخر مړ شي او موږ به ورڅخه بې غمه شو.[۱]

**۴- کاهن، ساحر او مسحور ګڼل:**

د مکې د کافرانو او نورو اسلام دښمنو له پلوه پر ختم الرسل محمد صلی الله علیه وسلم دا تهمت هم لګولی شوی و،، چې هغه جادوګر او ساحر دی، یو ځل چې ځوک ورته لاړ شي او خپل کلام ورته بیان کړي، نو بیا

۱- کابلی تفسیر: شپږم توک: ۳۰۷۸ مخ.

اورېدونکی د خپل بیان تر اغېزې لاندې داسې راولي، چې ارو مرو ایمان پرې راوړي او متابعت یې کوي، لاړ نه شي چې جادو به پرې وکړي.
دغه راز دا تهمت به یې هم پرې لګاوه، چې محمد صلی الله علیه وسلم کاهن دی او غیب ګویي کوي او په دې کار کې نور کاهنان او غیب ګویان له ده سره مرسته کوي، دا تهمت به یې هم پرې لګاوه، چې پر محمد صلی الله علیه وسلم سحر او جادو شوی دی، هغه پخپل اختیار کې نه دی، له همدې امله هغه چې هرڅه وایي او هره خبره کوي د منلو او اعتبار وړ نه دي.

***

## د قرآن کریم په هکله

دغه راز کافرانو د قران کریم په خلاف هم زهرجن تبلیغات کول، کله به یې ویل چې دا د الله تعالی له پلوه نازل شوی قانون او د الله تعالی کلام نه؛ بلکې دا د ساحرانو سحر دی، یا د بشر قول دی، یا د شاعر کلام دی، لکه چې الله تعالی د هغوی قول نقل کړی او فرمایلي یې دي:

﴿إِنَّهُۥ فَكَّرَ وَقَدَّرَ ﴿١٨﴾ فَقُتِلَ كَيْفَ قَدَّرَ ﴿١٩﴾ ثُمَّ قُتِلَ كَيْفَ قَدَّرَ ﴿٢٠﴾ ثُمَّ نَظَرَ ﴿٢١﴾ ثُمَّ عَبَسَ وَبَسَرَ ﴿٢٢﴾ ثُمَّ أَدْبَرَ وَٱسْتَكْبَرَ ﴿٢٣﴾ فَقَالَ إِنْ هَٰذَآ إِلَّا سِحْرٌ يُؤْثَرُ ﴿٢٤﴾ إِنْ هَٰذَآ إِلَّا قَوْلُ ٱلْبَشَرِ ﴿٢٥﴾﴾. (المدثر/۱۸- ۲۵)

ژباړه: بېشکه هغه کافر «ولید» فکر وکړ او د قران په هکله یې خپل نظر قایم کړ، نو دی دې هلاک کړای شي، ده څرنګه د قران کریم په هکله خپله رایه قایمه کړه، بیا دې دی هلاک کړای شي، ده د قران په هکله د تهمت لګولو څرنګه نظر قایم کړ، نو بیا یې وویل: نه دی دا قران، مګر سحر دی، چې نقل کولی شي له نورو ساحرانو څخه، نه دی دا قران، مګر د بشر یعنې بنیادم کلام دی.

په قران کریم کې زښت ډېر هغه اقوال مذکور دي، چې مشرکانو او کافرانو د قران کریم په هکله د شیطان په القاء سره سحر او د ساحرانو کلام، د شاعر قول او د کاهن وینا ګڼلی دی او الله تعالی د هغوی دغه طاغوتي قران دښمنه زهرجن او له حقیقت څخه لرې تبلیغات رد کړي دي او فرمایلي یې دي:

﴿إِنَّهُۥ لَقَوْلُ رَسُولٍ كَرِيمٍ ﴿٤٠﴾ وَمَا هُوَ بِقَوْلِ شَاعِرٍ ۚ قَلِيلًا مَّا تُؤْمِنُونَ ﴿٤١﴾ وَلَا بِقَوْلِ كَاهِنٍ ۚ قَلِيلًا مَّا تَذَكَّرُونَ ﴿٤٢﴾ تَنزِيلٌ مِّن رَّبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ﴿٤٣﴾﴾.

(الحاقه/۴۰-۴۳)

ژباړه: له تحقیق سره دا قران کریم د عزتمن رسول خبره ده او دا قران د شاعر کلام نه دی او له تاسې څخه ډېر لږ داسې دي، چې باور کوي او ایمان راوړي او نه دا قران د کاهن قول دی، له تاسې څخه ډېر لږ داسې یاستئ، چې پند اخلي، دغه قران د رب العالمین له پلوه نازل شوی دی.
او بیا الله تعالی چیلنج ورته ورکړی دی او خپل پیغمبر ته یې فرمایلي دي، چې:

﴿فَلۡيَأۡتُواْ بِحَدِيثٖ مِّثۡلِهِۦٓ إِن كَانُواْ صَٰدِقِينَ﴾. (الطور/۳۴)

ژباړه: نو که چېرې دوی رښتیا وایي، چې دا قران د الله تعالی کلام نه دی، د شاعر یا د ساحر یا د کاهن کلام دی، نو دوی خو دې د دغه قران په څېر معجز کلام راوړي او وړاندې دې کړي او خپل پیغمبر خاتم النبیین ته فرمایي:

﴿فَذَكِّرۡ فَمَآ أَنتَ بِنِعۡمَتِ رَبِّكَ بِكَاهِنٖ وَلَا مَجۡنُونٍ﴾. (الطور/۳۴)

ژباړه: پس ای پغمبره! ته خلکو ته پند او دعوت ورکوه، ته د خپل رب په نعمت درکولو سره چې نبوت او قران دی نه کاهن یعنې فال کتونکی او له خپل ځان څخه غیب ویونکی یې او نه لېونی یې او نه دې له خپل ځان څخه دغه قران جوړ کړی دی.

**د قرآن له تعلیم څخه ممانعت:**

په لومړۍ مرحله کې کافرانو، مومنانو ته اجازه نه ورکوله، چې خلکو ته د قران تعلیم ورکړي؛ ځکه هغوی پر دې پوهېدل چې قران کریم د الله تعالی معجز کلام او جامع قانون دی، دده پر وړاندې ځي، د طاغوت ګوند له ماتې سره مخامخ کېږي، له همدې امله به که چېرې د هغوی د کوم یو په کهول کې یو تن د اسلام په نعمت مشرف شو، نو د کهول، قبیلې او کوڅې متنفذینو به د هغه سخته او کلکه څارنه کوله، چې نورو ته د قران کریم

تعلیم ورنه کړي او نور د ځان ملګري نه کړي.
**د قرآن له تلاوت څخه ممانعت:**
د اسلام د مقدس دین د پرمختګ او اشاعت د مخنیوي لپاره څلورمه پروسه دا وه، چې مومنان یې په ډاګه سره د قران کریم تلاوت او لوستلو ته نه پرېښودل.
له همدې کبله مومنانو به د قران کریم تلاوت له کافرانو څخه پټ په پټه کاوه، دغه راز مشرکانو به زیار ویست، چې مکې ته به له بهر څخه خلک د حج او تجارت لپاره راتلل، نو مشرکان به ورته ورغلل او یا به یې خپل کور یا دوکان ته دننه کړل او له هر څه نه لومړی به یې دا خبره ورته کوله، چې خبردار اوسه، زموږ په ښار مکه کې یو سړی پیدا شوی دی، چې د نوي دین اعلان یې کړی دی او خلک د خپلو پلرونو او نیکونو له دین څخه باسي، زموږ د ډېر کسان یې ګمراه کړي دي، خو ګوره چې تا ګمراه نه کړي.
ددغه نوي دین د مدعي نوم محمد دی او هغه پخپلې جذابې وینا سره خلک جذب کوي، د هغه په کلام او دعوت کې جادو دی، هغه شاعر او کاهن دی، زموږ معبودان باطل ګڼي او د یو الله تعالی عبادت ته خلک دعوت کوي.
**د قرآن کریم د لوستلو پر مهال شور ماشور:**
او بیا کله چې د عمر بن الخطاب او سید الشهداء حمزه بن عبدالمطلب په اسلام راوړلو سره مسلمانان پیاوړي شول او رسول اکرم صلی الله علیه وسلم به په کعبة الله کې د مشرکانو پر وړاندې مومنانو ته په جهر سره د قران کریم تلاوت کاوه، نو مشرکانو سره وویل، کله چې قران کریم لوستل کېږي، نو تاسې شور ماشور کوئ، چې په صحیح توګه یې اورېدونکی وانه وري، نو تاسې به پخپل مقصد کې بریالي شئ، لکه چې الله تعالی په قران کریم کې فرمایلي دي:
﴿ وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لَا تَسْمَعُوا لِهَٰذَا الْقُرْآنِ وَالْغَوْا فِيهِ لَعَلَّكُمْ

تَغۡلِبُوۡنَ ﴿٢٦﴾. (حم السجده/ ۲۶)

ژباړه: او وايي هغه کسان چې کافران شوي دي، د قرآن کریم د قرائت پر مهال دغه قرآن ته چې محمد صلی الله علیه وسلم او مومنان يې لولي، غوږ مه نيسئ او د قرآن کریم د لوستلو پر وخت پخپل منځ کې شور ماشور واچوئ، ښايي چې تاسې پخپله مقابله کې برلاسي «غالب» شئ.

په لومړۍ مرحله کې د اسلام دښمنو ځواکونو له پلوه په فکري محاذ کې د اسلام او مسلمانانو په خلاف په فکري غزا او یرغل کې مذکورې پنځه واړه پروسې په هغه زمانه کې زياتې سختې او مهمې وې او د کافرانو همدومره وس رسېده، خو سرېېره پر دغو پنځو مهمو یرغلونو، د مکې مشرکانو به وخت په وخت د مدينې منورې يهوديانو او د نجران نصرانيانو ته د مشورې او هدایاتو ترلاسه کولو لپاره خپل قاصدان او استاذي هم لېږل، څو هغوی لارښوونه ورته وکړي، چې د اسلام او مسلمانانو په خلاف څه اقدامات وکړي او هغوی به هم مناسبې لارښوونې ورته کولې؛ مګر الله تعالی د هغوی ټول کېدُونه او مکرونه یو پر بل پسې شنډول.

***

# په دويمه مرحله کې

د اسلام د مقدس دين په دويمه مرحله کې که له يو پلو څخه د کفر مختلفو ملتونو د اسلام او اسلامي امت په خلاف سياسي او نظامي اتحادونه وکړل، د مقابلې مختلف او متعدد محاذونه يې په منظم ډول عيار او تيار کړل، خو له بل پلوه مسلمانانو د الله تعالی په فضل په هر اړخيزه توګه د خپل ځانګړي نظام خاوندان شول او لکه څرنګه يې چې په نورو محاذونو کې د شيطان د ګوند پرګنې ناکامې کړې، په فکري محاذ کې يې هم په لومړي دور کې ناکام کړي وو، خو په دويم دور کې يې په فکري محاذ کې د مختلفو عواملو له امله له تزلزل سره مخامخ کړل، چې له همدې امله په دوېمه مرحله کې د اسلامي امت فکري څرنګوالی د کافرانو د فکري يرغل او استعمار په مقابل کې پر دوو دورونو باندې تقسيموو:

**تاريخ:**

د فکري استعمار د دويمې مرحلې لومړی دور له (۶۲۲) مسيحي کال څخه د سپتامبر په درويشتمه د بعثت په (۱۳) کال او د هجرت په لومړی نېکمرغه کال د ربيع الاول له اتمې نېټې سره سم پيل شوی وو.

په دغه دور کې د مدينې منورې يهوديانو د نجران مسيحيانو د مکې مکرمې او د هغې د چاپېريال مشرکانو ټولو د اسلام په خلاف لاسونه او طاغوتي پلانونه سره يو کړل او له ټولو څخه زيات د مدينې منورې يهوديانو د اسلام په خلاف فکري سمپاشي پيل کړه او بيا ورپسې نورو د هغوی په مشوره د اسلام د پرمختګ په لاره کې خنډونه ايجادول، چې د دويمې مرحلې د لومړي دور د فکري غزو له جملې څخه څو مثالونه په لاندې توګه وړاندې کولی شي:

**د قرآن او اسلام په هکله تشکیک:**

د اسلام د مقدس دین د حقانیت په هکله د خلکو په زړونو کې د شک او تردید پیدا کولو په لړ کې یهودیانو لومړۍ پروسه دا پیل کړه او پخپل منځ کې یې پرېکړه وکړه، چې له موږ څخه یو شمېر سپین روبي او د نفوذ خاوندان د ورځې په پیل کې باید مسلمانان شي او په ماښام کې بېرته کافر شي، څو خلک مسلمان نه شي او د اسلام په هکله شکمن شي، لکه چې الله تعالی په قران کریم کې د هغوی دغه مؤامره افشا کړه او فرمایلي یې دي:

وَ قَالَتْ طَّآئِفَةٌ مِّنْ اَهْلِ الْكِتٰبِ اٰمِنُوْا بِالَّذِيْٓ اُنْزِلَ عَلَى الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا وَجْهَ النَّهَارِ وَ اكْفُرُوْٓا اٰخِرَهٗ لَعَلَّهُمْ يَرْجِعُوْنَ ﴿۷۲﴾ وَ لَا تُؤْمِنُوْٓا اِلَّا لِمَنْ تَبِعَ دِيْنَكُمْ ﴾.

(ال عمران/۷۲- ۷۳)

ژباړه: او د اهل کتابو، یعني یهودیانو له جملې څخه یوې ډلې نورو ته وویل: د ورځې په پیل کې پر هغه کتاب «قران» ایمان راوړئ، چې پر مومنانو نازل کړای شوی دی او بیا د ورځې په پای کې پرې کافران شئ، د دې لپاره چې مسلمان شوي خلک بېرته له ایمان او اسلام څخه رجوع وکړي. مګر دا کار به هغه څوک له تاسې څخه کوي، چې په یهودیت کې ټینګ وي، یعنې په زړه کې یهودیان وي او په ظاهره کې د ورځې مومنان کېږي او په شپه کې بېرته کافران کېږي، څو نور خلک د اسلام او قران په هکله شکمن شي او بېرته پښېمان شي او له اسلام څخه بېرته خپل پخواني دین ته ستانه شي.

د همدغه اسلام دښمنه شوم مقصد لپاره به په دستوري توګه هره ورځ یو څو یهودیانو به په منافقانه او مغرضانه ډول د ورځې په پیل کې د ایمان راوړلو اعلان وکړ او کله به چې ورځ تېره شوه، په مازدیګر او ماښام کې به یې له اسلام څخه د بېرته جار وتلو اعلان وکړ، یو شمېر انړو او ضعیف

الاعتقادو مؤمنانو به له دوی څخه پوښتنه وکړه، چې تاسې ولې له اسلام راوړو څخه پښېمانه او بېرته یهودیان شوئ؟ نو هغوی به په ځواب کې ورته وویل: موږ له خپلو لویو، لویو عالمانو څخه کله چې پوښتنه وکړه، نو هغوی راته وویل، محمد صلی الله علیه وسلم هغه رسول نه دی، چې په تورات کې یې الله تعالی موږ ته زېری راکړی دی، نو ځکه موږ بېرته خپل یهودیت ته واوړېدو، د دوی له دغه منافقانه چلند څخه دېر داسې نوي مسلمانان شوي عرب او د نورو قومونو وګړي به د اسلام او د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د نبوت په هکله شکمن کېدل؛ دا ځکه چې اهل کتاب خو هغوی ته د علم او فضل خاوندان ښکاره کېدل، نو شیطان به د هغوی په زړونو کې دا خیال او تشویش پیدا کړ، چې که د اسلام دین حق وای، نو دغو پوهانو به یې له منلو څخه ولې غاړه غړوله؛ بلکې له هر چا څخه دمخه به دوی منلی وای.[1]

**تورات او یهودیت، مسیحیت او انجیل ته بلنه:**

د اسلام د حق او الهي دین په خلاف په مدینه منوره کې یهودیانو او نصرانیانو دویمه لویه مقابله دا پیل کړه، چې مسلمانان به یې د اسلام په هکله لومړی شکمن کول او بیا به یې خپل خپل دین ته دعوت کول، لکه چې الله تعالی فرمایلي دي:

﴿ وَقَالُوا كُونُوا هُودًا أَوْ نَصَارَىٰ تَهْتَدُوا ﴾. (البقره/۱۳۵)

ژباړه: او اهل کتاب یهود او نصرانیان مسلمانانو ته وایي، چې یهودیان شئ یا نصرانیان شئ، نو تاسې به سمه لاره بیاموم‌ئ.

یعنې یهودیانو به مسلمانانو ته وویل، چې حق دین یهودیت دی، نو که چېرې تاسې غواړئ چې سمه لاره بیاموم‌ئ، نو یهودیان شئ او نصرانیانو به ورته وویل، چې نصرانیت حق دین دی او که تاسې غواړئ، چې سمه لاره

---

۱ موضح الفرقان تفسیر: ۱ /۳۴۰مخ.

پیاموموځ، نو نصرانیان شئ، همدغه سمه لاره ده او هر یو به دا زیار ویسته، چې مسلمانان له دین او اسلام څخه پښېمانه کړي او پخپله طاغوتي لاره یې رهي کړي.

حافظ ابن کثیر رحمه الله پخپل تفسیر، لومړي ټوک کې لیکلي دي:

یهودیانو به هڅه کوله، چې مسلمانان یهودیت ته واړوي او ددې کار لپاره به یې له مسلمانانو سره بحثونه کول، هغوی ته به یې د خپل دین د حقانیت دلایل ویل او د تحریف کړي تورات صحیفې به یې ورکولې، لکه چې یو ځل نبي صلی الله علیه وسلم د عمر بن الخطاب رضي الله تعالی عنه په لاس کې یوه صحیفه ولیدله، نو پوښتنه یې ورڅخه وکړه، چې دا څه دي؟

عمر رضي الله تعالی عنه ورته وویل: ای د الله تعالی رسوله! دا د تورات صحیفه ده، ماته یهودیانو د لوستلو لپاره راکړې ده.

رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته په غوسه شو او هغه یې د تورات له لوستلو څخه منع کړ او نورو ټولو مسلمانانو ته یې حکم وکړ، چې له یهودیانو سره عقیدوي بحثونه کول، له هغوی سره دوستي او اندیوالي کول بند کړي؛ ځکه چې یهودیان غواړي چې مسلمانان پخپلو طاغوتي دلایلو او بحثونو سره له اسلام څخه واړوي.

دغه راز په مدینه کې د نصرانیت ستر داعي او راهب ابو عامر خزرجي هم د اسلام په خلاف دعوت پیل کړی وو او مسلمانان به یې نصرانیت ته دعوت کول او بیا په خاصه توګه پخپل قوم خزرج کې چې له ډېرې مودې راهیسې په زهد، تقوی سره مشهور وو او په سلګونو معتقدین او مریدان یې لرل، چې بیا هغوی ته الله تعالی هدایت وکړ او مسلمانان شول، نو ددغه ګمراه راهب په زړه کې له اسلام سره د دښمنۍ اور بل شو، د شیطان په لمسه یې د اسلام په خلاف د خپل منسوخ دین دعوت پیل کړ، مګر د اسلام د چټک پرمختګ له امله یهودیان هم الله تعالی ناکام کړل، خوار او ذلیل له مدینې

ابو عامر راهب په (۶۳۰) مسیحي کال کې له (۸) هجري کال سره سم له مدینې منورې څخه روم ته وتښتده، مگر هلته هم له خپل دعوت څخه صرف نظر نه شو، خپلو پیروانو ته یې لیک ولیږه، چې په هغه کې یې داد ورکړی وو، چې ما د روم له مسیحي پاچا سره خبرې کړې دي او ډېر ژر به موږ مسیحي پوځ تیار کړو او پر مدینه به یرغل وکړو او د مکې پرمخ به د اسلام نوم له منځه یوسو، خو د دې لپاره چې موږ تاسې په مدینه کې د غونډېدو یو مرکزیت ولرو، تاسې د قباء د جامع جومات په مقابل کې د جومات په نوم یو مرکز جوړ کړئ، لگښت او مصارف یې زه درته لیږم.
هغوی دده له هدایت سره سم جومات جوړ کړ او کله چې نبي اکرم صلی الله علیه وسلم پوښتنه ورڅخه وکړه، چې تاسې ولې دغه جومات جوړ کړ؟ نو د ابو عامر منافقانو پیروانو سوگندونه ورته کول، چې موږ بل هیڅ هدف نه لرو، پرته له دې څخه چې په باد او باران کې موږ قبا جومات ته تللی نه شو او بل معذور معذور وگړي او بوډاگان د شپې پر مهال د قبا جومات ته تللی نه شي؛ نو ځکه مو دغه جومات جوړ کړ.
رسول الله صلی الله علیه وسلم هم نور څه ورته ونه ویل او ددې لپاره چې ځینې خوش باوره مسلمانان وغولوي، دغه منافقان نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته لاړل او په ډېر احترام یې غوښتنه ورڅخه وکړه، چې د دغه نوي جومات افتتاح وکړي او له ټولو څخه د مخه رسالت ماب لمونځ په کې ادا کړي.
نبي کریم صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل: زه خو اوس د تبوک غزا ته ځم او کله چې بېرته راغلم، نو ان شاء الله در به شم او ستاسې جومات به افتتاح کړم.
هماغه وو چې الله تعالی د دوی طاغوتي راز خپل پیغمبر ته افشا کړ او په دې هکله یې وحې ورته نازله کړه او داسې یې ورته وفرمایل:

﴿وَ الَّذِیۡنَ اتَّخَذُوۡا مَسۡجِدًا ضِرَارًا وَّ کُفۡرًا وَّ تَفۡرِیۡقًۢا بَیۡنَ الۡمُؤۡمِنِیۡنَ وَ اِرۡصَادًا لِّمَنۡ حَارَبَ اللّٰهَ وَ رَسُوۡلَهٗ مِنۡ قَبۡلُ ؕ وَ لَیَحۡلِفُنَّ اِنۡ اَرَدۡنَاۤ اِلَّا الۡحُسۡنٰی ؕ وَ اللّٰهُ یَشۡهَدُ اِنَّهُمۡ لَکٰذِبُوۡنَ ﴿۱۰۷﴾ لَا تَقُمۡ فِیۡهِ اَبَدًا ؕ﴾ (التوبه/۱۰۷-۱۰۸)

ژباړه: او ځینې هغه منافقان دي، چې مومنانو ته د ضرر رسولو په تکل یې جومات جوړ کړی دی او د مومنانو بېرته د کافر کولو او د مومنانو په منځ کې د بېلتون اچولو او د هغه چا د بېرته راتګ په انتظار یې جوړ کړی دی، چې پخوا له دې څخه یې له الله تعالی سره او د الله تعالی له رسول سره جنګ کړی دی او ای محمده! (صلی الله علیه وسلم) دغه جومات جوړوونکي منافقان تاته قسمونه خوري، چې موږ ددغه جومات په جوړولو کې له نېکۍ کولو څخه پرته بله هیڅ اراده نه لرو او الله تعالی شاهدي کوي، چې دوی پخپلو دغو قسمونو کې درواغجن دي، نو ته د دوی په دغه جومات کې د لمانځه د ادا کولو لپاره هیڅکله هم مه درېږه.

د دغو مبارکو ایتونو له نزول څخه وروسته رسول الله صلی الله علیه وسلم خپلو څلورو تنو صحابه وو مالک بن خشم، معن بن عدي، عامر بن سکن او وحشي ته حکم وکړ، چې لاړ شي او د منافقانو جوړ کړی جومات له بېخ څخه ونړوي، هغوی لاړل او په (۶۳۱) مسیحي کال له نهم هجري کال سره سم یې د مسیحي دعوت دغه مرکز ته اور واچاوه او له خاورو سره یې ایره وګرځاوه، چې د جومات په نوم یې جوړ کړی وو، چې په دې توګه د ابو عامر راهب اسلام دښمنه ارمانونه او طاغوتي پلانونه شنډ او ناکام شول او تورمخ د شام په قنسرین کې مړ شو.(۱)

**یادونه:** د اسلامي امت لومړنی مؤرخ محمد بن اسحاق متوفی (۱۵۰ هجري پخپل کتاب «کتاب السیر والمغازی» کې لیکلي دي، د مسجد

---

۱- موضع الفرقان: ۳ /۱۳۵۲ مخ.

ضرار جوړوونکي دولس تنه منافقان وو، چې نومونه یې په لاندې ډول دي:

۱- جذام بن خالد، چې د مشهورې مخضرمي شاعرې خنساء پلار و.

۲- ثعلبه بن حاطب.

۳- معتب بن قشیر بن زید بن العطاف.

۴- ابو حبیبه ابن الازعر ابن زید بن العطاف.

۵- عباد بن حنیف.

۶- حارية بن عامر (حمار الدار).

۷- مجمع بن جارية چې بیا ددغه جومات امام هم وو.

۸- زید بن جارية.

۹- نبتل بن الحارث.

۱۰- بخرج.

۱۱- بجاده بن عثمان.

۱۲- ودیعه بن ثابت.

مجمع بن جاریه او زید بن جاریه بیا وروسته توبه کړې او زید بن جارية د خیبر په غنیمت کې خاتم الانبیاء صلی الله علیه وسلم برخه هم ورکړې وه او ستر غازي وو او مجمع د امیر المومنین عمر رضي الله عنه د خلافت په موده کې امام مقرر کړای شو.[۱]

**د نبوت دعوی:**

دریم فکري جنګ چې د اسلام په خلاف په دویمه مرحله کې د طاغوت د ګوند پلویانو پیل کړ، هماغه د نبوت درواغجنه دعوه وه، څو د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم د حق نبوت، بعثت او رسالت په هکله خلک په عقیدوي او فکري توګه شکمن کړي.

له ټولو څخه لومړی دغه فکري یرغل د مسیلمه کذاب له خوا څخه پیل

---

۲- اصح السیر: ۳۳۵مخ

شو، مسیلمه کذاب په نهم هجري کال کې له (۶۳۱) مسیحي کال سره سم د خپل قوم بني حنیفه له یو وفد سره مدینې منورې ته راغی، د وفد نور غړي مسلمانان شول، مګر ده محمد صلی الله علیه وسلم ته وویل: که عربي سیمه نیمه ما ته راکړې، نو زه پر تا ایمان راوړم، رسول اکرم صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل: که ته د مادیاتو په خاطر ایمان راوړې، نو د خرما دغه یوه لښته به هم درنه کړم، هماغه وو، چې مسیلمه خپل وطن یمامه ته لاړ، نو د نبوت دعوی یې وکړه.[۱]

دغه راز د یمن اسود عنسي د نبوت دعوت کړې وه او د یمن د یهودیانو په لمسه په (۶۳۳) مسیحي کال کې له (۱۱) هجري کال سره سم مدینې منورې ته رهي شو، لکه چې امام بخاري په کتاب المغازي کې او سیرت پوهانو لیکلي دي:

د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم له وفات څخه یوه ورځ د مخه نبي صلی الله علیه وسلم ته خبر ورسېد، چې د یمن د صنعا لوی کذاب اسود عنسي قتل کړای شو او قاتل یې «فیروز دیلمي» نومېده.[۲]

وریسې د الجزیره یوې نصرانۍ ښځې هم د نبوت دعوه وکړه او دغه ښځه سجاح بنت سوید نومېده، دا به پر شرمښ «لېوه» سورېده او ویل به یې دا ددې د نبوت معجزه ده، چې بیا یې له مسیلمه کذاب سره واده وکړ او دواړو په ګډه سره خلکو ته زنا کول او شراب خوړل روا وګرځول او لمونځونه یې ورته معاف کړل، مګر د معاویه رضي الله تعالی عنه د امارت په زمانه کې دغې ښځې توبه کړې وه او مسلمانه شوې وه.

همدا ډول ابو طیب متنبي او طلیحه بن خولید اسدي هم له هغو درواغجنو دعوا کوونکو څخه وو، چې د نبي صلی الله علیه وسلم په ژوندون کې یې د

---

۱- اعجاز القران: ۲۰۸ مخ.

۲- اصح السیر: ۴۱۶ مخ.

نبوت درواغجنه دعوی کړې وه، ددې لپاره چې د امام الانبیاء محمد صلی الله علیه وسلم د حق نبوت په هکله خلک شکمن کړي.
د اسلامي دعوت د پرمختګ په لاره کې خنډونه ایجاد کړي، مګر الله تعالی د دغو ټولو طاغوتي مدعیانو هلې ځلې شنډې کړې او خپل حق دین اسلام یې بریالی کړ.

په دویم دور کې:

د اسلام د مقدس دین د دویمې مرحلې په دویم دور کې د شیعه او خوارجو سیاسي ګوندونو په منځته راوړو سره یهودیانو پخپلو اسلام دښمنه فعالیتونو کې یوه نوې اضافه وکړه او د دغه دور تاریخ په (۶۵۲) مسیحي کال له (۳۵) هجري کال سره سم منځته راغلی دی او پیل یې د یمن د صنعا د ښار د عبدالله بن سبا یهودي له پلوه شوی وو او کابو یو سل او پنځوس کلونه یې دوام وکړ، یعنې تر (۸۲۰) مسیحي کال پورې له (۱۹۸) هجري قمري سره سم یې دوام وکړ.
په دغه یوه نیمه پیړۍ کې یهودیانو او مسیحیانو په ګډه خپلې هر اړخیزې هلې ځلې په کار واچولې، چې اسلامي امت ټوټې ټوټې او په فکري لحاظ یې د اسلام د مقدس دین له اساساتو او قوانینو څخه لرې کړي او د یوازیني هر اړخیز نړیوال نظام په توګه پر بشري نړۍ حکومت ونه شي کولای.

دریم دور:

د دویمې مرحلې دریم دور له (۸۲۰) مسیحي کال څخه پیل او په (۱۰۹۶) مسیحي کال پورې یې په خاصه توګه یې دوام وکړ، په دغه دور کې په اسلامي امت کې د لومړي ځل لپاره د فلسفې فتنه منځته راغله او په (۱۹۸) هجري کال کې د عباسیانو د اتم خلیفه مامون الرشید د خلافت په موده کې د مامون په غوښتنه د مسیحي مشاورینو په بیا بیا هڅولو او تشویق په مسلمانانو کې ترویج کړه، چې د اسلامي امت د عقیدوي او

فکري بدبختۍ او زوال باعث وګرځېده، لکه چې امام قرطبي رحمه الله متوفی (٦٧١) هجري د خپل تفسیر الجامع لاحکام القران په لومړي ټوک د بقرې د سورت د یو سل درې اویایم (۱۷۳) مبارک ایت په تفسیر کې ویلي دي:

په اسلامي امت کې فلسفه د لومړي ځل لپاره له دویمې هجري پېړۍ څخه وروسته د مامون د حکومت په زمانه کې هغه وخت منځته راغله، چې د لومړیو فلاسفه وو کتابونه له یوناني، عبراني، سریاني، کلداني او اشوري ژبو څخه عربي ته ترجمه کړای شو، نو د مسلمانانو ترمنځ د جوهر او عرض، هیولی او صورت، لاهوت او ناسوت کلمات تلفظ کول پیل شو، د جوهر په ثبوت او د عرض په ماهیت کې او دا چې عالم قدیم دی او که حادث دی، د مسلمانانو په منځ کې اختلافات پیل شول، د بدعتیانو او نورو هغو خلکو، چې په زړونو کې توروالي او د ګمراهۍ ناروغي وه، دغه اصطلاحات زده کړل او په دغو زده کړو سره د هغو مقصد پر اهل سنتو او سوچه مسلمانانو خپل عقلي تفوق ثابتول وو او د اسلامي امت د کمزورو مسلمانانو په فکري او عقیدوي سوچه اسلامي مسایلو کې د شکونو او شبهاتو پیدا کول وو.

دغه فلسفي بحثونه ورځ په ورځ مخ په زیاتېدو و، تردې چې په اسلامي امت کې مختلفې بدعتي فرقې پیدا شوې او پخپله مامون څخه هم خپل سوچه اسلامي عقیده ګډه وډه شوه، ان تر دې چې هغه هم پر دې عقیده معتقد شو، چې قران مخلوق دی او نه یوازې هغه پخپله دا عقیده لرله؛ بلکې نور مسلمانان به یې هم د دغې عقیدې منلو ته په زور مجبورول او بندیان یې کړل او امام احمد بن حنبل رحمه الله یې وواهه،[1] امام سیوطي رحمه الله پخپل کتاب تاریخ الخلفاء کې لیکلي دي:

---

۱- تفسیر قرطبي: ۱ /۱۴۳- ۱۴۴ مخونه.

له مامون څخه وروسته هم عباسي خلفاوو زښت ډېر هغه حق پرست علماء تعذیب او بندي کړل، چې هغوی قران کریم ته مخلوق نه وایه.[۱]

**د فلسفې د ترویج اساسي هدف او د هغې منځته راوړونکي:**

لکه څرنګه چې امام قرطبي رحمه الله ویلي دي، په اسلامي امت کې د فلسفې له ترویج څخه د اسلام دښمنو ملتونو یوازینی مقصد دا و، چې په مسلمانانو کې د هغوی فکري روح ووژني، له قران او سنت څخه یې لرې او ګمراه کړي او دا خبره پخپله د هغه مسیحي راهبانو او سیاسي واکمنانو کړې ده او دا هغه څوک وو، چې په مسلمانانو کې یې د فلسفې فتنه خپره کړه، لکه چې علامه شبلي نعماني پخپل کتاب المامون دویم ټوک کې په اسلامي امت کې د فلسفې د فتنې د منځته راتلو تاریخ او کیسه بیان کړې او د فلسفې ترویج کوونکي یې په ګوته کړي او داسې یې ویلي دي:

د مامون په دربار کې یو مسیحي سکالر (عالم) و، چې مامون ته له هر چا څخه زیات محترم و، دغه مسیحي شخص جبرئیل بن بختیشوع نومېده، مامون د خپل دربار اداري چارې هغه ته سپارلې وې او دا فرمان یې صادر کړی و، چې هر څوک پر کوم سرکاري منصب مقررولی شي، لومړی منظوري باید له جبرئیل بن بختیشوع څخه واخلي، همدا وجه وه، چې په زیاتو علمي ادارو کې مسیحي مدیران مقرر کړای شوي وو.

همدغه مسیحي به همېشه مامون ته د فلسفې ستاینه کوله او هغه به یې د فلسفې کتابونو ترلاسه کولو او په عربي ژبه ترجمه کولو ته هڅاوه او هم ده په مشوره مامون د روم قیصر ته فرمان ولېږه، چې په هغه کې یې ورته لیکلي وو، د ارسطو او نورو فلاسفه وو چې هر څومره د فلسفې کتابونه وي، بغداد ته یې راولېږه.

د روم پاچا چې لیک ولوست، نو حیران شو، چې اوس مامون ته د فلسفې

---

۱. تاریخ الخلفاء للسیوطي: ۱۴۹ مخ.

کتابونه له کومه لاس ته راوړي؛ ځکه چې پخپله ده ته هم معلوم نه و، خپل اعیان او درباري خواص یې غونډ کړل او د مامون لیک یې ورته ولوست او بیا یې ورته وویل، چې که له تاسې څخه چاته د فلسفې کتابونه معلوم وي ووایئ، یو مسیحي راهب اوچت شو او هغه پاچا ته یې وویل:

ماته معلوم دي، پاچا ورته وویل، چېرته دي؟ راهب ورته وویل په یونان کې د شاهي محل په یوه خونه کې د مسیحیت ستر قاید قسطنطین کېښودلي دي او هغه دا ځکه بند کړي وو، چې د هغه په زمانه کې خلکو دومره زیاته مینه له فلسفې سره پیدا کړې وه، چې له قسطنطین سره دا وېره پیدا شوه، چې د فلسفې د ترویج په وجه د مسیحیت دین له منځه لاړ نه شي، نو هغه حکم وکړ، چې د فلسفې ټول کتابونه ټول کړي، هغه یې غونډ کړل او په شاهي محل کې یې به یوه خونه کې قید کړل او قلف یې ورته واچاوه او یوه لوحه یې ورسره نصب کړه، چې پر هغې یې لیکلي وو: هر مسیحي پاچا چې حاکم کېږي، دغې خونې ته باید یو قلف واچوي.

د روم پاچا چې له راهب څخه دا واورېدل، نو پخپله یونان ته لاړ او هماغه راهب هم ورسره و، کله چې پخواني شاهي محل ته ننوتل او هماغې خونې ته لاړل، ګوري چې په رښتیا هم زښت ډېر قلفونه دروازې ته پراته دي، قلفونه یې مات کړل او د فلسفې ټول کتابونه یې ورڅخه وویستل او له ځان سره یې روم ته یوړل.

د فلسفې کتابونو له میندلو څخه وروسته د روم له مسیحي پاچا سره دا اندېښنه پیدا شوه، چې ایا له مسلمانانو سره دغه فلسفي فیاضي او علمي پېرزوینه په مسیحي مذهب کې روا ده؟ او دی پردې دیانتاً نه ګناهګارېږي، چې د مسلمانانو پاچا ته دغه علمي زېرمه ولېږي؟ خپله کابینه یې راغونډه کړه، چې مسیحي علماء هم په کې وو او په دې هکله یې مشوره او فتوی ورڅخه وغوښته، هغوی په اتفاق سره ورته وویل:

ارو مرو مسلمانانو ته د فلسفې کتابونه ولېږه؛ ځکه چې دا پر هغوی علمي

پېرزوینه نه ده؛ بلکې د اسلامي امت لپاره د تباهۍ باعث ګرځېږي؛ ځکه کله چې فلسفه په مسلمانانو کې رواج شي، نو د هغوی په منځ کې عقیدي اختلافات پیدا کېږي او د هغو د وحدت د له منځه وړلو سبب ګرځېږي.
د روم پاچا د هغوی خبره ومنله او مامون ته یې د فلسفې کتابونه پر پنځو اوښانو بار کړل او ورته ویې لېږل.
مامون د کتابونو په لیدو ډېر خوښ شو، مسیحي او مجوسي ژباړونکي یې د فلسفې د کتابونو پر ترجمه کولو وګمارل او هر یو ته یې اوچتې اوچتې تنخواوې مقررې کړې، لکه چې علامه شبلي نعماني لیکلي دي:
یوازې جبرئیل بن بختیشوع ته یې د میاشتې پنځه ویشت لکه، یعنې دوه نیم میلیونه درهمه ورکول، چې په دې کې د مامون د میرې مور زبیده خانم هغه پنځه ویشت زره درهمه هم شامل و، چې هره میاشت به یې د طبیب په توګه هغه ته ورکولې.[۱]
ابن ندیم پخپل کتاب الفهرست کې لیکلي دي:
د مامون دویم ستر مسیحي مترجم حنین بن اسحاق و، چې د مامون د بیت الحکمت عمومي مدیر هم و او نوموړي په یوناني ژبه او په عربي ژبه کې زیاته پوهه او مهارت لاره او د مامون لپاره یې یوازې د اپیقور «بقراط» لس فلسفي کتابونه عربي ته ترجمه کړي وو.[۲]
**نتیجه:**
په اسلامي امت کې د فلسفې له شیوع او خپرېدو څخه هماغه نتیجه لاس ته راغله، چې اسلام دښمنه مسیحي او یهودي طاغوتانو غوښتنه او هغه دا چې په رښتیا هم د فلسفي اصطلاحاتو په ترویج سره د مسلمانانو ترمنځ عقیدوي اختلافات پیدا شول، د متکلمینو او علم الکلام په نوم د قران او

---

۱. المامون، ج۲/۱۶۳ـ ۱۶۴ـ ۱۶۵.
۲. الفهرست، مقاله هفتم: ۵۸۴ مخ.

سنت د سوچه عقیدې په مقابل کې نوې فتنه ایجاد شوه، د متکلمینو د نوې فرقې منځته راغلي معتزله، جهمیه، مشبهه، مرجئه او نورې مبتدعه ډلې ایجاد شوې او په اسلامي امت کې د عقیدوي اختلافاتو داسې خونړۍ توپان مسیحیانو او یهودیانو رامنځته کړ، چې په لکونو او میلیونو مسلمانان یې د بې دینۍ کفر او ګمراهۍ په سمندر کې لاهو کړل.

په دغو متکلمینو او فیلسوفانو کې د ابن راوندي زندیق په څېر وګړي هم و، چې د یهودیانو د خوشحالتیا او له هغوی څخه د روپیو اخیستلو په بدل کې یې د پیغمبرۍ دعوی وکړه، د قران کریم په مقابل کې یې د کتاب التاج په نوم خپل کتاب ولیکه او بیا یې خلکو ته ویل، چې دا د الله تعالی له پلوه ده ته نازل شوی دی او د کتاب التاج په نزول سره قران کریم منسوخ دی، نعوذ بالله. سر بېره پر دې ابن راوندي د یهودیانو لپاره د اسلام په خلاف نور کتابونه هم لیکلي وو، لکه چې ابن ندیم پخپل کتاب الفهرست کې لیکلي دي:

ابن راوندي د ابو عیسی بن لاوي یهودي اهوازي لپاره د روپیو په بدل کې د اسلام په خلاف مختلف کتابونه لیکلي وو، چې د هغو له جملې څخه کتاب التاج، کتاب القضیب الذهب، کتاب الفرید او کتاب المرجان د خاصې یادونې وړ دي.[۱]

شیخ مصطفی صادق الرافعي پخپل کتاب: اعجاز القران کې د ابن راوندي زندیق په هکله لیکلي دي: ابن راوندي به د اسلام په خلاف نصرانیانو او یهودیانو ته د روپیو په بدل کې کتابونه لیکل او کله به چې یهودیانو او نصرانیانو هغه ته روپۍ ورنه کړې، نو ابن راوندي به بیا د خپل لیکلي کتاب په تردید کې بل کتاب ولیکه، چې په هغه کې به یې د قران او د اسلام د مقدس دین حقانیت ثابت کړ.[۲]

---

۱- الفهرست، مقاله پنجم: ۱۴۰-۱۴۱ مخونه.

۲- اعجاز القران: ۲۰۸ - ۲۱۴ مخونه.

او ابن ندیم لیکلي دي، چې ابن راوندي د ابو عیسی بن لاوي یهودي په کور کې اوسېده او د هغه په کور کې مړ هم شو.

لنډه دا چې د اسلامي امت په خلاف په دویمه مرحله کې یهودیانو او مسیحیانو د مسلمانانو د غزو فکري لپاره فلسفه د یوې کامیابې حربې په توګه استعمال کړه او تر یو حده پورې د مسلمانانو په فکري استعمار کې بریالی هم شو، مګر که ډېر جزوي هم و، خو تر اوسه پورې د فکري استعمار د فلسفې فتنه د علم کلام په نوم او پخپله فلسفه په اسلامي امت کې باقي پاتې ده.

**خلاصه:** د دویمې مرحلې په درې واړو ادوارو کې که څه هم د طاغوت د حزب او ډلو، یعنې یهودیت او مسیحیت د اسلام د مقدس دین د پرمختګ په لاره کې د هر راز خنډونو اچولو هڅه وکړه او په جزوي توګه یې اسلامي امت له فکري ستونزو سره مخامخ کړ، تولنیزې ضربې او تاړاکونه یې ورکړل، مګر په دغه مرحله کې د اسلام د مقدس دعوت لمن له دې هرڅه سره سره ورځ په ورځ پراخېده، مسلمانانو د افریقا ګېډه وڅیرله او په بطن یعنې هسپانیه کې یې خپل حکومت ورته جوړ کړ، هند او چین ته یې قراني دعوت ورساوه، په همدغه دور کې مسلمانانو امریکا کشف کړه، د عاج له ساحل څخه نیولي د چین تر دېوال پورې یې د اسلامي نظام لمن وغځوله او دغه مرحله په سیاسي او دعوتي لحاظ د اسلام خورا بریمنه مرحله وه.

**په درېیمه مرحله کې:**

د اسلامي امت په خلاف د کفري ملت د غزو فکري، یعنې فکري استعمار درېیمه مرحله له (۱۲۶۵) مسیحي کال څخه له (۶۴۳) هجري قمري کال سره سمه پیل شوې ده، چې تر اوسه پورې دوام لري.

دغه مرحله وروسته له هغه څخه پیل شوه، چې کفري ملت د مسلمانانو په بېخې له منځه وړلو کې دوه سوه کلنو صلیبي جنګونو په نظامي یرغل کې تورمخ او ناکام شول.

سره له دې چې پخپله مسیحي مؤرخ ډاکتر ګوستاولوبون پخپل کتاب

«تمدن اسلام او عرب» کې ویلي دي:
په صلیبي جنګونو کې دومره مسیحیانو برخه اخیستې وه، چې کتونکو به ګومان کاوه، چې ټوله اروپا د اسیا پر لور وخوځېدله او د دوی له ننګریرونو او جذباتو څخه داسې ښکارېده، چې یو مسلمان به هم ژوندی پرېنږدي او همدغه یې هوډ او اراده هم وه، مګر الله تعالی صلیبیان پخپله دغه شومه اراده کې بریالي او کامیاب نه کړل، که څه هم د ډاکتر ګوستاولوبون له وینا سره سم صلیبي وحشیانو د مسلمانانو پر عام قتلان هیڅ سپما ونه کړه، ان تر دې چې د حاملو ښځو به یې په ژوندون ګېډې څیرولې، چې سره زر به په کې وي، د مسلمانانو کوچنیان به یې له زانګو څخه راواخیستل، بیا به یو مسیحي پورته ګوزار کړ او بل به د توري ګوزار پرې وکړ، په هوا کې به یې دوه ټوټې کړ، د ماشوم مور به ورته کتل او دوی قسي القلبو به یې له بچیانو سره دغه ډول خونړۍ لوبې کولې او د ځانونو لپاره یې مشغولا ګڼله او کله به یې چې په توره ټوټې کړ، نو بیا به یې دغه ماشوم په اور کې سوځاوه، لکه چې دغه کیسې د روم د امپراتور لور «انکمن» پخپله کړې دي او د هغې د خپلو سترګو لیدلې حالت دی.[۱]
مسیحي وحشیانو پخپلو دغو وحشي یرغلونو سره چې له (۱۰۹۶) مسیحي کال څخه یې پیل کړی وو او تر (۱۲۹۲) مسیحي کال پورې جاري وو، بله هیڅ ګټه ترلاسه نه کړه، پرته له دې څخه چې د جنګونو په دوران کې په شام، فلسطین او اندلس کې یې پخپلو سترګو اسلامي تهذیب او تمدن مشاهده کړ، د مسلمانانو اوچت او اعلی اخلاق یې ولیدل، د هغوی د ژوند، ثقافت او انساني چلن اوچتو معیارونو او علمي ذوق، د اشبیلیه، طلیطله، قرطبه او صقلیه علمي جامعاتو او مدرسو په زړه پورې اغېزه پرې وکړه او له علم سره یې اشنا کړل.

---

۱- تمدن اسلام او عرب: ۳۹۱- ۴۱۸ مخونه.

د دغو علمي مدرسو په لیدلو سره مسیحي امپراتور Fredric د لومړي فاردریک په فرمان سره په (۱۱۸۵) مسیحي کال کې د علومو د زده کړې لپاره د اروپا په Blolgne بولون کې لومړی پوهنتون جوړ کړای شو، چې بیا له هغه څخه وروسته د دیارلسمې پېړۍ تر نیمایي پورې په اروپا کې دولس نور پوهنتونونه په لاندیني ترتیب سره جوړ کړای شوي وو.

په هسپانیه کې په (۱۲۱۲) هجري کال کې د (Velencia) ویلنزا پوهنتون په (۱۲۳۰) عیسوي کال کې د Salamanca سلمانکا پوهنتون په (۱۲۵۴) عیسوي کال د Mercia مرسیا پوهنتون جوړ کړای شو، په (۱۲۹۰) مسیحي کال کې په پرتګال کې Lishbon د لیزبون پوهنتون او په (۱۳۰۰) مسیحي کال کې د Coitmber کوتمبره پوهنتون جوړ کړای شو، په فرانسه کې په (۱۲۳۰) مسیحي کال کې Tuolose د تولوز پوهنتون او په (۱۳۰٦) مسیحي کال کې د Orlean اورلینز پوهنتون جوړ کړای شو، په ایتالیا کې په (۱۲۱۲) مسیحي کال Padua پیډوا پوهنتون په (۱۲۲۴) مسیحي کال د Roma روما Naples نیپلز پوهنتون جوړ کړای شو، په (۱۲۴۴) مسیحي کال Balliol پوهنتون جوړ کړای شو، په انګلستان کې په (۱۲٦٦) مسیحي کال بیلیل پوهنتون او په (۱۲۸۴) مسیحي کال کې د Peter House پیټر هاوس پوهنتون جوړ کړای شو.[۱]

په دغو پورتنیو مسیحي پوهنتونونو کې هغو مسیحي استاذانو تدریس پیل کړ، چې د اسلامي امت په پوهنتونونو کې یې علمي فنون لکه طب، جغرافیه، حساب، کیمیا، علم الحیات او داسې نور له مسلمانانو پوهانو څخه زده کړي وو.

۱- Universities of Europe in the Middie Vol II Page ۳۰-۸۱ by H. Ro Shdal په اروپا کې د پوهنتونونو پیل د چاپ تاریخ: ۱۸۹۵.

**پخوانۍ حربې او نوي تدابير:**

منحرف يهوديت او ګمراه شوې مسيحيت په دغې درېيمې رواني مرحلې کې د اسلام په خلاف خپل منځي اتحاد وکړ او خپلې ټولې دښمنۍ او مخالفتونه يې شاته وغورځول، دا وروسته له دې شخه چې مسيحيت په طولاني صليبي جنګونو کې د اسلامي امت پر بشپړ تباه کولو کې ناکام شو، نو دواړو لاس سره يو کړ، د خپلو پلرونو او نيکونو پخوانيو هغو حربو ته يې مراجعه وکړه، چې د اسلام په پيل کې هغوی، يعنې مشرکانو، يهوديانو او نصرانيانو په کار اچولې وې.

او هماغه عقيدوي او فکري تشکيک وو، د قران کريم په باره کې او د خاتم الانبيا محمد صلی الله عليه وسلم د شخصيت او عصمت په باره کې، د نبوي احاديثو په باره کې او بالاخره د اسلام د مقدس دين د حقانيت او دده د ټولو قوانينو په باره کې، مګر په نويو تدابيرو سره، داسې تدابير چې موږ يې کولی شو، هماغه پخوانۍ حربې په نوي بڼه کې په منظمه توګه وړاندې کړو، په نويو اساليبو او نويو پلانونو سره او دا هرڅه بايد نېغ په نېغه نه وي، بلکې په غير مستقيم ډول وي، څو مسلمانان په بې خبرۍ سره بېلارې کړو او بې له مقاومته يې په فکر او مغز کې اسلام له منځه يوسو، ددې کار لپاره يهوديانو بېل او مسيحيانو جلا منظم پلانونه جوړ کړل او مختلف تحريکونه يې تاسيس کړل، چې دا دی لومړۍ د مسيحيانو اسلام دښمنه تحريکونه او بيا وروسته د يهوديانو فعاليتونه وړاندې کېږي.

**الف: استشراق:**

استشراق عربي کلمه ده، چې معنا يې ختيځ پېژندنه ده او په اصطلاح کې استاذ علي جريشه پخپل کتاب الاتجاهات الفکرية المعاصره کې د استشراق داسې تعريف کړی دی:

الاستشراق تعلم علوم الشرق، يعنې اتسشراق د ختيځې نړۍ د علومو زده کړې ته ويل کېږي.

دغه نوم ځکه ورته کېښودل شوی دی، چې د اسلامي امت اکثریت په شرق کې دي او له استشراق څخه مطلب هم همدغه دی، چې د اسلامي امت عقاید، افکار او د مختلفو اسلامي ملتونو ژوندود، د هغوی اخلاق، رسمونه او رواجونه، ژبې او ژبدودونه کلچر او ثقافت او د هر ملت خصوصیات معلوم او زده کړای شي.

د صلیبي جنګونو له ناکامۍ څخه وروسته مسیحیانو د اسلامي امت د فکر د مستعمره کولو لپاره دا لازمه وګڼله، چې لومړی د مسلمانانو دیني علوم او عقیدوي منابع قران، سنت او فقه باید زده کړای شي او بیا د هغوی په خلاف علمي جنګ پیل کړای شي، ترڅو پورې چې د اسلامي امت د ملتونو ژبې او خصوصیات زده نه کړای شي، د هغوی په خلاف اقدامات کول او د هغوی ګمراه کول ممکن نه دي، نو ځکه یې له نورو ټولو تکتیکونو څخه لومړی دغه تکتیک او تحریک یعنې استشراق جوړ کړ.

**تاریخ:**

که څه هم د شام د اخوان المسلمین پخواني امیر او په (۱۳۴۷) هجري کې د شام د اولسي جرګې سکرتر جنرال دوکتور مصطفی سباعي رحمه الله پخپل کتاب الاستشراق والمستشرقون کې ویلي دي:

په باوري توګه سره دا نه ثابتېږي، چې لومړی مستشرق څوک دی او کوم یو غربي شخص د ختیځ پېژندنې لپاره د شرقي علومو د زده کړې پیل کړی دی او په کوم تاریخ یې کړی دی، مګر دا خبره په وثوق سره ثابته ده، چې د لوېدیځ ځینې مسیحي «راهبانو» صوفیانو د اندلس د اسلامي عظمت په موده کې هلته د تللو اراده کړې وه او تللي وو او د اندلس په مدرسو کې له مسلمانو عالمانو څخه یې زده کړه کړې وه او په دغو مدرسو کې یې د مسلمانو عالمانو شاګردي کړې وه او مختلف علوم یې ور څخه زده کړي وو، چې د هغو له جملې څخه فلسفه، طب او ریاضي علوم د خاصې یادونې ور دي او بیا کله چې خپلو هېوادونو ته ستانه شوي وو، نو د قران کریم او

نورو عربي کتابونو ترجمه يې پخپلو خپلو ژبو کړې وه.[۱]

د دغو راهبانو له جملې څخه د مسلمانانو لومړی شاګرد او لومړی مستشرق فرانسوي راهب (Jerbert) جيربرټ او دا هغه څوک و، چې د اسلامي علومو له زده کړې څخه وروسته فرانسې ته په رسېدو سره په (۹۹۹) عېسوي کال کې له (۲۷۷) هجري سره سم د روم د کليسا پاپ وټاکلی شو، دوېم پطرس راهب و، چې په (۱۱۵۶) عېسوي کې تېر شوی دی او درېيم «Gerard de Gremone» جيرارډ، ډی ګريمون و، چې په (۱۱۸۷) مسيحي کال کې تېر شوی دی.

او بيا دغه راهبان چې خپلو خپلو هېوادونو ته لاړل، نو عربي او اسلامي ثقافت يې پخپلو خپلو هېوادونو کې ترويج کړ او له اسلامي مشهورو علمي تصانيفو څخه يې استفاده وکړه، د عربي او اسلامي علومو د زده کړې لپاره يې ځانګړي مدارس جوړ کړل، چې بيا وروسته هماغه مدارس پوهنتونونه وګرځولای شول، د اسلامي علومو کتابونه يې لاتيني ژبې ته چې په هغه زمانه کې د اروپا علمي ژبه وه له عربي څخه ترجمه کړل، پوره شپږ پېړۍ اروپايانو دغه عربي او اسلامي علوم په مينه او خورا ذوق سره زده کول، تردې چې اتلسمه پېړۍ راغله او په دغه پېړۍ کې اروپايانو د مسلمانانو په فکري استعمار پيل وکړ او د هغوی استشراق، يعنې ختيځ پېژندنې استعماري بڼه غوره کړه او د زده کړې منهج ته يې تغير ورکړ او په اوسنۍ بڼه يې عيار کړ.

دا و د استشراق د تاريخ په هکله د مصطفی سباعي رحمه الله تحقيق، مګر يو بل محقق دوکتور محمد البهي پخپل کتاب الفکر الاسلامي الحديث کې ويلي دي:

د لومړي ځل لپاره په (۱۳۱۲) عيسوي کال کې له (۷۱۰) هجري سره سم په

---

۱- الاستشراق والمستشرقون: ۱۳-۱۴ مخونه.

اروپا کې د استشراق، یعنې ختیځ پېژندنې بنسټ کېښودل شو او په همدغه تاریخ پاپ حکم وکړ، چې د مسلمانانو او اسلام ژبه، یعنې عربي زده کړای شي، څو د هغوی عقاید، دیني اخلاق، عبادات، اقتصادي، سیاسي، اجتماعي قوانین زده کړای شي او بیا له هغه څخه وروسته د اسلامي امت په خلاف دیني او معنوي غیر مستقیم جنګ په فاتحانه توګه پیل کړای شي او له دې سره سره د اسلامي امت د مختلفو ملتونو ژبې زده کړای شي، د هغو ژوندودونه، رسومات او رواجونه معلوم کړای شي.

هماغه وو، چې په همدغه تاریخ، یعنې (۱۳۱۲) عېسوي کال د پاپ له حکم سره سم د استشراق لپاره ځانګړی بورډ (کمېټه) یعنې علمي او مسیحي مذهبي جرګه کې جوړه او قایمه کړای شوه، چې د اسلامي علومو او ختیځ پېژندنې لپاره کړنچاره (برنامه) پلي نوم (کړنلاره) جوړه کړي او د هغه لپاره داسې اصول وضع کړي، چې د هغو په رڼا کې په قران، تفاسیرو، احادیثو، فقه او عقایدو کې تشکیکي تحقیقات درج کړي او د پاپ له حکم سره سم دغې جرګه کې د اروپا په ټولو مدارسو او پوهنتونونو کې عربي ژبه زده کول لازمي وګرځوله.

د پورتني جوړ کړای شوي علمي بورډ او د پاپ له حکم سره سم په (۱۳۱۲) عېسوي کال کې د «Veanna» ویانا په پوهنتون کې د (Paris) پاریس په پوهنتون کې د (Boloone) بولون په پوهنتون کې د انګلستان د (Oxford) اکسفورډ په پوهنتون کې او همدغه راز د (Salamanca) سلمانکا په پوهنتون کې د عالي تعلیماتو په نصاب کې عربي ژبه زده کړه داخله کړای شوه او لازمي وګرځولی شوه.[۱]

د شرق پېژندنې د پورتني غورځنګ په نتیجه کې او د عربي ژبې د ادب او ثقافت له زده کړې څخه وروسته په (۱۴۵۰) عېسوي کال کې له (۸۲۸)

---

۱- الفکر الاسلامي الحدیث وصلته بالاستعمار الغربي: ۵۸۲ مخ.

هجري قمري کال سره سم د ایټالیا یو مسیحي راهب «صوفي» (Florence) فلورنس «Dominican Monk» د لومړي ځل لپاره قران مجید ترجمه کړ او بیا یې پخپله ژبه د هغه رد ولیکه او د دغې ترجمې مقدمه او سریزه د المان مشهور پادري او د مسیحیانو د پروټستان فرقې بنسټ کېښودونکي (Martin Luther) مارټن لوتر لیکلې وه او بیا دغه ترجمه په سویزرلنډ کې یو اسلام دښمنه مسیحي (Johann Oporenus) جان اوپرنس غوښتل، چې د هغه هېواد پاپ کړي، مګر د سویزر لنډ د کاتولیک مسیحي مذهب واکدارو پیروانو د دغې ترجمې د چاپ کولو مخالفت وکړ، خو مارټن لوتر د قران کریم ددې محرفې ترجمې د چاپ ملاتړ وکړ او مخالفینو ته یې وویل: د قران کریم د دغې لومړۍ ترجمې له چاپ کولو سره اسلام او مسلمانانو ته د مسیحیت له پلوه سخت دیني او عقیدوي ګوزار دی او هم ددې په چاپ او خپرولو سره د مسیحي مذهب عظمت او حقانیت ثابتېږي.

د مارټن لوتر د دلایلو له اورېدو څخه وروسته په (۱۵۲۴) عیسوي له (۹۲۰) هجري قمري کال سره سم په لاتیني ژبه د فلورنس د قران کریم لومړۍ ترجمه چاپ او شایع کړای شوه.(۱)

پوهان سید محمد سلیم پخپل کتاب مغربي فلسفه تعیم کا تنقیدي مطالعه کې ویلي دي: د فلورنس د قران کریم د دغې ترجمې عنوان کنفیوژن القرن وو (Confutation Al Corani) او د لومړي ځل لپاره دغه ترجمه په (۱۵۰۰) مسیحي کال کې له (۸۷۸) هجري سره سم د اندلس په اشبیلیه کې چاپ او خپره کړی شوه او د دویم ځل لپاره په (۱۵۴۲) عیسوي کال کې په سویزرلنډ کې چاپ کړای شوې وه او همدغه تحقیق نورو محققینو هم تائید کړی دی.

۱ - Five Hundred Years of Pring by.s Steinderg Page ۵۰ Penguin book- ۱۹۴۷.

**نتیجه:**

په هر صورت د غربي استشراق د پیل د تاریخ په هکله د ښاغلي دوکتور محمد بهي پورتنی ریسرچ څېړونکو غوره ګڼلی دی.

ځکه چې د صلیبي جنګونو شدت تر (۱۲۷۰) عېسوي کال پورې جاري وو، مګر بیا په همدغه تاریخ پای ته ورسېد او د ډاکتر ګوستاولوبون فرانسوي چې مشهور مستشرق دی، له وینا سره سم د صلیبیانو دوه سوه کلن وحشیانه او غیر انساني صلیبي جنګونه پخپل شوم هدف کې ناکام شول او په پورتني تاریخ ختم کړای شول، چې بیا د مسیحیت طاغوتي پیروانو د اسلامي امت د ځپلو لپاره د استشراق نوی معنوي حربه له (۱۲۷۰) عېسوي څخه وروسته پیل کړه، نو پر دې اساس ویلی شو د دوکتور مصطفی سباعي رحمه الله تحقیق د استشراق په لومړۍ مرحله حمل کولی شي او په هغه مرحله کې اروپا له علم سره نوی تعارف ترلاسه کړی وو او دغه دوېمه مرحله چې اسلام دښمنه مرحله ده، په دیارلسمه پېړۍ کې پیل شوې ده؛ ځکه چې په لمسه مسیحي پېړۍ کې صلیبي جنګونه هم پیل شوي نه وو، نو د اوسني استشراق تاریخ (۱۳۱۲) میلادي (۷۱۰) هجري کال دی او همدغه موثق تاریخ دی.

***

## د استشراق اهداف

په مطلق ډول مستشرقین برابره خبره ده، که یهودي مستشرقین دي، لکه ګولډ زیهر او که مسیحي مستشرقین دي، لکه راورټي او داسې نور، د دغو ټولو اهداف او مقاصد سره ګډ او مشترک دي، چې د اسلامي امت او ځارو او د خپل دیني مسوولیت احساس کوونکو حساسو څېړونکو او روڼ اندیو علماوو د مستشرقینو اهداف په لاندې ډول خلاصه کړې دي:

**الف: د دین په هکله:**

د اسلام د مقدس دین د حقانیت او الهي توب په هکله د بشري نړۍ او بیا په خاصه توګه د مسلمانانو په زړونو کې شک او تردید پیدا کول او په دې هکله مستشرقینو دا تبلیغات په کار اچولي دي، چې د اسلام مقدس دین نه خو کوم ځانګړی دین دی او نه د الله تعالی له پلوه د دغه دین عقیدوي عبادتي او معاملاتي قوانین نازل کړای شوي دي؛ بلکې دغه دین محمد صلی الله علیه وسلم د خپلې عربي ټولنې د پرمختګ تشخص او سوکالۍ لپاره جوړ کړی دی.

د دغه دین عقیدوي او عبادتي احکام له یهودیت او مسیحیت څخه اخېستل شوي دي او فقهي قوانین یې د روم له پخواني قانون څخه اخېستل شوی دی، چې پخپلو دغو اسلام دښمنو تبلیغاتو سره مستشرقینو دا ناکام او نا مراده زیار ایستلی او کوښښ کوي، چې د اسلام دین د الله تعالی نه؛ بلکې بشري دین ثابت کړي او مسلمانان د خپل حق دین په هکله شکمن کړي او هم د اسلامي مقدس دین د یهودیت او مسیحیت له ادیانو څخه نه وي مرکب ترتیب کړای شوی دین ثابت کړي.

**ب: د قرآن په هکله:**

د يهودي او مسيحي مستشرقينو دويم هاند دا دی، چې مسلمانان د قران کريم د حقانيت په هکله شکمن کړي او د قران د تشکيک په هکله په ډاګه مستشرقينو انکار کړی دی او ويلي يې دي: چې قران کريم د الله تعالی له پلوه نازل کړای شوی کتاب نه دی؛ بلکې محمد صلی الله عليه وسلم پخپله ليکلی دی او د هغه خپل کلام دی او کله چې دوی ته د قران کريم هغه تاريخي حقايق وړاندې راځي، چې د پخوانيو امتونو په هکله دی، نو له دې امله چې دغه اسلام دښمنه طاغوتيان له دغو ثابتو حقيقتونو څخه انکار کولی نه شي، نو په دې هکله هماغه زاړه او بې اساسه دليلونه وړاندې کوي، چې د مکې مشرکانو به د خاتم النبيين محمد صلی الله عليه وسلم په زمانه کې د قران کريم په هکله وړاندې کول او هغه دا چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم د پخوانيو امتونو د تاريخي پېښو په بيانولو کې د خپل چاپېريال له تاريخ پوهانو څخه استمداد کړی دی او هغوی هم مرسته ورسره کړې ده.

او کله چې دغه قران دښمنه مستشرقين له هغو علمي حقايقو سره مخامخ کېږي، چې په پخوانيو زمانو کې ښخي نه وو؛ بلکې معاصر دی او د قران له نزول څخه ددولس، ديارلس پېړۍ وروسته يې تبارز کړی دی، نو بيا دغه ابليسي ختيځ پېژندونکي دا دليل وړاندې کوي او ويلي يې دي: له دې کبله چې نبي کريم صلی الله عليه وسلم د بې سياله نبوغ او ذکاوت څښتن وو، دغه معاصر علمي او ساينسي حقايق يې د خپل ذکاوت په ځواک او رڼا کې پېشګويي کړې او ويلي يې دي، چې اوس متحقق شوي دي او کېږي.

**ج: د نبوت په هکله:**

درېيم هدف د يهودي او مسيحي مستشرقينو د محمد صلی الله عليه وسلم د نبوت په هکله تشکيک دی او په ډاګه يې انکار کړی دی او ويلي يې دي، چې رسول اکرم صلی الله عليه وسلم د الله تعالی له پلوه بشريت ته په

رسالت او نبوت سره مبعوث شوی نه دی او د دوی دغه ګمراه کوونکې دعوې ګټه مټه هماغه دعوی ده، چې د مدینې منورې یهودیانو د رسول اکرم صلی الله علیه وسلم په زمانه کې کړې وه او ویل به یې، دا هغه نبي نه دی، چې الله تعالی په تورات کې د هغه د بعثت خبر ورکړی دی.

او کله چې دغه مستشرقین د وحې له مظاهرو سره مخامخ کېږي، چې له ام المؤمنین عایشې رضي الله تعالی عنها او ځینو نورو صحابه کرامو څخه روایت کړای شوي دي، چې پر رسول اکرم صلی الله علیه وسلم به د وحې د نزول پر مهال کې غیر عادي حالت راته ټول بدن مبارک به یې خولې شو او د وحې د نزول پر مهال به یې له هیچا سره هم خبرې نه کولې او داسې نور...، نو بیا د طاغوت پیروان مشرقین ګټه مټه هماغه خبره کوي، چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په زمانه کې به مشرکانو کوله او هغه دا چې دوی هم ویلي دي:

دا یو لړ تخیلات او افکار و، چې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم په فکر او ذهن به طاري کېدل او ځینې یې په صرع سره تعبیروي، لکه چې د مکې مشرکانو به ویل: پرده پېریان راځي او ځینې نورو مستشرقینو ویلي دي: دا رواني او روحي مرض و، چې محمد صلی الله علیه وسلم ته به کله ناکله پېښېده.

**د: د نبوي احادیثو په هکله:**

د مستشرقینو د ختیځ پېژندنې څلورم هدف دا دی، چې مسلمانان د نبوي احادیثو په هکله شکمن کړي؛ ځکه دوی پوهېږي، چې نبوي احادیث په اسلامي شریعت کې د ټولو قوانینو دوهمه سرچینه او مهم ماخذ دی او کله چې په دې هکله شک او تردید ایجاد کړای شي، نو د احادیثو تشریعي او قانوني حیثیت له منځه ځي او خپل ځای غربي قوانینو ته پرېږدي.

د همدغه هدف او مقصد لپاره مشهور یهودي مستشرق «Gold Zieher» ګولډ زیهر چې د ګردو اسلام دښمنو ختیځ پېژندونکو رهبر ګڼل کېږي له احادیثو څخه چورلټ انکار کړی دی او ویلي یې دي: په مجموعي توګه ټول احادیث په درېیمې هجري پېړۍ کې منځته راغلي دي او دغه متداول

او مروجه احاديث د نبي کريم صلی الله علیه وسلم اقوال نه دي؛ بلکې له هغه څخه په را وروسته پېړيو کې د اسلامي پوهانو اقوال دي او نبي کريم صلی الله علیه وسلم ته يې ددې لپاره منسوب کړي دي، چې په اسلامي امت کې مقبوليت او قانوني حيثيت ترلاسه کړي.

ګولډ زيهر دا هم ويلي دي، چې د اسلام په لومړۍ پېړۍ کې په عمومي توګه په ټولو اسلامي ټولنه کې د اسلامي شريعت احکام متعارف نه وو، نوموړي ويلي دي: دا ځکه احاديث د نبي کريم صلی الله علیه وسلم اقوال نه دي، چې عقل دا خبره هيڅکله هم نه مني، چې د محمد صلی الله علیه وسلم په څېر له امي شخص څخه دې دومره ډېر قانوني اقوال صادر شي، چې په هر اړخيزه توګه جامعيت ولري؛ بلکې دغه ټول د اسلام په وروستيو درې پېړيو کې مسلمانانو منځته راوړي دي.

**هـ: د اسلامي امت دائمه وو په هکله:**

د مستشرقينو پنځم هدف له خپل استشراق څخه دا دی، چې د اسلامي امت د ائمه وو د علمي حيثيت د هغوی د صادقانه ديني خدمتونو په هکله مسلمانان شکمن کړي او د دغه خبيث هدف ترلاسه کولو لپاره هغوی د اسلامي امت لوی لوی مجتهدين، د حديثو روايت کوونکي امامان په راز راز تورونو تورن کړي دي.

د مثال په ډول يو دوه نمونې وړاندې کوو:

**د امام زهري په هکله:**

ګولډ زيهر يهودي پخپل کتاب دراسات اسلامية کې د امام محمد بن مسلم بن عبيدالله بن عبدالله بن شهاب زهري قرشي متوفی (۱۲۴) هجري رضي الله عنه په هکله ليکلي دي، چې نوموړی به بني اميه وو ته او بيا په خاصه توګه عبدالملک ته له خپل ځان څخه احاديث وضع کول او د هغوی د خوشحالتيا لپاره به يې موضوعي احاديث جوړول، په داسې حال کې چې د اسلامي امت په نزد امام زهري د حديثو د روايت کوونکو له جملې څخه له

ټولو نه زیات ثقه شخصیت دی او د هغه پر ثقه توب د حدیث پوهنې د علم الرجال، جرح او تعدیل د ټولو پوهانو اتفاق دی.

امام ابن شهاب زهري لس تنه صحابه کرام لیدلي و او له هغوی څخه یې احادیث روایت کړي دي او دا هغه شخصیت وو، چې امیر المؤمنین عمر بن عبدالعزیز (۱۱۰) هجري رضي الله عنه مکتوب ورته لیږلی و، چې د نبوي احادیثو تدوین وکړي.

له همدې امله امام ابن عساکر، ابن حجر عسقلاني او نورو ټولو ویلي دي: د لومړي ځل لپاره د احادیثو تدوین امام زهري کړی دی.[۱]

مګر ددې لپاره چې اسلامي امت د خپل دغه ثقه امام په هکله شکمن او بد ګومانه کړي یهودي مستشرق ګولډ زیهر پخپل کتاب: دراسات اسلامیة کې ویلي دي: ابن شهاب زهري به احادیث له ځان څخه جوړول او خپل موضوعي احادیث به یې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته منسوبول او دا هغه کتاب دی، چې د مصر په جامع ازهر او نورو اسلامي جامعاتو او پوهنتونونو کې د اسلامي تاریخ زده کوونکو ته تدریس کیږي.

**د امام ابوحنیفه رحمه الله په هکله:**

دغه راز ګولډ زیهر د امام ابوحنیفه رحمه الله په هکله لیکلي دي، چې: هغه له اسلامي تاریخ څخه دومره بې خبره وو او دا ورته معلومه نه وه، چې د بدر د غزا د مخه وه او که د احد د غزا له بدر څخه دمخه وه:

په داسې حال کې چې د امام ابوحنیفه رحمه الله شاګردانو امام ابویوسف او امام محمد شیباني رحم الله علیهما د غزواتو په هکله ستر ستر کتابونه لیکلي دي، چې د امام ابو حنیفه کتاب کتاب الرد علی سیر الاوزاعي نومیږي، چې امام سرخسي شرح پرې لیکلې ده او په پنځو جلدونو کې چاپ کړای شوې ده او په غزواتو کې خورا ثقه او کره کتاب ګڼل کیږي.

۱- الثقافة الاسلامیة: ۱/ ۲۳۸ مخ.

نو دا به کوم عقل ومني، چې شاګردان دې په غزواتو کې دومره قوي او ضخيم کتابونه وليکي او استاذ ته دي، د غزواتو د تقديم او تاخير په هکله علم نه وي، په داسې حال کې چې همدغو شاګردانو د علم زده کړه له امام ابوحنيفه رحمة الله عليه څخه کړې ده، هغه امام چې د هغه پر علميت د هغه ټولو معاصرو مجتهدينو، محدثينو، تاريخ پوهانو او علماوو اعتراف کړی دی.

مګر دغه يهودي مستشرق د امام عالي مقام ابو حنيفه رحمه الله د بدنامولو لپاره دا ليکلي دي، چې هغه په غزواتو کې بېځي معلومات نه لاره، دا خو يو دوه مثالونه وو.

دغو درواغجنو او اسلام دښمنه مستشرقينو د خپلو شومو مقاصدو د ترلاسه کولو لپاره د اسلامي أمت پر نورو لسګونو امامانو، سياست پوهانو او عالمانو دغه ډول ناروا تورونه لګولي دي، څو د اسلامي ټولنې نوي نسلونه ګمراه کړي.

**و: د اسلامي تمدن په باره کې:**

د مستشرقينو د ختيځ پېژندنې شپږم هدف د اسلامي تمدن په هکله د اسلامي امت شک او ترديد پيدا کول دي او هغه داسې چې دوی په دې هکله تبليغات کړي او کوي يې، چې اسلام پخپله هيڅ ځانګړی تمدن نه لري؛ بلکې هرڅه يې له لوېديځ څخه د يهودي او مسيحي او نورو غير اسلامي مدنيتونو څخه ترلاسه کړي دي.[1]

په داسې حال کې، چې اسلام داسې جامع، معقول، بې سياله ادبي تمدن لري، چې د ژوند په هر اړخ کې مثبت او عملي مثالونه يې ټولې نړۍ ته وړاندې کړي دي، برابره خبره ده، که په صنعت کې دي، که په فردي او اجتماعي سکتورونو کې دي، په هرڅه کې داسې ممتاز او ځانګړی بشپړ حيثيت لري، چې د بشري نړۍ ټول تمدنونه يې تقليد ته محتاج شوي دي

---

۱- السنة و مکانتها في التشريع الاسلامي: ۱۸۸ مخ.

او د اسلام د مقدس دين تمدن هيڅا ته محتاج نه دی او نه داسې کومه نقيصه او خلا لري، چې د هغه د ډکولو او بشپړتيا لپاره منحرف يهوديت او يا سرګردان، بې لارې مشرکانه تباه کوونکي او غير انساني مسيحي تمدن ته مراجعه وکړي او خپله نيمګړتيا ورڅخه تکميل کړي.

د اسلامي امت تمدن داسې وياړمن، له برمه ډک او پر نېکمرغۍ سمبال تمدن دی، چې دده په ليدلو سره د بشري نړۍ ټول ملتونه دا غبطه؛ بلکې حسد کوي، چې کاشکې! دغه تمدن زموږ وای.

زما ددې خبرې شاهد پخپله نامتو فرانسوي مسيحي مګر نياومن مستشرق ډاکتر ګوستاولوبون متوفی (۱۹۳۱-۱۳۵۱) هجري دی، چې د اسلامي تمدن او ددغه تمدن د مزاياوو په ستاينه کې يې د «تمدن اسلام و عرب» په نوم اووه سوه يو نوي (۷۹۱) مخونه ضخيم کتاب ليکلی دی، ګولډ زيهر، صموئيل زويمر، مارټن لوتر رابرټ او نور تنګ نظري، حسود او اسلام دښمنه مستشرقين کولای شي د خپل دغه مستشرق دغه مذکور کتاب مطالعه کړي او خپل هغه بې اساسه او له حقيقت څخه لرې پروپاګندونه د ډاکتر ګوستاولوبون د حقايقو بيانولو او لسګونو مثالونو وړاندې کولو په رڼا کې وګوري، چې زموږ د اسلامي ځلانده او ابدي تمدن په هکله يې کړي دي، نو بيا به په خپله ورته ثابته شي، چې دوی د اسلامي تمدن په هکله څومره ظالمانه او له انصاف څخه لرې قضاوت کړی دی.

**ز: د عربي ژبې په هکله:**

د غربي مستشرقينو د استشراق اووم ستر هدف او مقصد له عربي ژبې څخه د اسلامي امت لرې کول دي؛ ځکه هغوی دې نتيجې ته رسېدلي دي، چې ترڅو په اسلامي امت کې عربي ژبه له خپل مقبوليت څخه ونه غورځولی شي او د دغې قراني او نبوي سوچه اسلامي مهذبې ژبې پر ځای د غرب اسلامي ژبې او د هغوی الف او با، ليک دودونه او املاوې ترويج نه کړای شي، په فکري توګه مسلمانان هيڅکله هم مستعمره کولای نه شي؛

ځکه چې د مسلمانانو عقیده، د دوی ثقافت او تهذیب، فقه، ادب، تمدن، د ژوند هر اړخیز قوانین او شرعي هدایات، علمي او عرفاني کړندودونه (برنامې) په همدغه عربي خوږه او ترسکونه ژبه کې دي، نو مستشرقینو نهایي زیار ویستلی او دا هڅه کوي، چې د اسلامي امت او عربي ژبې ترمنځ واټن ایجاد کړي، دا تبلیغات یې کړي دي او کوي یې، چې په اوسني عصر کې عربي ژبه د دې جوګه نه ده، چې خپلې بقا ته دوام ورکړي؛ ځکه چې دا غیر علمي ژبه ده.

دا ژبه بین المللي یا لږ تر لږه بین الاسلامي ژبه نه ده، دا ژبه اوس له معیار څخه غورځېدلې زړه او مړه ژبه ده، د ادب او علم له نظره عربي ژبه یوه فقیره ژبه ده او داسې نور...

مستشرقین غواړي پخپلو دغو تبلیغاتو سره له یو پلوه د عربي ژبې پر ځای پر اسلامي امت خپلې استعماري ژبې تحمیل کړي او له بل پلوه مسلمانان د عربي ژبې په نه زده کولو سره ګمراه او له خپل دین څخه یې لرې کړي؛ ځکه چې د اسلام د مقدس دین ټول قوانین څلور سرچینې لري: قران، نبوي سنت، اجماع او قیاس مستنبطه او دغه څلور واړه په عربي ژبه کې دي، نو کله چې مسلمانان په عربي ژبه پوه نه شي، خپل دین به څرنګه زده کړي، خپل اسلامي تشخص به څرنګه وساتلی شي؛ بلکې دا هرڅه به له لاسه ورکړي او د مستشرقینو هدف او ارمان به پوره شي.

دا وو د استشراق هغه عمده اهداف او مقاصد، چې یهودیانو او مسیحانو د اسلامي امت د تباهۍ لپاره دغه تحریک پرې پیل کړی او عیار کړی دی او د دغو اهدافو د پوره کولو هڅه کوي.

***

# د استشراق وسایل

مستشرقینو د خپلو پورتنیو شومو اهدافو د ترلاسه کولو په خاطر هر ډول ممکن وسایل په کار اچولي دي، چې د هغو له جملې څخه څو مهم او خطرناک اسلام دښمن وسایل يې د نمونې په توګه په لاندې ډول ذکر کیږي:

**لومړی: تصانیف:**

مستشرقینو د اسلام د مقدس دین پرمختلفو موضوعاتو لکه قران کریم، نبوي احادیث، سیرت، اسلامي تمدن او تهذیب، اسلامي ادب او ثقافت، تاریخ، عقاید، اسلامي فقه، عبادات، معاملات، د اسلامي ټولنې، اسلامي شخصیتونو، غزواتو، اسلامي فتوحاتو، سیاست، اقتصاد، فقهي مسلکونو، د اسلامي ژوندود، حقوقو، قضاء، تعلیم او تربیه، د اسلامي امت په ملتونو، عقیدوي، تصوفي او سیاسي فرقو او داسې نورو باندې کتابونه تصنیف کړي دي، چې ځینې يې خورا ضخیم او په څو متعددو جلدونو کې چاپ کړای شوي دي.

د مستشرقینو دغه تصانیف چې د هر یو په لیکلو کې شل، دېرش او له دې څخه هم زیات کلونه تېر کړي دي او د خپلو عمرونو له مصرف کولو سره سره يې په لکونو پونډونه، ډالر، فرانکونه، روبلونه او لیرې هم مصرف کړي دي، دا هرڅه يې ددې لپاره نه دي کړي، چې د اسلام د مقدس دین حقانیت ثابت کړي؛ بلکې ددې لپاره يې کړي، چې د اسلام په هکله بشري نړۍ په شک او تردید کې واچوي او د خپل دغه شوم مقصد لپاره يې په پورتنیو موضوعاتو کې ټول حقایق مسخ او تحریف کړي دي؛ ځکه چې د یهودیانو او نصرانیانو یو غټ خصوصیت د حقایقو تحریف دی.

د یهودیانو او نصرانیانو په څېر له امتونو څخه هیڅکله هم د صداقت هیله کېدلای نه شي؛ ځکه دغو دواړو ګمراه امتونو پر الله تعالی دروغ تړلي دي، خپل انبیاء یې ځورولي او شهیدان کړي دي، تورات، انجیل او زبور اسماني کتابونه یې تحریف کړي دي، چې د دوی د هدایت لپاره نازل کړای شوي و، نو که د اسلام د مقدس دین حقایق تحریف کړي او کړي یې دي، دا چندان عجیبه نه ده؛ ځکه چې دغه رزالت د دوی امتیازي خصوصیت ګرځېدلی دی.

دغه کتابونه چې مستشرقینو د اسلام د مقدس دین په مذکوره مختلفو موضوعاتو کې لیکلي دي، په مختلفو ژبو او لغاتو باندې ترجمه کړای شوي دي، څو وکولای شي د خپلو تالیفاتو په تقدیمولو سره په مختلفو ژبو خبرې کوونکي اسلامي ملتونه بې لارې او ګمراه کړي، مګر زیاتره کتابونه یې په عربي ژبه یا خو تالیف کړي او یا ترجمه کړي دي او بیا د دغو کتابونو زیاته ونډه یې تدریسي ګرځولې ده، په اروپایي، امریکایي او د ځینې اسلامي هېوادونو په پوهنتونونو کې زده کوونکو ته رسمي تدریس کېږي او کوم چې د مطالعې لپاره دي یا د ماخذونو حیثیت ورکړای شوی دی، د مسیحي حکومتونو او تبشیري موسساتو له پلوه ځوانانو ته وړیا ورکول کېږي، څو د استشراق خپل ناولي او اسلام دښمنه هدف تر لاسه کړای شي.

د مستشرقینو دغه ډول لیکوالان او د هغوی تصانیف بېخي ډېر دي، یهودیانو او مسیحیانو د هغوی د خېرولو او عاملو لپاره د خپلو عوایدو او دولتي بودیجو هر کال درېیمه ونډه مختص کوي، خو دلته زه د نمونې په ډول یو څو هغه مستشرقین، مصنفین او د هغوی تصنیفات ذکر کوم، چې دوکتور مصطفی سباعي رحمه الله په خپل کتاب الاستشراق والمستشرقون ما لهم وما علیهم کې او دوکتور علي عبدالحلیم محمود پخپل کتاب «الغزو الفکري و

اهدافه في المجتمع الاسلامي المعاصر» کې او د پاکستان د جماعت اسلامي رکن ښاغلي پوهاند سید محمد سلیم پخپل کتاب «مغربي فلسفه تعلیم کا تنقیدي مطالعه» کې ذکر کړي دي.

**۱- مارټن لوتر** «Martin Luther»:

مارټن لوتر د مسیحیانو د پروتستان فرقې موسس او مشر دی.
او دا له ټولو څخه لومړی او له ټولو څخه زیات اسلام دښمنه مستشرق دی، مارټن لوتر په څوارلسمه مسیحي پیړۍ کې قران کریم په لاتیني ژبه «Confutation A Korania» کنفیوشسن القران تر عنوان لاندې ترجمه کړ او بیا یې د قران کریم رد ولیکه، د مارټن دغه تصنیف د لومړي ځل لپاره په (۱۵۰۰) میلادي کال د هسپانیه په اشبلیه کې او بیا په (۱۵۴۲) عیسوي کال کې په سویزرلینډ کې چاپ په زرګونو نسخې خپور کړای شوي دي، مارټن لوتر د المان متعصب، مګر انقلابي مسیحي پادري «راهب» او عالم وو، تحریک اصلاح دین په نوم یې په (۱۴۵۰) مسیحي کال کې د کاتولیک کلیسایي الماني پاپ په خلاف قیام وکړ او په ډېر لږ وخت کې یې په زرګونو پیروان او متبعین پیدا شول او نوموړی د اسلام سخت دښمن وو.

**۲-۱. ج. اربري** «A.J. Arberry»:

دا هم مشهور انګلیسي مستشرق دی، په اسلام دښمنۍ او تعصب کې خورا مشهور دی.
نوموړی د مستشرقینو د لیکل شوي اسلامي دایرة المعارف له لیکوالانو څخه دی، د کیمبرج په پوهنتون کې استاذ دی او متاسفانه د ډېرو هغو مصري وګړو استاذ دی، چې په اسلامي علومو او ادبیاتو کې یې په انګلستان کې تحصیل کړی دی، د دغه مستشرق تصنیفات په لاندې ډول دي:

**الف: الاسلام الیوم:** د نن ورځې اسلام، نوموړي دغه کتاب د اسلام د مقدس دین په درې ادوارو باندې لیکلی دی او بیا یې وروستنی دغه جاري

دور له پخوانیو درې دورونو سره مقایسه کړې او له خپل مغرضانه برداشت سره سم یې نتیجه ورځخه اخیستې ده، د اریږي دغه کتاب په (۱۹۴۳) عیسوي کال کې د لومړي ځل لپاره چاپ او خپور شوی دی.

ب: **مقدمة التاریخ التصوف**: پخپل دغه کتاب کې یې د تصوف په تاریخ او منځته راتګ رڼا اچولې ده، دغه کتاب په (۱۹۴۷) عیسوي کال کې چاپ او نشر شوی دی.

ج: **التصوف**: دغه کتاب یې پر خپله پر تصوف، د هغه پر اصولو مقبولیت او مختلفو فرقو باندې لیکلی دی او په (۱۹۵۰) عیسوي کال کې چاپ او نشر شوی دی.

د: **ترجمة القران**: دغه کتاب یې لکه څرنګه چې له نوم څخه معلومیږي، د قران کریم ترجمه ده، مګر محرفه، دغه کتاب هم په (۱۹۵۰) عیسوي کال کې چاپ او نشر شوی دی او ښایي د مستشرقینو له جملې څخه له مارتن لوتر څخه وروسته دا دویم متعصب مسیحي مستشرق وي، چې د قران کریم ترجمه یې لیکلې او خپره کړې ده.

**۳- الفرډ جیوم** «Ageom»:

دغه مستشرق هم د انګلستان دی او معاصر مستشرق دی، په اسلام دښمنۍ او تعصب کې خورا مشهور دی، د انګلستان او امریکا په پوهنتونونو کې یې تدریس کړی دی او متاسفانه د مصر حکومت په رسمي توګه خارج ته د شرقي ژبو ادبیاتو د عالي زده کړو لپاره په رسمي توګه وخت په وخت لیږلی دی.

نوموړي د اسلام پر ضد ډېر کتابونه لیکلي دي، مګر په دې هکله ډده زیات مشهور کتاب «الاسلام» دی.

**۴- بارون ګیرادي فون** «Baraon Carrade»:

De Vaux: **نوموړی** فرانسوي مستشرق او د اسلام سر سخت دښمن او متعصب مسیحي دی، د اسلامي دایرة المعارف په لیکلو او ترتیب کې یې

په زړه پورې ونډه اخیستې ده.

**۵- ایچ. اي. ارګب** «H.A.R Gibb»:

دا هم معاصر انګلیسي مستشرق دی او د مصر د ژبپوهنې د اکاډمۍ غړیتوب یې لاره او په امریکا کې د اسلامي او عربي علومو د هارفورډ په پوهنتون کې پروفیسر استاذ دی او هم د اسلامي دایرة المعارف له لیکوالانو څخه دی، پر اسلام او اسلامي امت یې ډېر زیات له زهرو ډک تالیفات کړي دي، چې یو څو مشهور یې په لاندې ډول دي:

**الف: طریق الاسلام**: نوموړي دغه کتاب د څو نورو مستشرقینو په ملګرتیا لیکلی دی او له انګرېزي ژبې څخه عربي ژبې ته په پورتني عنوان ژباړل شوی دی.

**ب: الاتجاهات الحدیثة في الاسلام**: یعنې په اسلام کې نوي اندودونه، د نوموړي دغه اسلام دښمنه اثر په (۱۹۴۷) عېسوي کال چاپ شوی او عربي ژبې ته اړول شوی او ترجمه کړای شوی دی.

**ج: المذهب المحمدي**: د نوموړي دغه کتاب هم په (۱۹۴۷) عېسوي کال کې چاپ او خپور شوی دی، دوکتور سباعي رحمه الله ویلي دي، چې دغه کتاب یې دوه ځلې تکثیر او چاپ شوی دی.

**د: الاسلام والمجتمع الغربي (اسلام او غربي ټولنه)**: نوموړي دغه کتاب هم د څو نورو ختیځ پېژندونکو په ملګرتیا لیکلی دی او په ټولو کې یې ضخیم تصنیف دی، چې په څو جلدونو کې چاپ او خپور شوی دی.

**هـ:** په پورتنیو کتابونو سربېره د نوموړي د هغو مضامینو مجموعه هم چاپ شوې ده، چې مختلفو منشوراتو ته یې د اسلام پر ضد لیکلي او ورکړي دي.

**۶- ګولډ زیهر** «Gold Zieher»:

نوموړی د مستشرقینو په جمله کې ضرب المثل او خورا مشهور دی، په اسلام دښمنۍ او تعصب کې کمسیاله ګڼلی شوی دی، په اسلامي دایرة

المعارف کې يې محوري کردار اداء کړی دی، د قران کريم او نبوي احاديثو په موضوعګانو يې ليکنې کړي دي او له مشهورو تصانيفو څخه يې «تاريخ مذاهب التفسير الاسلامي» زيات مشهور دی، چې له همدغه عنوان لاندې عربي ته ترجمه کړای شوی دی.

**۷- جان مايي نارډ «Joon-Mynard»:**

نوموړی امريکايي متعصب مستشرق دی، نوموړی د اسلام دښمنه مشهورې مجلې «جمعية الدراسات الشرقية» د تحرير د هيئت غړی دی او په دغه امريکايي مجله کې يې د هغو کتابونو په هکله اسلام ضد تحقيقي مضامين ورکړي دي، چې د اسلام د مقدس دين په هکله نوي ليکلي شوي او شايع شوي دي.

د نمونې لپاره دې د دغې مجلې د (۱۹۲۴) عيسوي کال د اپريل د مياشتې دويمه ګڼه اتم ټوک او دوه ويشتم مخ وکتلی شي، نو د دغه اسلام دښمن عداوت او خبث به پخپله په ډاګه او ثابت شي.

**۸- صمويل زويمر «S.M. Zwimer»:**

نوموړی تبشيري مستشرق دی، په اسلام دښمنۍ کې زيات شهرت لري، د «العالم الاسلامي» مجلې بنسټ کېښودونکی دی او دغه مجله هم د امريکا له تبشيري مرکز څخه خپرېږي، د زويمر خبيث له اسلام ضد تصانيفو څخه يو څو دا دي:

۱- الاسلام تحد العقيدة، اسلام عقيده محدود وي، په (۱۹۰۸) عيسوي کال کې چاپ شوی دی.

۲- الاسلام: دا کتاب يې هم د اسلام په خلاف ليکلی دی او دا په حقيقت کې د هغو مضامينو او مقالاتو مجموعه ده، چې په (۱۹۱۱) عيسوي کال کې د هندوستان په لکنوو کې په تبشيري کنفرانس کې ايراد کړای شوي وو.

د زويمر د اسلام دښمنو زياتو فعاليتونو د تقديرولو، ستايلو او دده د تبشيري هلو ځلو د تقديرولو لپاره په امريکا کې امريکايانو د زويمر په

نوم د «لاهوتي مطالعې» په نوم یو مرکز جوړ کړ، چې اوس په دغه مرکز کې د مسیحیت مبلغین او دعوتګران روزل کېږي او بیا اسلامي هېوادونو ته د مسلمانانو د مسیحي کولو لپاره لېږل کېږي.

**۹ - عزیز عطیه سوریال:**

نوموړی مصري مسیحي مستشرق دی او د مصر د اسکندریه په پوهنتون کې استاذ و، اوس په امریکا کې په کوم پوهنتون کې د تدریس دنده پر غاړه لري، نوموړی له اسلام او مسلمانانو سره زیاته کینه لري او د اسلامي تعلیماتو په تحریفولو کې خورا مشهور دی، د صلیبي جنګونو په باره کې هم اثار او تالیفات لري.

**۱۰ - جي فون ګروباوم** «G. Von. Grunbaum»:

نوموړی په اصل کې د المان دی او نسلاً یهودي دی، بیا امریکا ته تللی دی او هلته یې هستوګنه کړې ده، نوموړی مستشرق د امریکا د شیکاګو په پوهنتون کې استاذ و، نوموړی د اسلام لوی دښمن دی، زښت ډېر تالیفات لري او پخپلو ټولو تصانیفو کې یې د اسلام پر مقدساتو حسودانه نیوکې کړې دي.

د مستشرقینو زیات شمېر د دغه یهودي مستشرق، د اسلام دښمنی ستاینه کړې ده، د ګرو باوم څو تالیفات د نمونې په توګه په لاندې ډول تقدیمولای شي:

**الف**: اسلام العصور الوسطی: د منځنیو پېړیو اسلام د نوموړي دغه کتاب په (۱۹۴۶) عیسوي کال کې چاپ او خپور شوی دی.

**ب**: الاعیاد المحمدیه: په (۱۹۵۱) عیسوي کال کې چاپ او خپور کړای شوی دی.

**ج**: محاولات فی شرح الاسلام المعاصر: د معاصر اسلام په شرحه کولو کې هڅې او هلې ځلې کول، د نوموړي دغه کتاب په (۱۹۴۷) عیسوي کال کې چاپ شوی او خپور کړای شوی دی.

د: دراسات في تاريخ الثقافة الاسلامية: د اسلامي ثقافت د تاريخ په اړوند څو درسونه، د دغه يهودي ختيځ پېژندونکي دغه کتاب په (۱۹۵۴) کال کې چاپ شوی دی.

هـ: الاسلام: دغه کتاب د نوموړي د مختلفو مضامينو مجموعه ده، چې د اسلام د مقدس دين په بېلا بېلو موضوعاتو يې نشر کړې دی، دغه کتاب په (۱۹۵۷) عېسوي کال کې چاپ شوی دی.

و: الوحدة والتنوع في الحضارة الاسلامية: په اسلامي تمدن کې وحدت او کثرت، دغه کتاب يې په (۱۹۵۵) عېسوي کال کې چاپ شوی دی.

**۱۱- فيليف حتی** «P.H. Hitti»:

دغه مستشرق لبناني مسيحي لوموړی د امريکا د برنستن په پوهنتون کې د اسلامي مطالعاتو په څانګه کې استاذ او مدرس و او بيا د همدغې څانګې رئيس په توګه مقرر کړای شو، مګر نن سبا په دغه پوهنتون کې د اقتصادياتو استاذ مقرر کړای شوی دی.

نوموړی د اسلام له سر سختو دښمنانو څخه دی او په منافقانه توګه په امريکا کې د عربي نړۍ له قضاياوو څخه دفاع کوي، خو د اسلام دښمنۍ له کبله د امريکا حکومت ته ډېر منلی دی او له همدې امله يې هغه د امريکا د بهرنيو چارو په وزارت کې د غير رسمي «Coun Collor» کانسلر، يعنې مشاور په توګه د منځني ختيځ د چارو په څانګه کې مقرر کړی دی.

دغه اسلام دښمن مستشرق په خپلو تاليفاتو کې هڅه کړې ده او کوي يې، چې د انساني تهذيب په تشکيل او جوړولو کې اسلامي نظام ناقص ثابت کړي او دا ډېره ناوړه کښي، چې اسلامي امت ته د کوم غوره کردار او علم نسبت وکړای شي، د نمونې په ډول دې «دايرة المعارف الامريکية» ته چې په (۱۹۴۷) عېسوي کال کې چاپ شوی دی، مراجعه وکړای شي.

د دغه دايرة المعارف په يو سل نهه ويشتم (۱۲۹) مخ کې فليب حتی د

«الادب العربي» تر عنوان لاندې داسې لیکلي دي:

«په عربو کې د ادبي نوي ژوند نښانې د نولسمې مسیحي پېړۍ په وروستي برخه کې څرګندې شوي او منځته راغلي دي او له دې څخه دمخه ښځي ادبي عرب وجود نه لاره او په نولسمه پېړۍ کې هم د مسلمانانو له پلوه نه؛ بلکې د لبنان د مسیحیانو له پلوه پیل شوی دی، چې بیا د امریکایي تبشیري مسیحیانو په مرسته او ملګرتیا عربي ادب اوسنی تدریسي مقام ته رسېدلی دی، مسلمانانو په دې هکله هیڅ هم نه دي کړي.»

فلیپ حتی نه یوازې دا زیار ایستلی دی، چې په نوي عصر کې اسلام او مسلمانان له علم او فضل څخه بې برخې معرفي او ثابت کړي؛ بلکې دغه مستشرق پخپلو تالیفاتو کې د اسلامي تاریخ په ټولو او د ورونو کې اسلام او مسلمانان له علمي ذکر څخه لرې او بې برخې معرفي کړي دي او په دې هکله دې د ده دغه لاندې مضامین او اثار وکتلی شي:

**الف: تاریخ العرب:** د نوموړي دغه کتاب په انګلیسي ژبه لیکل شوی دی او څو ځلې چاپ او خپور شوی دی، په دغه کتاب کې له پیل څخه تر پایه پورې پر اسلام بد رد ویل شوي دي او پر محمد صلی الله علیه وسلم ملنډې او پسخندې کړای شوي دي.

**ب: الاسلام «Al-Aslam»:** دغه مجله په انګرېزي ژبه د پاکستان له کراچۍ څخه خپرېږي، د دغې مجلې د (۱۹۵۸) عیسوي کال د منۍ د میاشتې په لومړۍ ګڼه کې په یو سل شپږ څلوېښتم (۱۴۶) مخ کې د فلیپ حتی مضمون چاپ کړای شوی دی، چې له پیل څخه تر پایه پورې یې د اسلام په خلاف زهر شیندنه کړې ده.

**ج: تاریخ سوریا:** پخپل دغه کتاب کې یې د مسیحیت د حقانیت او اسلام په خلاف زهرجن پور و پاګندونه کړي دي.

**د: اصل الدروز و دیانتهم:** د دروزیانو نسب او د هغوی عقیده.

د نوموړي دغه کتاب په (۱۹۲۸) عیسوي کال کې چاپ او خپور شوی دی،

چې د اسلام په خلاف له واهیاتو، چټیاتو او دروغو ډک دی.

**۱۲- ای. جې وینسنیک «A.J. Wensink»:**

دغه مستشرق هم د اسلام او رسول الله صلی الله علیه وسلم لوی دښمن دی، نوموړی د مصر د ادبیاتو په اکاډمۍ کې غړی و، مګر بیا د هغې اکاډمۍ رئیس ډاکتر طیب حسین الهواري چې «المستشرقون والاسلام» نومې کتاب مصنف هم دی او د نوموړي دغه کتاب په (۱۹۳۶) عیسوي کال کې چاپ شوی هم دی، د عقیدوي غیرت او ننګیرونو، په پاریدلو له دغې اکاډمۍ څخه معزول کړ؛ ځکه چې دغه مستشرق دا نظر ورکړی و، چې قران کریم پر محمد صلی الله علیه وسلم د الله تعالی له پلوه نازل شوی نه دی؛ بلکې قران کریم پخپله محمد صلی الله علیه وسلم له پخوانیو دیني او فلسفي کتابونو څخه تالیف کړی دی، لکه چې د نوموړي دغه رایه ښاغلي ډاکتر طیب هواري د خپل کتاب «المستشرقون والاسلام» په یو اویایم (۷۱) مخ کې لیکلې ده.

وینسنیک ښایي، نور تالیفات هم ولري، مګر دده یو بل کتاب چې ډېر مشهور دی، هغه «عقیدة الاسلام» دی، چې په (۱۹۳۲) عیسوي کال کې چاپ او خپور شوی دی.

**۱۳- کینټ کراج «K.Cragg»:**

دغه مستشرق نسلاً امریکایي دی، څه موده په قاهره کې په امریکایي پوهنتون کې یې تدریس کاوه، مګر بیا وروسته امریکا ته لاړ او هلته د «العالم الاسلامي» مجلې د تحریر د رئیس په توګه مقرر کړای شو او له دې سره سره د امریکا د تبشیري مرکز «الاهوت المسیحي» چې په هارفورډ کې دی، رئیس هم وټاکل شو.

نوموړی د اسلام له متعصبو دښمنانو څخه دی او د اسلام پر ضد یې ډېرې لیکنې کړي دي، چې له ټولو څخه مشهور تصنیف یې «دعوة المئذنة»

دی، یعنې مشکوک دعوت: دغه کتاب یې چې له پیل څخه تر پایه د اسلام پر ضد دی، په (۱۹۵۶) عیسوي کال کې چاپ شوی دی.

**۱۴- لويي ماسنیون** «L.Massegan»:

نوموړی د فرانسې له مشهورو او لویو معاصرو مستشرقینو څخه دی، د فرانسې د مستعمراتو په وزارت کې د شمالي افریقا په امورو کې د مستشار په توګه مقرر کړای شوی دی او په مصر کې د تبشیري انجمنونو د مخکښ رول اداء کوي، څو ځلې یې د اسلامي نړۍ سفرونه هم کړي دي او په لومړي نړیوال جنګ کې یې پنځه کلونه په فرانسوي پوځ کې خدمت کړی دی، په مصر کې د ادبیاتو د اکاډمۍ او هم په دمشق کې د المجمع العلمي العربي غړیتوب کړی دی، په فلسفه او اسلامي تصوف کې متخصص دی او مشهور استشراقي تالیفات یې یو څو په لاندې ډول دي:

**الف**: الحلاج الصوفي الشهيد في الاسلام: د نوموړي دغه کتاب په (۱۹۲۲) عیسوي کال کې چاپ شوی دی او په دغه کتاب کې یې د اسلامي شریعت په خلاف زهرجن پور او پاګند کړی دی.

**ب**: اسلامي دايرة المعارف: په دغه کتاب کې نوموړي پراخه ونډه اخیستلې ده او د دایرة المعارف له لویو لیکوالانو څخه دی.

**ج**: په فلسفه او تصوف کې لويي ماسنیون نور کتابونه هم لیکلي دي، چې ټول د اسلام د مقدس دین او اسلامي عباداتو په خلاف له مضامینو څخه ډک دي.

**۱۵- ډي. ایم. ماکډونالډ** «D.M.Macdonald»:

دغه مستشرق نسلاً امریکایي دی، د اسلام او مسلمانانو ستر دښمن دی، دده په ټولو لیکنو او تالیفاتو کې تبشیریت دی او د مسیحي دعوت له روح څخه ډک دی، نوموړی هم د دایرة المعارف له لویو مصنفینو څخه دی او نور هم د اسلام په خلاف ډېر تالیفات لري، خو دغه لاندیني دوه کتابونه یې زیات متعارف او مشهور دي:

**الف**: تطور علم الکلام والفقه والنظرية الدستورية في الاسلام: په اسلام کې د علم کلام، علم فقهي او قانوني نظرياتو بدلون او پرمختګ، د نوموړي دغه کتاب په (۱۹۰۳) عېسوي کال کې چاپ شوی دی.

**ب**: الموقف الديني والحياة في الاسلام: په اسلام کې د ژوند کولو په هکله ديني او عقيدوي دريځ، د نوموړي دغه کتاب په (۱۹۰۸) عېسوي کال کې چاپ او خپور شوی دی.

**۱۶ - مايلزګرين** «M.Green»:

دغه مستشرق د شرق الاوسط د مجلې د تحرير د څانګې سکرتر دی.

**۱۷ - مجيد قدوري**:

دغه مستشرق عراقي مسيحي دی او د واشنګټن په پوهنتون کې د منځني ختيځ د مطالعاتو د ډيپارټمنټ رئيس دی او د جون هوبکنز د پوهنتون په پورتنۍ دندې سربېره، په واشنګټن کې د منځني ختيځ د روزنې او ترييوي څېړنو د انستيټيوټ مدير هم دی.

نوموړی د اسلام او مسلمانانو لوی دښمن او خورا متعصب مسيحي دی، د مجيد قدوري د تاليفاتو له جملې څخه، چې ټول پر اسلام له بېځايه تورونو لګولو څخه ډک دی، يو هم «الحرب والسلام في الاسلام» دی، يعنې په اسلام کې سوله او جنګ، د نوموړي دغه کتاب په (۱۹۵۵) عېسوي کال کې چاپ شوی دی او سربېره پر دغه کتاب د نوموړي نور مضامين او مقالې هم خپرې شوي دي.

**۱۸ - ډي- ايس مارګوليوث**: «D.S.Margoliouth»:

نوموړی مستشرق نسلاً انګرېز دی، د اسلام ستر دښمن، د اسلامي دايرة المعارف له ليکوالانو څخه دی، د مصر د ادبياتو په اکاډمۍ کې او هم د دمش د ادبياتو د اکاډمۍ غړی و او له مشهورو کتابونو څخه يې يو څو په لاندې ډول دي:

**الف**: التطورات المبکرة في الاسلام: په اسلام کې نوي پرمختګونه، د نوموړي دغه کتاب په (۱۹۱۳) عېسوي کال کې چاپ شوی دی.

**ب**: محمد و مطلع الاسلام: **محمد صلی الله علیه وسلم او د اسلام د مقدس دین طلوع، مارګولیوت دغه تصنیف په (۱۹۰۵) عیسوي کال کې چاپ او خپور شوی دی.**

**ج: الجامعة الاسلامیة: اسلامي تولنه، په (۱۹۱۲) عیسوي کال کې چاپ شوی دی.**

**۱۹- ار. ای. نیکولسن** «R.A.Nicholson»:

**دغه مستشرق د انګلستان دی او د نامتو معاصرو مستشرقینو له جملې څخه دی، د دایرة المعارف له لیکوالانو څخه هم دی.**

**په اسلامي تصوف او فلسفه کې تخصص لري، د مصر د ادبیاتو د اکاډمۍ غړی و، د اسلام لوی دښمن و او سره له دې چې له تصوف سره یې زیاته علاقه لرله، مګر بیا هم د اسلام د مقدس دین له روحاني توب څخه منکر دی او ویلي یې دي:**

**د اسلام دین سوچه مادي دین دی او د بشري تولنې له اوچت مقام سره سمون نه لري او ډېر ورڅخه ټیټ دی.**

**د نیکولسن د تالیفاتو له جملې څخه یو دوه لاندیني کتابونه د خاصې یادونې وړ دي:**

**الف**: متصوف الاسلامي: **اسلام متصوفین چې په (۱۹۱۰) عیسوي کال کې چاپ او خپور شوی دی.**

**ب**: التاریخ الادب العرب: **د عربو د ادب تاریخ د نوموړي دغه کتاب په (۱۹۳۰) کال کې چاپ او خپور شوی دی.**

**۲۰- هارفای هول:**

**دغه مستشرق د امریکایي «مجلة شرق الاوسط» مسوول مدیر دی او د نوموړي په دغه مجله کې د منځني ختیځ په معاصر سیاست او ثقافت باندې زهرجن او خطرناک مضامین خپروي.**

**۲۱- هنري لامنس (اليسوعي) «H.Lammenns»:**

نوموړی فرانسوي مستشرق دی، په (۱۸۷۲) کې زېږېدلی او په (۱۹۳۷) عېسوي کال کې مړ شوی دی، لامنس د اسلامي دايرة المعارف له ليکوالانو څخه دی، خورا اسلام دښمن متعصب مستشرق وو.

د اسلام او مسلمانانو په خلاف يې ډېرې ليکنې کړي دي، د نمونې په ډول دې د امريکايي «مجلة جمعية الدراسات الشرقية» د (۱۹۲۵) عېسوي کال د جنوري د نهمې نېټې لومړی توک پنځلسم، شپاړسم مخونه وکتل شي او د کتابونو له جملې څخه يې دغه دوه کتابونه د خاصې يادونې وړ دي.

۱- الاسلام: نوموړی دغه کتاب په فرانسوي ژبه ليکلی دی.

۲- الطائف: د لامنس دغه کتاب هم په فرانسوي ژبه ليکلی شوی او خپور شوی دی.

**۲۲- يوسف شاخت «J.Schacht»:**

دغه مستشرق د المان دی، د اسلام او مسلمانانو ستر دښمن دی، د اسلامي فقهې په موضوع يې ډېر کتابونه ليکلي دي، د اسلامي دايرة المعارف او د اجتماعي علومو د دايرة المعارف له ليکوالانو څخه دی او مشهور کتاب يې «اصول الفقه الاسلامي» دی او په دغه کتاب کې يې د اسلامي فقهې په هکله له حسد او اسلام دښمنۍ څخه ډک بې اساسه او واهي ګمراه کوونکي نظريات ورکړي دي.

**۲۳- وليم موير «W.Muir»:**

نوموړی مستشرق هم په اسلام دښمنۍ کې خورا زيات مشهور دی او د اسلام او اسلامي امت په خلاف يې ډېر مضامين او کتابونه ليکلي دي، چې په ټولو کې زيات مشهور کتاب يې چې ډېر خطرناک دی (حياة محمد) دی، نوموړي په خپل دغه کتاب کې د خاتم النبيين محمد صلی الله عليه وسلم په هکله زياته ګستاخي کړې ده.

**۲۴ - ډي. ایم ډونلډ سون** «D.M.Donaldson»:

نوموړی هم له مشهورو اسلام دښمنو مستشرقینو څخه دی او دده له مشهورو تالیفاتو څخه «دین الشیعه» نومی کتاب دی.

**۲۵ - بشف ټیرپن** «Bishop Turpin»:

نوموړی هم مشهور مستشرق دی، د صلیبي جنګونو په ستاینه کې یې د «تاریخ شارل کبیر» نومې کتاب لیکلی دی او پخپل دغه اثر کې یې د اسلام پر ضد او د مسیحیت پر حقانیت له حقیقت څخه لرې طاغوتي او ګمراه کوونکي نظریات ورکړي دي.

**۲۶ - اډوارډ فرمان** «E.Ferman»:

دا هم مشهور اسلام دښمن مستشرق دی، دده له مشهورو کتابونو څخه، چې په هغه کې یې د مسلمانانو پر خلاف بې اساسه تورونه لګولي دي «تاریخ المسلمین و فتوحاتهم» دی.

فرمان پخپل دغه کتاب کې اسلام د امن دښمن دین معرفي کړی دی او د مسلمانانو فاتحینو پر خلاف یې ناروا تورونه او زهرجن پور او پاګند کړی دی او دغه کتاب یې ډېر خطرناک ښودل شوی دی.

**۲۷ - اربلشیر** «B.Blacher»:

دغه مستشرق د قران کریم په هکله د «مقدمة القرآن» په نوم کتاب لیکلی دی او پخپل دغه کتاب کې یې د قران کریم په هکله خپل شیطاني نظریات څرګند کړي دي.

دغه راز نور هم زښت ډېر اسلام دښمنه یهودي او مسیحي مستشرقین شته، خو دلته دغه یو څو د نمونې په ډول ذکر کړای شول.

***

## ژورنالېزم

د یهودي او مسیحي مستشرقینو دویمه مهمه وسیله، چې د اسلام د مقدس دین او اسلامي امت په خلاف استفاده ورڅخه کوي، ژورنالېزم دی او هغه داسې چې دوی د ژورنالېزم په مختلفو څانګو کې لکه اخبارونه ورځپاڼې، جراید، ډرامې، ناولونه، افسانې، فلمونه او داسې نور خپروي او په دغو ټولو خپرونو کې د اسلامي ثقافت، اسلاهي تهذیب او تمدن د اسلامي اخلاقي اقدارو په خلاف زهرجن تبلیغات کوي او د اسلام د مقدس دین هر اړخ په مسخه کړي توګه بشري ټولنې ته وړاندې کوي.

اسلامي شخصیتونه په کې بدناموي او د هغوی په اقوالو او کردارونو باندې جرحه کوي، د اسلام مقدس دین له علمي حقایقو او سیاست څخه بې برخې یوازې عبادتي دین معرفي کوي.

اسلامي ټولنه ناپوهه، وروسته پاتې، غیر مهذبه او د مادي چیلنجونو په مقابل کې ناکامه او بې اسرې معرفي کوي، خو لوستونکو ته پخپلو درواغجنو شیطاني تبلیغاتو سره پخپل زعم او ګومان دا ثابته کړای شي، چې اسلام او دده پیروان د ژوند په ډګر کې هیڅاته هم او په هیڅ یو اړخ کې هم نېکمرغي وربښلی نه شي.

په دې هکله مستشرقینو ډېرې زیاتې مجلې خپرې کړې او خپروي یې، چې د ژورنالېزم د نورو ذرایعو په پرتله یې د مجلو پر خپرولو زیاته اتکاء کړې ده او ډېرې مجلې لري، چې یو څو یې د نمونې په ډول په لاندې توګه ذکر کیږي:

**۱ - المجلة الاسيوية:**

په (۱۷۸۷) عېسوي کال کې فرانسوي مستشرقینو د جمعیة المستشرقین په نوم یو تنظیم تاسیس کړ او بیا دغه تنظیم په (۱۸۲۰) مسیحي کال کې د خپلو اسلام دښمنو فعالیتونو د بریالیتوب او پرمختګ په تکل دغه مجله تاسیس او خپره کړه، چې تر اوسه پورې خپرېږي.

**۲ - مجلة الجمعية الاسيوية الملكية:**

دغه مجله په (۱۸۲۳) عېسوي کال کې د انګلستان په پلازمېنې لندن کې د مستشرقینو له پلوه تاسیس کړای شوه او بیا یې د دغې مجلې د چلولو د چارو اشراف د انګلستان پاچا ته ورکړ او هغه هم په ویاړ سره قبوله کړه، د دغې مجلې لګښتونه او څارنه د انګلستان د پاچا له پلوه کېږي.

**۳ - الجمعية الشرقية الامريكية:**

امریکایي مستشرقینو هم په (۱۸۲۴) عېسوي کال کې خپل یو ځانګړی انجمن جوړ او تاسیس کړ او بیا په همدغه کال کې یې دغه پورتنۍ مجله هم تاسیس او خپره کړه.

دوکتور مصطفی سباعي رحمه الله پخپل کتاب (الاستشراق والمستشرقون) کې ویلي دي: په همدغه کال کې د المان، اتریش، ایټالیه او روس مستشرقینو هم د امریکایي مستشرقینو له تقلید سره سم د اسلام پر ضد د بېلا بېلو مجلو په خپرولو پیل وکړ.

**۴ - مجلة جمعية الدراسات الشرقيه:**

دغه مجله د امریکا د (OHIO) ایالت د ګمبیرا (Gambier) له ښار څخه چاپ او خپرېږي.

په لندن، پاریس، ټورانټو او کاناډا کې هم ځانګړې لړۍ او د امریکایي مستشرقینو په معاصرو خپرونو کې له ټولو څخه زیاته خپرېدونکې مجله

**۵- مجلة شئون شرق الاوسط:**

**د امریکایي مستشرقینو دغه مجله د استشراق په سیاسي اهدافو پورې اړوند مسایل خپروي.**

**۶- العالم الاسلامي** (The Muslim World):

**د امریکایي مستشرقینو په مجلو او خپرونو کې دا مجله له ټولو څخه د اسلامي امت په هکله زیاته خطرناکه مجله ده، دغه مجله په (۱۹۱۱) عیسوي کال کې مشهور اسلام دښمن مستشرق زویمر تاسیس کړې ده او مسوول مدیر یې بل غټ مستشرق کینټ کراج دی او د امریکا له (Hartford) هرټ فورډ څخه چاپ او نشر کیږي.**

**۷-** (Le Monde Musulman):

**دغه مجله فرانسوي مستشرقین خپروي، د محتوی له نظره همدومره خطرناکه ده، لکه څومره چې العالم الاسلامي مجله د مسلمانانو لپاره خطرناکه او له زهرو ډکه ده.**

***

## درس او تدریس

د یهودي او مسیحي مستشرقینو د استشراق درېیمه مهمه وسیله په پوهنتونونو کې او علمي غونډو کې تاریخي، علمي او اجتماعي محاضرې ورکول دي، درس او تدریس دی چې له ټولو څخه زیات خطرناک یې په لوېدیځو او ختیځو پوهنتونونو کې د معلمینو او استاذانو په صفت تعین او استخدامېدل دي.

په دغو مستشرقینو کې له ټولو څخه زیات اسلام دښمن او متعصب وګړي د اسلامي امت په مهمو علمي پوهنتونونو کې لکه د قاهرې، دمشق، بغداد، رباط، اردن، اندونیزیا، مالېزیا، انقره، پاکستان، د کراچۍ او لاهور، د هند په علي ګړ او نورو کې د علمي او مسلکي متخصصینو په صفت درسونه ورکوي.

د درسونو ورکولو په ترڅ کې د زده کوونکو او محصلینو په اذهانو کې د اسلام د مقدس دین په خلاف زهرجن نظریات تزریقوي.

دغه مستشرقین زیات هاند او هلې ځلې کوي، چې د اسلامي نړۍ په سیاسي خلکو کې په علمي محققینو او تدریس کوونکو کې خپل اذناب ایجنټان وروزي، څو د دوی له هدایاتو او لارښوونو سره سم په علمي او سیاسي مراکزو کې د اسلام د ابدي هدایاتو او قوانینو روح او شعایرو د مسخه کولو او د اسلامي امت د توکوم او نسل د ګمراه کولو په تکل هاند او فعالیت وکړي، چې له بده مرغه تر اوسه پورې اسلام دښمنه مستشرقین په خپل دغه طاغوتي موخه کې تر یو حده پورې کامیاب او بریالي شوي دي او په اسلامي امت کې یې د حبیب الرقیبه تونسي، قذافي لیبیایي، سر سید احمد خان هندوستاني، ډاکتر طه حسین مصري، ډاکتر احمد امین

مصري، ډاکتر علي حسن عبدالقادر، موسی یوسف او داسې نورو په څېر شاګردان روزلي دي، چې کفالتاً د هغوی دنده سرته رسوي او د اسلامي امت نسلونه د اسلام په هکله شکمن کوي او له حق دین څخه یې بې لارې کوي.

***

# تبشیر

د اسلام د مقدس دین او اسلامي امت په خلاف د اسلام دښمنه طاغوتي منحرف مسیحیت او نصرانیت دویمه لویه او مهمه اوپخپل ذات کې د مسلمانانو لپاره خورا خطرناکه حربه تبشیر دی او دغه تحریک د مسلمانانو لپاره د شیطان د پلویانو له ټولو څخه ستر چیلنج دی، داسې چیلنج چې نن سبا د ساري ناروغۍ په څېر په ټوله اسلامي نړۍ کې پلي کړای شوی دی او په غیر شعوري توګه د اسلامي امت زیاتره برخه پرې اخته کړای شوې ده.

خو مخکې له دې څخه چې د تبشیر او مبشرینو پر موضوعاتو رڼا واچولی شي، لازمه ګڼم د دغه توري تعریف، د دغه تحریک د پیدا ایښت په تاریخ او د منځته راوړلو پر عواملو بحث وکړم، څو موضوع په عارفانه توګه تعقیب او تشریح کړای شي.

**لغوي تعریف:** تبشیر عربي کلمه ده او عربي ژبدود پوهانو د بشرى مصدر ښودلی دی او ویلي یې دي: دغه کلمه متعدي هم راځي او لازمي هم راځي.

د عربي ژبدود په قاموسونو کې د بشر لفظ د اعراف او د کلماتو د کموالي او زیاتوالي او بدلون پر لحاظ په مختلفو معناوو سره راغلې ده، چې یو څو یې په لاندې ډول دي:

بشر: د انسان په معنی.

بشر: د بدن پوستکی او بڼه.

بشر: د ښایست او حُسن په معنی.

بشر: د زېري ورکولو په معنی.

بشر: د شي د څرګندېدلو په معنی، لکه چې ویلی شي: بشر الارض نباتها، ځمکې ګیاه ظاهره او څرګنده کړه.

مبشرات: هغه بادونه چې د اورښت زېرى ورکوي، دغه راز هغو خوبونو ليدلو ته هم مبشرات ويل کېږي، چې د يو چا پر نېکمرغه کېدلو دلالت کوي.[۱]

او د تبشير معنى علامه زبيدي په تاج العروس کې داسې کړې ده: التبشير: الخبر الذي يفيد السرور الا انه بحسب اصل اللغة: «عبارة عن الخير الذي يوثر في البشرة تغيرا».[۲]

تبشير په عربي ژبدود کې هغه خبر ته ويل کېږي، چې خوشحالتيا راولي، مګر دلته د بنسټ او اصل په اعتبار، له هغې ښېګنې او خير څخه عبارت دى، چې په بڼه کې بدلون او تغير راولي.

وهذا يكون للحزن ايضا، فوجب ان يكون لفظ التبشير حقيقة في القسمين.

او دغه د څېرې او بڼې بدلون په غم او خپګان سره هم رائحي، چې په دې توګه د تبشير لفظ په دواړو ډولونو کې حقيقت دى، مګر نورو لغت پوهانو ويلي دي: چې په اصل کې يوازې د زېري او خوشحالتيا لپاره دى او په ندرت سره د غم لپاره هم استعمالولى شي.

**اصطلاحي تعريف:**

تردې ځايه پورې په لنډه توګه د تبشير لغوي تعريف وکړاى شو او په اوسني نوي اصطلاح کې مستشرقينو دغه لفظ د ديني دعوت لپاره استعمال کړى دى، لکه چې معجم الوسيط هم د تبشير په اوسني اصطلاحي تعريف کې ويلي دي:

التبشير: الدعوة الى الدين. «محدثة».[۳]

---

۱ - معجم الوسيط: ۵۸/۱ مخ، مفردات القران: ۴۶ مخ.

۲ - تاج العروس: ۴۵/۳ مخ.

۳- معجم الوسيط: ۵۸/۱مخ.

یعنې په نوې اصطلاح کې تبشیر دین ته دبلنې او دعوت په معنی دی.
د پورتني تحقیق او څېړنې مطلب دا دی، چې د مسیحي استعماري مستشرقینو د خلکو د دوکه کولو په خاطر دغه زړه وړونکې کلیمه د خپل گمراه کوونکي مسیحي دعوت لپاره غلطه استعمال کړې ده او بې خبره خلکو ته دا په ذهن کې ورکوي، چې دغه تحریک دوی د دې لپاره پیل کړی دی، چې بشریت ته له بدمرغۍ څخه نجات ورکړي، حق دین او سعادت ته یې ورسوي.
د خپلو شومو او اسلام دښمنو اهدافو د ترلاسه کولو په خاطر یې پر خپل دغه اسلام دښمنه تحریک د تبشیر نوم کېښودلی دی او د تبشیر معنی غامضه او د مختلفو معناوو لرونکې ده، نو دوی خپل تحریک ته همدغه لفظ او نوم انتخاب کړ، څو په اسانتیا سره په مختلفو تعبیرونو کولو خلک وغولوي.

**تاریخ:**

اسلامي محققینو چې د هغو له جملې څخه ښاغلی دوکتور عرفان عبدالمجید د خاصې یادونې وړ دی، ویلي دي، چې د اسلام د مقدس دین په خلاف د تبشیر تحریک اروپایي مسیحیانو له استشراق څخه وروسته پیل کړی دی، لکه چې ډاکتر عرفان عبدالمجید ویلي دي:
«اما نشئته فقد تأخرت عن نشأة الاستشراق...».[1]
ژباړه: د تبشیر تبارز د استشراق له تبارز څخه وروسته منځته راغلی دی؛ ځکه چې استشراق له صلیبي جنګونو څخه دمخه جوړ کړای شوی و او د صلیبي جنګونو په طولاني موده کې یې له مسیحي جنګیالیو سره د اندلس په مستعمره کولو کې په زړه پورې مرسته کړې وه، دغه جنګونه

---

۱ - المستشرقون في الاسلام: ۱۲- ۱۳- ۱۴ مخونه، الاتجاهات الفکریة المعاصرة: ۲۷ مخ.

مستشرقینو رهبري کول.

مګر تبشیر د صلیبي جنګونو له ناکامېدو څخه وروسته منځته راغلی دی او د اسلامي امت په خلاف دغه نوې حربه د لومړي ځل لپاره په (۱۲۶٦) هجري کې له (۱۸۵۴) عیسوي کال سره سم تبارز کړی دی، په داسې حال کې چې استشراق په منظم ډول په (۱۲۰۲) هجري کې له (۱۷۸۷) مسیحي کال سره سم په فعالیت پیل کړی دی او له هغه څخه دمخه کابو دوه سوه کلونه غیر منظم روان وو.

چې په دې توګه ویلی شو: د اسلام پر ضد د استشراق د پیل تاریخ د تبشیر د تاسیس او بنسټ کېښودلو له تاریخ څخه دوه پنځوس کلونه دمخه وو.

**مؤسس او د تاسیس لومړی مرکز:**

د تبشیر د بنسټ کېښودو لومړی مرکز البانیه دی، یعنې په (۱۸۵۴) عیسوي کال کې دغه طاغوتي تحریک په البانیه کې په منظم ډول پیل کړای شو او د تبشیر لومړی بنسټ کېښودونکی د البانیه مشهور مسیحي فیلسوف راجرییکن وو، که څه هم د تبشیر لومړی مفکر د مسیحي کاتولیکانو مشهور پاپ قدیس پطرس دی او هغه په (۱۲۱۳) مسیحي کال کې (٦۰۹) هجري کال سره سم د جنګ په بدل کې د اسلامي امت د معنوي تباه کولو لپاره د تبشیر د تحریک نظریه او اندود ابراز کړی وو، مګر په هغه موده کې د نوموړي دغې نظریې ته چندان ارزښت ورنه کړای شو او په عمومي توګه د مسلمانانو د بشپړې تباهۍ لپاره جنګ خورا غوره او فیصله کوونکې طریقه وګڼلی شوه.

مګر شپږ سوه کلونه وروسته د نوموړي پاپ د تبشیر نظریه کله چې مسیحي فیلسوف راجرییکن تر خپلې څېړنې لاندې ونیوله، نو زیاته یې خوښه شوه او په عملي ډګر کې یې ددې نظریې د پلي کولو هوډ «تصمیم» ونیوه، هماغه وو چې د یو شمېر مسیحي پاپانو او مسیحي واکمنانو له توافق څخه وروسته یې د قدیس پطرس پاپ د تبشیر ایډیا ته عملي بڼه

ورکړه او په (۱۸۵۴) عیسوي کال کې یې د تبشیر بنسټ په منظم ډول کېښود او په رسمي توګه یې د مسلمانانو په خلاف دغه تحریک پیل کړ او همدی یعنې راجرییکن د تبشیر موسس ګڼلی شوی دی.[۱]

**اهداف:**

د تبشیر اهداف او مقاصد واضح او څرګند دي او هغه دا چې مسلمانان له اسلام څخه مسیحیت ته واړوي او ګمراه یې کړي.

لکه چې د تبشیر دغه هدف او موخه پخپله د تبشیر یو لیډر او رهبر اډوین بلس پخپل کتاب: الغارة على العالم الاسلامي کې په څرګندو الفاظو کې بیان کړی او داسې یې ویلي دي:

«وانني احاول ان انقل المسلم من محمد الى المسيح»

ژباړه: زه هڅه کوم او دا زیار باسم، چې مسلمان په عقیدوي توګه له محمد صلى الله عليه وسلم څخه عیسی علیه السلام ته انتقال کړم.

او د مسیحیانو او یهودیانو دا هغه هدف او موخه ده، چې الله تعالى څوارلس سوه کلونه دمخه مسلمانان د وحې په ذریعه ورڅخه خبر کړي دي او په قران کریم کې یې څوارلس پیړۍ پخوا د دوی دغه شوم غرض بیان کړی او فرمایلي یې دي:

﴿وَلَنْ تَرْضٰى عَنْكَ الْيَهُوْدُ وَلَا النَّصٰرٰى حَتّٰى تَتَّبِعَ مِلَّتَهُمْ﴾. (البقره/۱۲۰)

ژباړه: او هیڅکله به له تا څخه یهودیان او نصرانیان خوشحال او رضامند نه شي، تردې چې ته د دوی د دین پیروي وکړې او په بل مبارک ایت کې یې فرمایلي دي:

﴿وَلَا يَزَالُوْنَ يُقَاتِلُوْنَكُمْ حَتّٰى يَرُدُّوْكُمْ عَنْ دِيْنِكُمْ اِنِ اسْتَطَاعُوْا﴾. (البقره/۲۱۷)

---

۱- التبشير والاستعمار: ۱۹۲مخ، لیکوال: مصطفى الخالدي او عمر فروخ طبع بیروت.

ژباړه: او دوی به تر هغه پورې له تاسې سره جنګېږي، چې که وکولی شي تاسې د اسلام له مقدس دین څخه بېرته واړوي، مرتد مو کړي او په شا مو جار باسي.

او همدارنګه الله تعالی فرمایلي دي:

﴿إِنَّهُمْ إِن يَظْهَرُوا عَلَيْكُمْ يَرْجُمُوكُمْ أَوْ يُعِيدُوكُمْ فِي مِلَّتِهِمْ﴾.

(الکهف/۲۰)

ژباړه: په تحقیق سره که چېرې دغه کافران پر تاسې برلاسي شي، نو تاسې به ارو مرو یا خو سنګسار کړي او یا به مو خپل دین ته واړوي.

او همدارنګه الله تعالی فرمایلي دي:

﴿إِن تُطِيعُوا الَّذِينَ كَفَرُوا يَرُدُّوكُمْ عَلَىٰ أَعْقَابِكُمْ فَتَنقَلِبُوا خَاسِرِينَ ﴿١٤٩﴾﴾.

(ال عمران/۱۴۹)

ژباړه: ای مومنانو! که چېرې تاسې د هغو کسانو پیروي وکړئ، چې کافران شوي دي، نو هغوی به ارو مرو تاسې له اسلام څخه بېرته کفر ته پخپلو پوندو په شا بوځي، نو تاسې به بیا په دې صورت کې سخت زیان او نقصان کوونکي شئ.

د تبشیر دا هغه لوی هدف دی، چې د خپل دغه شوم هدف لپاره یې خپل ټول مادي او معنوي وسایل او ذرایع په کار اچولي دي او بیا که په دې کې هم بریالي نه شي، نو دویم هدف یې د مسلمانانو یووالی او اتحاد له منځه وړل دي او درېیم هدف یې د مسلمانانو بې دینه کول دي، چې دغه هدف به یې د علمانیت په بحث کې په تفصیل سره بیان کړای شي.

**د تبشیر د کار کوونکو شمېر:**

د خپلو پورتنیو شومو مقاصدو او اهدافو د ترلاسه کولو په خاطر د تبشیر د خپلو افرادو په روزنه پیل وکړ او تر اوسه یې د ژوند په ټولو مخکښانو د خپلو افرادو په روزنه پیل وکړ او تر اوسه یې د ژوند په ټولو اړخونو، یعنې نظامي، ساینسي، تعلیمي، فرهنګي، سیاسي او اجتماعي

امورو کې زښت ډېر داسې خلک روزلي دي، چې هغوی په فعاله توګه په اسلامي هېوادونو کې د تبشیر لپاره کار کوي او د یو سرسري احصایې او سر شمېرنې له مخې په مجموعي توګه د دغو تبشیري کار کوونکو شمېر په دقیقه توګه پنځه نیم میلیونه ښودل شوی دی، چې په اسلامي هېوادونو کې د ډاکترانو، نرسانو، معلمانو، نظامي چارو ښودونکو، درمل جوړوونکو، ژورنالستانو، سیلانیانو، ساینس پوهانو، مکتشفینو، خیریه موسسو د کار کوونکو په صفتونو او بڼو کې خپلې ورسپارل شوي تبشیري دندې او وظایف ترسره کوي.

او بیا پر دغو خپلو مامورینو او د تبشیر د پرمختګ لپاره هر کال په میلیونونو لګښتونه کوي، چې هغه ټول مصارف مسیحي دولتونو پر غاړه اخیستي دي، د مثال په ډول په (۱۹۰۱) نولس سوه لس مسیحي کال کې د سکاټلنډ په پلازمېنه کې د تبشیر مخکښانو غونډه وکړه، څو په دغه غونډه کې د تبشیر یو کلن فعالیتونه او مصارف معلوم کړي او د خپل کار نتیجه ترلاسه کړي، دغې غونډې ته د یو کال د مجموعي لګښت راپور په لاندې توګه وړاندې کړای شو:

۱- په (۱۹۰۹) عیسوي کال کې د انګلستان او ایرلنډ د تبشیر کار کوونکو د یو کال لګښت دوه میلیونه او سل زره انګلیسي جنیه شوې و.

۲- د امریکا او کاناډا د تبشیري تحریک کار کوونکو دوه میلیونه امریکایي ډالر مصرف شوي و.

۳- د استرالیا، افریقا او اسیا تبشیري کار کوونکو د یو کال مصرف درې سوه زره ډالر ښودل شوی دی.

۴- په همدغه یو کال کې پروتستاني تبشیري کار کوونکو اووه سوه زره ډالر مصرف کړي و.

۵- په همدغه کال کې د فرانسې د تبشیري کار کوونکو (۱۵۴) یو سل او

څلور پنځوس میلیونه فرانسوي فرانکه مصرف کړي و.[۱]
دا خو یوازې د کار کوونکو لګښت و، هغه مصارف له دې څخه بېل دي، چې پر خپرونو او نورو دعوتي چارو کېږي، دغه تبشیري نړیوال پرسونل هر کال یوه عمومي غونډه کوي، څو د خپل تبشیري دعوت اغېزه او موثریت د خپل کار نتایج او مصارف معلوم کړي.

***

۱. جذور البلاء ۲۲۷، عبدالله التل.

## د استشراق او تبشیر ترمنځ توپیر

که څه هم د هدف له نظره استشراق او تبشیر ایکې یو دی او هم دغه دواړه د اسلام ضد حرکتونه ایکي یوه سرچینه لري، مګر د کړو وړو او فکري استعمار د اسلوبو له مخې دواړه بېلا بېل دي او د فعالیت برخې یې یوه له بلې څخه ځانګړې او جلا دي او د دواړو ترمنځ زیات توپیر موجود دی، چې په لاندې ډول خلاصه کېږي:

د استشراق او تبشیر ترمنځ د اسلوبو او فعالیت توپیر دا دی، چې استشراق د اسلامي امت فکري استعمار په علمي او اکاډمیکه طریقه کوي، د روڼ اندو او خواصو د ګمراه کولو په لاره کې هلې ځلې کوي، په کتابونو، کنفرانسونو، مناظرو او بحثونو کې هغوی ته خادعانه او له حقیقت څخه لرې دلیلونه او بې اساسه فلسفې او سفسطې او براهین وړاندې کوي.

په داسې حال کې، چې تبشیر خپل دعوت د اسلامي امت مرحومه د کوچنیانو په مسیحي کولو کې هاند کوي او ټوله اتکاء یې پر عقل وي، د فعالیت چورلیځ یې عامیانه دلیلونه او مثالونه وي، د عوامو خدمت کول او له مختلفو لارو څخه له هغوی سره مالي مرستې کول او داسې نور...[1]

**د تبشیر نړیوال رئیس:**

د تبشیر اوسنی نړیوال لارښود او رئیس مشهور یهودي مستشرق صموئیل زویمر دی او په ټولو اسلامي هېوادونو کې د تبشیري فعالیتونو مسوولیت همده ته سپارل شوی دی.

---

۱- المستشرقون والمبشرون: ۳۹ مخ، ابراهیم خلیل احمد.

همدی پلانونه ورته جوړوي او بیا یې خپلو ماتحتانو ته ورکوي، څو هغوی یې په محوله اسلامي هېوادونو کې پلي کړي، مطلب دا چې د استشراق په څېر تبشیر هم د مسیحي نما یهودي په لاس کې دی د استشراق ریاست ګوله زیهر یهودي پر غاړه لري او د تبشیر ریاست زویمر یهودي کوي.[1]

**وسایل او اسلوب:**

اسلام دښمنه منحرف مسیحیت، د اسلام د مقدس دین او اسلامي امت په خلاف د خپل طاغوتي تحریک تبشیر او تنصیر، یعنې د مسلمانانو د نصراني کولو او له خپل حق دین څخه د بې لارې کولو لپاره په اسلامي هېوادونو کې د پرمختګ او کامیابولو په تکل مختلف وسایل او د تبشیري دعوت مختلف اسلوب او طریقې په کار اچولي او عیارې کړي دي.

څو په منظم او مرموز ډول د مسلمانانو د غزو فکري- فکري استعمارولو دغه شیطاني تحریک مخ پر وړاندې بوتللو ته دوام ورکړای شي، چې دا دی دلته د تبشیر عیار کړي وسایل یو په بل پسې ذکر کېږي او دغه وسایل په ېنځو ډولونو باندې دي، چې د شرایطو او امکاناتو په نظر کې نیولو سره یې په ځینې اسلامي ملتونو او هېوادونو کې ېنځه واړه توام په کار اچوي او په ځینې هېوادونو کې ځینې وسایل پلي کوي او د مسیحیانو دغه وسایل په لاندې ډول دي:

**الف: استعمار:**

په دې ځای کې له استعمار څخه زموږ مطلب سیاسي استعمار دی.

او سیاسي استعمار د استشراق، تبشیر او نورو کفري تحریکونو لپاره د ملا د تیر حیثیت لري او دا هغه وسیله ده، چې ددې په موجودیت سره تبشیري دعوت په چټکتیا سره د خپل هدف پړاوونه یو په بل پسې له کوم خنډ څخه پرته مخ پر وړاندې بیایي؛ ځکه چې سیاسي قدرت او ځواک د

---

۱- جذور البلاء: ۱۹۸ مخ، عبدالله التل.

هغه چا په لاس کې وي، چې هغه د کلیسا د اوامرو تابع وي، هغه کولای شي د ظروفو او شرایطو په برابرولو کې د تبشیري دعوت د پرمختګ له مشکلاتو سره بریمنه مقابله وکړي.
له همدې امله د استشراق او تبشیر پیروانو دا لازمه وګڼله، چې په اسلامي هېوادونو کې له هر څه نه دمخه پر سیاست او اقتصاد قبضه وکړي او پخپله ولکه کې یې راولي.
هماغه و چې په شپاړسمه مسیحي پېړۍ کې یې د اسلامي هېوادونو په مستعمره کولو برید وکړ.
د برېتانیا او فرانسې مسیحي استعمارګرانو پخپل منځ کې اسلامي نړۍ سره ووېشله، د مرکزي اسیا هېوادونه یې د روس تزاري مسیحي ښکېلاک ګرو ته پرېښودل او نور د اسیا او افریقا پاتې اسلامي هېوادونه یې پخپل منځ کې سره تقسیم کړل او دا معاهده یې سره وکړه، چې که یو بل ته یې د اسلامي هېوادونو په مستعمره کولو کې نظامي اړتیا پیدا شي، نو مرسته به یو له بل سره کوي.[۱]
او بیا نو هر یو د اسلامي هېوادونو پر مستعمره کولو پیل وکړ، چې جدول یې په لاندې ډول تقدیمولای شي:

---

۱- اسالیب الغزو الفکري للعالم الاسلامي: ۴۵ مخ، دوکتور علي جریشه.

| د مستعمره هېواد نوم | د مستعمره کولو تاریخ | د استعماري ځواک نوم |
|---|---|---|
| ۱- مسـقط، بحـرین، هرمز | ۱۵۱۵م | پرتګالي مسیحیان |
| ۲- فلیپین | ۱۵۶۵م | پرتګالي مسیحیان |
| ۳- الجزایر | ۱۸۳۰ م | فرانسوي استعمار |
| ۴- تونس | ۱۸۸۱ م | فرانسوي استعمار |
| ۵- مراکش | ۱۲۹۱ م | فرانسوي استعمار |
| ٦- شام | ۱۹۲۰ م | فرانسوي استعمار |
| ۷- نایجریا | ۱۸۵۱ م | بریتانیا |
| ۸- سنیګال | ۱۷۵۷ م | بریتانیا |
| ۹- هندوستان | ۱۸۵۷ م | بریتانیا |
| ۱۰- مصر | ۱۸۸۲ م | بریتانیا |
| ۱۱- عراق | ۱۹۱۴ م | بریتانیا |
| ۱۲- فلسطین | ۱۹۱۸ م | بریتانیا |
| ۱۳- سوډان | ۱۸۹۸ م | بریتانیا |
| ۱۴- اردن | ۱۹۲۰ م | بریتانیا |
| ۱۵- زنګبار | ۱۸۷۰ م | بریتانیا |
| ١٦- قبرص | ۱۸۷۸ م | بریتانیا |
| ۱۷- المغرب | ۱۹۱۱م | فرانسه |
| ۱۸- اریتیـــریـــا صومالیه | ۱۸۸۷ م | ایتالیا |
| ۱۹- لیبیا | ۱۹۱۱م | ایتالیا |
| ۲۰- قزاقستان | ۱۵۵۰ م | روس |

| | | |
|---|---|---|
| ۲۱- ققفاز | ۱۶۷۰ م | روس |
| ۲۲- كريميا | ۱۸۶۴م | روس |
| ۲۳- ازبكستان | ۱۸۵۹ م | روس |
| ۲۴-اورال قرغزستان» | ۱۶۷۰ م | روس |
| ۲۵- تركمنستان | ۱۸۸۴ م | روس |
| ۲۶- بخارى | ۱۸۸۲ م | روس |
| ۲۷- يمن | ۱۸۳۹ م | بريتانيا |
| ۲۸- سيراليون | ۱۸۹۶ م | بريتانيا |
| ۲۹- سنيګال او مالي افريقا | ۱۷۸۳ م | فرانسه |
| ۳۰- عرب امارات | ۱۹۷۱ م | بريتانيا |
| ۳۱- قطر | ۱۸۸۲ م | بريتانيا |
| ۳۲- كويټ | ۱۹۱۲ م | بريتانيا |
| ۳۳- كيمرون مغربي افريقا | ۱۹۱۶ م | فرانسه |
| ۳۴- ګيني مغربي افريقا | ۱۸۸۲ م | فرانسه |
| ۳۵- ګمبيا مغربي افريقا | ۱۸۰۷ م | بريتانيا |
| ۳۶- لبنان | ۱۹۱۸ م | فرانسه |
| ۳۷- موريطانيه غربي افريقا | ۱۸۵۰ م | فرانسه |
| ۳۸- جزاير مالديپ | ۱۸۸۷م | بريتانيا |

| | | |
|---|---|---|
| ۳۹- مالیزیا | ۱۷۹۵ م | بریتانیا |
| ۴۰- نایجر | ۱۸۹۰ م | فرانسه |
| ۴۱- جزایر ملایا | ۱۹۱۴ م | بریتانیا |
| ۴۲- چاډ | ۱۹۷۱ م | فرانسه |
| ۴۳- تنزانیا ختیزه افریقا | ۱۹۱۹ م | بریتانیا |
| ۴۴- اپرولتا | ۱۸۹۶ م | فرانسه |
| ۴۵- جبوتي شمال ختیز افریقا | ۱۸۸۶ م | فرانسه |
| ۴۶- دهوی مغربي افریقا | ۱۸۶۴ م | فرانسه.[۱] |

مطلب دا چې له افغانستان او حجاز مقدس څخه پرته بل هیڅ داسې اسلامي هېواد پاتې نه شو، چې مسیحي ښکېلاکي ځواکونو پخپل منځ کې وېشلی نه وي او بیا یې مستعمره کړی نه وی، حجاز د حرمینو شریفینو په برکت او افغانستان د في سبیل الله جهادي جذبې، پر اسلام او ازادۍ د دغه مسلمان ملت د ځان قربانولو په واسطه له مستعمره کولو څخه باقي پاتې شو، سره له دې چې انګرېزي استعمار د هند له لارې شپږ ځلې د افغانستان مستعمره کولو هڅې وکړې، چې یو ځل په (۱۸۳۸) عېسوي، بیا په (۱۸۴۸ ) عېسوي، بیا په (۱۸۷۸) عېسوي، څلورم ځل په (۱۸۸۱)عېسوي، پنځم ځل په (۱۹۱۹) عېسوي، شپږم او د وروستي ځل لپاره په (۱۹۲۱) عېسوي کال کې پرلپسې یرغلونه وکړل، چې الله تعالی نامراده او ناکام کړ.

---

۱ - العالم الاسلامي والاستعمار السیاسي: ۴۱۰ مخ، سیاست بریتانیا في جنوب الیمن: ۳۷۵ مخ، الاتجاهات الفکریة: ۴۰ مخ، الغزوالفکري وحرکات ومذاهب: ۶۴ مخ.

**فعالیتونه:**

استعماري ځواکونو کله چې پر اسلامي هېوادونو سیاسي قبضه وکړه، نو سرېره پر دې چې د اسلامي هېوادونو اقتصادي وسایل او طبیعي زېرمې یې لوټ کړې، هر یو استعماري ځواک پخپلو اسلامي مستعمره هېوادونو کې د تبشیري مخکښانو له هدایاتو او اسلام ضد شومو پلانونو سره سم د مسیحیت د منحرف او منسوخ دین د ترویج او پرمختګ لپاره د مسلمانانو پر فکري او عقیدوي استعمار پیل وکړ او خپل ټول قوت او ځواک یې همدغه پلو ته مبذول او متوجه کړ؛ ځکه چې د اسلامي هېوادونو له مستعمره کولو څخه د مسیحیانو اصلي او اساسي موخه او مقصد په فکري توګه د مسلمانانو مسیحي کول او یا لږ تر لږه له دین څخه بې لارې کول و او په دې هکله یې د پاپانو او مبشرینو له هدایاتو سره سم په لاندینیو اقداماتو برید وکړ:

**لومړی: د عربي ژبې زده کړې الفبا ملغی کول:**

استعماري مسیحي ځواکونو د اسلامي هېوادونو له مستعمره کولو سره سم د دغو هېوادونو پر اقتصادي وسایلو، طبیعي زېرمو او سیاسي نظام له قبضې کولو څخه سرېره د تبشیر د مخکښانو له هدایاتو سره سم یې د مسلمانانو په فکري استعمارولو هم برید وکړ؛ بلکې له نورو اړخونو څخه یې هم دغه اړخ ته زیاته پاملرنه مبذوله کړه، چې دغه مرحومه امت په معنوي توګه فلج کړي.

۱- نو له هر څه نه لومړی استعماري ځواکونو په فکري ډګر کې د عربي ژېدود او ژب زده کړې د له منځه وړلو لپاره اقدام وکړ، فرانسې او روس پخپلو اسلامي مستعمراتو کې په قانوني توګه په عربي رسم الخط او الفبا باندې په مطلق ډول بندیز ولګاوه او د عربي ژب زده کړې پر ځای یې د فرانسوي ژبې او روسي ژبې رسم الخطونه او الفبا د برچې په زور پر اسلامي محکومو ملتونو تحمیل کړل او پخپلو خپلو مستعمراتو کې یې د

عربي ژبې د رسم الخط زده کړه په قانوني توګه نه معاف کوونکی جرم اعلان کړ.
مګر بریتانیه د خپل انګلیسي او شیطاني مصلحت پر اساس داسې ونه کړل او په قانوني توګه يې پخپلو اسلامي مستعمراتو کې لکه مصر، سوډان، کویټ، مالېزیا، بنګال او هند کې د عربي رسم الخط په زده کړه بندیز ونه لګاوه، مګر په مقابل کې يې د خپلې ژبې انګرېزي د ترویج لپاره یو شمېر اغېزمن او داسې موثر پلانونه وضع کړل، چې د هغو په پلي کولو سره له یو پلوه په دغو محکومو هېوادونو کې د مسلمانانو د اقتصادي مشکلاتو لرلو له امله د عربي ژبې د زده کړې مینه ورځ په ورځ مخ په کمېدو شوه او په مقابل کې د انګرېزي ژبې د زده کولو رجحان او ترویج په چټکتیا سره مخ پر وړاندې لاړ او هغه دا چې د انګرېزي ژبې د زده کولو ټول وسایل؛ لکه کتاب، قلم، کاغذ او داسې نور يې وړیا ورکول او بیا کله به چې کوم مسلمان د انګرېزي ژبې زده کړه پای ته ورسوله، هغه ته به سم له لاسه په دفاترو کې په اوچته تنخوا کار ورکړای شو، د خارج بورسونه يې ورته رواج کړل، د مبشرینو او مستشرقینو له هدایاتو سره سم د بکلوریا، لیسانس، ماسترۍ او دکتورا اعلی درجات منځته راوړلی شول.
۲ - په داسې حال کې چې د عربي ژبې د زده کړې لپاره دغه ډول هڅوونکي او ترغیبي پروګرامونه یو هم نه و.
او له بل پلوه يې دفتري ژبه انګرېزي وګرځوله، چې د هغې له زده کړې شخه پرته به مسلمانانو د خپلو هېوادونو په دفاترو کې کار او ماموریت کولی نه شوای او نه يې د ژوند او کهول مشکلات رفع کولای شوای.
۳ - اقدام يې دا وکړ، چې د عربي او ملي ژبو د زده کړو په مقابل کې د انګرېزي ژبې د زده کړې او زده کوونکو لپاره خو چنده معاش مقرر کړ، د مثال په ډول: که د ملي او محلي ژبې زده کوونکی معلم، استاذ، مامور او کمپوز لپاره به دوه زره تنخوا وه، خو د انګرېزي ژبې معلم ته، استاذ ته مامور او کمپوز ته به

نهه زره میاشتنی تنخوا هم وه او نور انعامونه به هم و.

۴- اقدام یې دا وکړ، چې ټول بشري علوم یې د روسي، فرانسوي، الماني او ایټالوي استعمارګرانو په څېر په انګرېزي ژبه وګرځول، نو که د چا به انګرېزي زده نه وه، هغه نه شوای کولای د انجینرۍ، طب، اقتصاد، فارمسي (درمل جوړولو) او داسې نورو علومو زده کړه وکړي او د خپل ملت او هېواد د پرمختګ لپاره په عربي ژبه یا ملي ژبه کې په دغو مسلکونو کې خدمت وکړي.

۵- اقدام یې دا وکړ، چې د خپلو ګوډاګیانو او ګومارل شویو په ذریعه یې د عربي ژبې زده کړې په خلاف تبلیغات پیل کړل او خلکو ته یې دا په ذهن کې ورکول، چې په دې ژبه کې خو د لمانځه، اوداسه او ذکر له زده کړې څخه پرته بل هیڅ نشته، دنیوي هوساینه، پرمختګ، سوکالي او ارامتیا ټوله د انګرېزي ژبې په زده کړې ده او بس.

د دغو اقداماتو نتیجه دا منځته راغله، چې انګرېزي استعمار خپلې ژبې، خپل رسم الخط او الفبا محبوبیت د محکومو ملتونو د سطحې فکر او نظر او ضعیف الاسلامه مسلمانانو په اذهانو کې دومره عمیق، پوخ او کلک متمرکز وګرځاوه، چې اوس هم په دغو هېوادونو کې د انګرېزانو له تللو څخه شپېته کلونه وروسته هم ځای پرځای او متمرکز دي او له انګرېزي سره هماغسې مینه لري؛ لکه چې د هغوی په موجودیت کې یې لرله، په انګرېزي ژبه خبرې کول، لیک لوست، تالیف او تصنیف کول د ځانونو لپاره ویاړ او سعادت ګڼي.

د استعماري ځواکونو ددې کار نتیجه دا شوه، چې هغوی پخپل تبشیري رسالت کې کامیاب شول، مسلمانانو د عربي ژبې له زده کړې څخه د لرې کېدو په ذریعه د خپل دین له حقیقي روح څخه بېګانه شول، د خپل جامع او ابدي قانون د قران کریم د نزول اصلي مقصد له پوهېدلو څخه بې برخې شول، یوازې دده په تلاوت کولو یې بسوالی وکړ، د اسلام او عربي زده کړه

بې فایدې، سطحي کار ورته ښکاریږي.
ډېر ژر پرې ستومانه او ستړې کېږي، په داسې حال کې چې انګرېزي ژبې او د انګرېزي ژبې په بشري علومو کې شپه ورځ مصروف وي، هیڅ ستړیا نه محسوسوي؛ ځکه چې دین یې په دنیا بدل شو، د قران زده کړه د عربي ژبې زده کړه او د دیني چارو ترسره کول د یوې مخصوصې طبقې لپاره مختص کړای شول.

**دویم: د اسلامي قوانینو پرځای د مسیحي قوانینو نفاذ:**

دغو استعمارګرانو په اسلامي محکومو هېوادونو کې دویم غټ تبشیري کار دا وکړ، چې په رسمي توګه یې د الله تعالی قانون تعطیل کړ، د اسلامي شریعت حقوقي، جزایي، عسکري، اقتصادي او مدني ټول قوانین یې له منځه یوړل او خپل مسیحي قوانین یې د برچې په زور نافذ کړل، چې په دې توګه د اسلام ژوند ښونکي قوانین یوازې په مدرسو کې تدریس کېدل، مګر له عملي ډګر څخه ګوښه کړای شول او د نفاذ له صحنې څخه خارج کړای شول او دا تبلیغات یې پیل کړل، چې د اسلام قوانین جامد، وچ او ظالمانه دي (نعوذ بالله منها) او مسیحي قوانین بشرپال، عادلانه او د عصر له مقتضیاتو سره برابر دي.
دغه راز په رسمي مکاتبو، لېسو او پوهنتونونو کې د زده کړې له نصاب څخه د دغو قوانینو د زده کړې منسوخ کول او په عوض کې یې د مسیحي بشري قوانینو زده کړه لازمي ګرځول، څو په محکومو اسلامي هېوادونو کې په نظري، فکري او عملي ټولو اړخونو کې مسلمانان له اسلام څخه لرې او مسیحي وګرځولای شي.

**دریم: د کلیساوو او مسیحي معابدو جوړول:**

د تبشیر د مسیحي تحریک مخکښانو د خپل استعمار ګرو حکومتونو د برچې په زور په محکومو اسلامي هېوادونو کې کلېساوې او نور مسیحي عبادتځایونه تعمیر کړل او د مسلمانانو په توحیدي سپېڅلو اسلامي

ځمکو یې مشرکانه معبدونه اعمار کړل، چې په حقیقت کې د مساجدو او اسلامي عباداتو د تعمیراتو د مخنیوي لپاره یو ستر طاغوتي پلان دی، چې په دغو هېوادونو کې اوس مسیحي معبدونه جوړ کړای شوي دي او اوس هم د مذهبي پېرزوینې په نوم باندې په پرلپسې توګه جوړولی شي.

که څه هم په سیاسي توګه مسیحي استعمار له دغو هېوادونو څخه تللي دي او دغه هېوادونه یې ازاد کړي دي، مګر په فکري توګه اوس هم په دغو هېوادونو کې موجود دي او د مسلمانانو او اسلام په خلاف فعالیت کوي.

د اسلامي هېوادونو په اسلامي او توحیدي فضا کې د اذان په مقابل کې ناقوس مشرکانه غږ اوچتېږي او د تبشیر کار کوونکي په ډېر ویاړ سره خپل رسومات په کې ادا کوي.

**څلورم: د مسلمانانو په منځ کې تفرقه او اختلافات جوړول:**

د مبشرینو څلورم فعالیت، چې د خپلو استعمارګرانو په وسیله یې په اسلامي محکومو هېوادونو کې پیل کړ، دا و چې د مسلمانانو ترمنځ د طبقاتو په منځته راوړلو سره په مسلمانانو کې خپل منځي اختلافات پیدا کړي، د ژبې، قومیت او قبیلوي شخړو اور په کې بل کړي او د مسلمانانو وحدت په تفرقه، نفاق او اختلافاتو بدل کړي.

دغه راز د ښځو د ازادۍ او حقوقو په نوم فتنه هم د لومړي ځل لپاره استعماري ځواکونو په محکومو اسلامي هېوادونو کې ایجاد کړه او په نیمه ازادو هېوادونو کې یې د خپلو ایجنټانو په نوم دغه کارنامې سرته رسولي او اوس یې هم رسوي.

سر بېره پر پورتنیو اعمالو او چارو استعماري ځواکونو د اسلامي امت بشپړې بې لارې کولو او په فکري توګه د هغوی د بې دینه کولو لپاره نور یې هم ډېر پلانونه پلي کړي وو، چې اوس هم کما في السابق جریان لري او دا خبرې نه تهمتونه دي او نه تړل شوي پور او پاګند دی؛ بلکې پخپله د استعمارګرانو له پلوه مستندې، ثابتې دي، چې هر یو پخپلو مستعمراتو

کې په دستوري توګه سرته رسولي دي او اوس هم ددغو مانورو په تطبيق کې هاند کوي او په دې هکله دلته دا دی، د دغو استعمارګرانو له جملې څخه د يو استعماري ځواک د مستعمراتو د وزارت د هداياتو او کړنچارو يوه نمونه د ثبوت په توګه ګرانو لوستونکو ته وړاندې کېږي.

**د انګلستان د مستعمراتو د وزارت اسلام دښمنه پلانونه:**

د انګلستان د مستعمراتو د وزارت د اسلامي مستعمراتو په هکله هدايات او پلانونه له نن څخه کابو دوه سوه دېرش کلونه دمخه، کله چې انګلستان د اسلامي هېوادونو د مستعمره کولو اراده وکړه، نو لومړی يې د خپل دغه شوم کار د ترسره کولو لپاره پخپل حکومت کې د مستعمراتو د وزارت په نوم يو وزارت تاسيس کړ او ددغه وزارت وظيفه دا وه، چې د اسلامي هېوادونو د مستعمره کولو لپاره پلانونه جوړ کړي او هم داسې پلانونه او تدابير تهيه کړي، چې له مستعمره کولو څخه وروسته د هغوی په عملي کولو سره په دغو هېوادونو کې دده د بقا او تلپاتې کېدو سبب وګرځېږي.

دغه وزارت همداسې وکړل او بيا د منځني ختيځ يو تبشيري کار کوونکی او متخصص او ددغه وزارت له مامور سره چې همفر نومېده، د هغو پلانونو او هداياتو يو ليست و، چې د بريتانيه د مستعمراتو وزارت په محکومو هېوادونو کې د خپلو کار کوونکو لپاره تيار کړی وو، چې بيا هغه لست افشا او مسلمانانو ته په لاس ورغی او بيا د مسلمانانو د بېدارولو په تکل هغه خپور کړای شو، چې دا دی يو څو عمده پلانونه او تدابير يې په لاندې توګه وړاندې کېږي:

۱- د مسلمانانو ترمنځ مذهبي او فقهي اختلافات ايجادول او يو فقهي مذهب د بل په خلاف بد ګومانه کول، تردې چې يو پر بل د کفر فتواوې ورکړي او خپل منځي جنګونو کولو ته منجر شي.

۲- په اسلامي ملتونو کې د بې کارۍ او راهبانه ژوندانه ترويج، څو په

مادي توګه پرمختګ ونه کړي.

۳- له علم او پوهې څخه د مسلمانانو تبعيد او لرې ساتل، د مدارسو او تعليمي زده کړو د مراکزو د جوړولو مخنيوی او د لزوم په صورت کې د مسلمانانو عملي مراکزو او کتابتونونو ته اور اچول.

۴- په اسلامي هېوادونو کې د لنګر خانو جوړولو پروسې ته وده ورکول، مينجوري او ملنګۍ ته د مسلمانانو تشويق او د داسې کتابونو او رسالو چاپ او تکثيرول، چې په هغو کې د کسب او کار کولو او دنيادارۍ مذمت شوی وي.

۵- په اسلامي هېوادونو کې د بې امنيتۍ موجبات منځته راوړل، په ښارونو او کليو کې فتنه او ګډوډي ايجادول، د بدکارانو او بد اخلاقو خلکو ملاتړ کول او هغوی ته د شرعي سزاګانو ورکولو مخه نيول، خلک د محاکمو په خلاف احتجاج ته هڅول، فتنه ګرانو ته د وسلې او نورو تخريبي موادو توزيع کول، لار وهونکو او غلو ته د وسلې او روپيو ورکول او هغوی ورانکارۍ کولو ته تشويقول.

٦- په بېوزلي، فقر، ويجاړتيا، کاختۍ او نېستۍ کې د اسلامي هېوادونو ساتل او د هر ډول اصلاحاتو او پرمختګ مخنيوی د بريتانه د استعمار له مهمو اهدافو او پلانونو څخه دي.

۷- په اسلامي هېوادونو کې په هر اړخيزه توګه د صحت او روغتيا د وسايلو د ايجاد او ترويج مخنيوی.

۸- د اسلامي هېوادونو حاکمان او مامورين په شرابو، قمار، ساز و سرود، عياشۍ او فحاشۍ اموخته کول، د هغوی په دربارونو، دفترونو او کورونو کې د پورتنيو شيانو په تهيه کولو سره د ملي بوديجو، بيت المال او شتمنيو مصرف کول، څو په اسلامي هېوادونو کې د دفاع د چارو، د هېوادونو د ابادولو او اقتصادي پياوړتيا او پرمختګ لپاره بوديجه پاتې نه شي او همېشه موږ ته په دې باره کې محتاج وي، ييا نو موږ کولی شو، پر

هغوی خپل شرطونه په استثنیا سره قبول کړو.

۹- په اسلامي هېوادونو کې قوم پرستي او نژادي عصبیتونو ته وده ورکول او ددغو هېوادونو د پخوانیو ملتونو له فرهنګ، تاریخ، ژبدودونو او عقیدوي امورو سره د مسلمانانو په اذهانو کې مینه او علاقه پیدا کول او دغه غورځنګ دومره پیاوړی کول، چې د اسلام، اسلامي شعایرو، فرهنګ او ثقافت په پرتله هم له هغوی سره د دوی مینه زیاته شي او د هغو د بیا را ژوندي کولو لپاره قیامونه منځته راشي او یو ځل بیا د اسلام پر ځای په اسلامي هېوادونو کې پخواني باطل ادیان او ثقافتونه، لکه فرعوني ثقافت، زردشتي دین، بُت پرستي او بوداییزم ژوندی شي او په دې هکله د مستعمراتو وزارت د وسایلو په زړه پورې تیاری او اهتمام کړی دی.

۱۰- په اسلامي ملتونو کې په عامه خلکو او ځوان نسل کې د شرابو څښلو، جواري کولو، شهوتراني ترویج، د خنزیر د غوښو خوړلو ته هڅول، د مستعمراتو د وزارت له اساسي پلانونو څخه دی او په دې هکله په اسلامي هېوادونو کې، یهودي، زردشتي، صابیین، مسیحي او نور غیر اسلامي اقلیتونه له موږ سره مرسته وکړي او په اسلامي ملتونو کې د مفاسدو او غیر اسلامي افکارو په خپرولو کې به په ګډه سره کار وکړو.

د بریتانیه د مستعمراتو وزارت د تعاون په صورت کې فعالیت کوونکو ته مناسب او په زړه پورې جوایز او مکافاتونه ورکوي، دغه راز په اسلامي هېوادونو کې زموږ پر کار کوونکو لازم دي، چې وکړي تربیه کړي او د پټه یې چمتو کړي، چې په مسلمانانو کې دغه څلور مفاسد یعنې د شرابو څښل، په مختلفو نومونو د قمار ترویج، درېیم فحشا، یعنې زنا کاري او لواطت او څلورم د خنزیر د غوښو خوړلو شایع او معمول وګرځوي او پر انګلیسي مامورینو لازم دی، په هره طریقه چې مناسب وګڼي، که د جوایزو په ورکولو سره وي، نغدو روپیو په ورکولو سره وي او که په نورو وسایلو سره وي، په پټه وي او که په ښکاره توګه وي، باید ارو مرو دغه څلور

پورتني مفاسد په مسلمانانو کې ترویج کړي.
دغه راز د انګلیس د مستعمراتو وزارت خپلو مامورینو ته حکم کوي، چې د دغو مفاسدو د ترویج د فعالیت کوونکو ژوند تضمین کړي او له هر ډول زیان رسېدلو څخه د فعالیت کوونکو د ژغورلو لپاره لازم تدابیر ونیسي.
۱۱- په اسلامي هېوادونو کې د سود خورۍ پروسه باید فعاله کړای شي او ددغه کار په ترویج مسلمانان باید د قران کریم د تحریم له حکم څخه سرغړونې ته تشویق کړای شي او په دې هکله زموږ د مستشرقینو هغه دلیلونه ورته وړاندې کړای شي، چې پخپلو کتابونو کې یې بیان کړي دي، د مثال په ډول مستشرقینو د قران کریم د سود د حرمت د ایت په تفسیر کې ویلي دي، چې له دې څخه مراد مرکب، یعنې څو چنده سود خوړل دي او ساده سود خوړل حرام نه دي.
د سود په خوړلو سره او د نورو هغو معاملاتو په ترویج سره چې اسلام حرام کړي دي، له یو پلوه د مسلمانانو اقتصادي سیستم ګډوډېږي او له بل پلوه د مسلمانانو ترمنځ دیني او فکري اختلافات رامنځته کېږي او درېیمه ګټه یې موږ ته دا ده، چې د سود خورۍ په ذریعه په اسلامي هېوادونو کې طبقاتي شخړې تبارز کوي، د هغوی خپل منځي صمیمیت او اتفاق تالا ترغه کېږي.
۱۲- په اسلامي هېوادونو کې د دیني عالمانو په خلاف پور او پاګند کول، د دیني عالمانو او عوامو ترمنځ احترامانه تړون او رابطه له منځه وړل د هر یو انګلیسي مامور او کار کوونکي بنسټیزه دنده ده، برابره خبره ده که هغه تجار وي، که متخصصین وي، که سفارتکار وي او که معلمین وي.
ددې کار لپاره په کار دي، د مستعمراتو د وزارت کارکوونکي له دوو وسایلو څخه په عمده توګه کار واخلي:
**لومړی**: دا چې د مسلمانانو پر دیني عالمانو داسې تورونه او تهمتونه ولګوي او بیا هغه خپاره کړي، چې د هغو له امله دیني علماء بدنام شي او د

عوامو عقیدوي کرکه ورسره پیدا شي، لکه: د اشاعیوه خپرول، چې انګرېزان د علماوو په نوم مسلمانانو ته لمونځونه ورکوي او فتوا ګانې ورکوي، بله دا شایعه چې د استعمار دښمنه ملایانو د بدنامولو لپاره ډېره ضروري ده، چې هغوی وهابیان دي او داسې نور...

دویمه: او مهمه ذریعه د اسلامي مدارسو او دیني زده کړو د ناکامولو او فلج کولو لپاره د مستعمراتو د وزارت له پلوه د ښوونځیو، مدارسو او مکاتبو جوړول دي او بیا په دغو ښوونځیو کې باید هغه نصاب د مسلمانانو زامنو ته زده کړای شي، چې د مستعمراتو وزارت جوړ کړی دی او ددغه نصاب د تدریس لپاره په دغو مدارسو کې هغه معلمان توظیف کړای شي، چې د انګلستان د دولت معاش خواره دي.

زموږ ددغه کار ګټه به دا وي چې ددغه نصاب په زده کولو سره به د اسلامي ملتونو، نوي نسل له خپل دین، عقیدې او تاریخ څخه بې خبره وروزل شي، دوېم دا چې په دغو مدارسو کې د سوچه جدیدو علومو د زده کړې له امله به د نوي نسل په زړونو کې د اسلام او دیني عالمانو په زړونو کې کرکه او نفرت پیدا شي.

درېیم: دا چې هغوی به ازاد خیاله ورروزل شي، د اسلام له اخلاقي او عقیدوي نظام څخه بې خبره او د اسلام هیڅ یو شرعي حکم ته به پابند نه وي، چې بیا په دې صورت کې به موږ ته د هغوی مسیحي کول ډېر اسانه وي.

۱۳- د کافرانو او مشرکانو په مقابل کې د في سبیل الله جهاد، د فرضیت عقیده د مسلمانانو په ذهن کې متزلزل کول او هغه داسې چې د مسلمانانو په منځ کې دا شایعه خپره کړای شي، چې له کافرانو او مشرکانو سره د جهاد او جنګ کولو د فرضیت حکم یوازې د اسلام د لومړی پېړۍ د مسلمانانو لپاره مختص وو او اوس د دغې فریضې ادا کولو ته هیڅ ضرورت نه شته.

۱۴- د مسلمانانو د دې عقیدې په له منځه وړلو کې باید زیات کوښښ وکړای شي، چې کافران او مشرکان نجس دي او هغوی ته دا فکر ورکړای شي، چې دغه ایت منسوخ شوی دی، بلکې ټول انسانان یو شان دي او ټول بشري ملتونه سره ورونه دي.

او په دې هکله زموږ د مستشرقینو دلایل ورته وړاندې کړای شي او د مسلمانانو د قناعت لپاره د «ام المومنین» صفیه رضي الله تعالی عنها، «ام المومنین» ماریه قبطیه رضي الله تعالی عنها مثالونه وړاندې کړای شي، چې په دې توګه موږ وکولی شو، خپلې مسیحي خوېندې لورګانې د مسلمانانو د مسیحي کولو او بې دینه کولو لپاره استخدام او د کار لپاره هغوی ته وړاندې کړو او مسلمانانو ته یې واده کړو.

۱۵- په اسلامي هېوادونو د مسیحیت د حقانیت ثابتول، په مسلمانانو کې باید دا مفکوره پیدا کړی شي، چې یوازې د اسلام دین حق دین نه دی؛ بلکې یهودیت او نصرانیت هم حق ادیان دي؛ ځکه چې په قران کریم کې اهل کتاب ورته ویلی شوي دي او هم دا دلیل ورته وړاندې کړای شي، چې ابراهیم، اسماعیل، یوسف علیهم السلام د ټولو دا دعا کړې وه، چې «توفنی مسلما»، پر همدې اساس له هغوی څخه وروسته هم یهودیان او نصرانیان هم مسلمانان دي؛ ځکه چې د هغوی پیروان دي.

۱٦- په اسلامي هېوادونو کې د کلیساګانو او نورو مسیحي معابدو د جوړولو لپاره موجبات اواسباب برابرول او مسلمانانو ته دا قناعت ورکول، چې د مسیحیانو او یهودیانو معابد هم حق، په قران کریم کې یې الله تعالی له جوماتونو سره یو ځای ستاینه کړې ده، له همدې کبله به د اسلام پیغمبر چې لښکرې لېږلې، نو پوځي مشرانو ته به یې توصیه کوله، چې معابد ړنګ نه کړي، ان تر دې چې که څوک په معبدونو کې پناه واخلي، نو نه به یې کېږي.

۱۷- د مستعمراتو وزارت مامورین د تبشیریانو په ګډون په اسلامي

هېوادونو کې دا زيار وباسي، چې مسلمانان له عبادت کولو څخه وژغوري او هغوی ته دا فکر ورکړای شي، چې الله تعالی د بنده ګانو له عبادت کولو څخه بې نياز دی، د حج فريضه او حجاز ته د دغه فرض ادا کولو لپاره سفر کول، د خپل مال زکات ورکول عبث او بېهوده ورته تلقي کړای شي، د زيارت پرستۍ روحيه ور په کې عامه کړای شي.

۱۸- په اسلامي هېوادونو کې د اسلام پر خلاف په اسلامي ټولنو کې دا تبليغات بايد وکړای شي او مسلمانانو ته دا فکر ورکړای شي، چې اسلام د اختلافاتو، شخړو، خپل منځي جنګونو او حرج و مرج دين دی، څو په اسلام پورې د مسلمانانو د زړه تړون کمزوری شي او ايمان يې متزلزل شي او په پای کې د نصرانيت دين ته دعوت او مسيحي کړای شي او په دې هکله د مسلمانانو فقهي او روان سياسي اختلافات د دلايلو په توګه وړاندې کول د عوامو مسلمانانو د ګمراه کولو لپاره بسوالی کوي.

۱۹- د مسلمانانو په کورنيو کې نفوذ کول خورا ضروري دی، څو د پلرونو او زامنو ترمنځ خپل منځي اړيکې دومره ابته کړای شي، چې زامن د پلرونو او نورو مشرانو له نصيحت او تربيت قبلولو څخه متمرد او نافرمان وګرځېږي او نوی نسل په بشپړه توګه د استعمار د فرهنګ تابع وګرځولی شي، چې بيا نو په دغه صورت کې موږ په اسانتيا سره کولی شو د اسلامي امت ځوانان د ديني عقايدو له حوزې څخه خارج کړو او له علماوو سره د هغوی اړيکې او تړون په کامله توګه غوڅ کړو.

۲۰- په اسلامي هېوادونو کې د ښځو د بې حجابۍ مسئلې ته خاصه پاملرنه وکړای شي، د شعري حجاب په خلاف تبليغات په کار واچولی شي او زموږ مامورين مکلف دي، په اسلامي ټولنه کې د شرعي حجاب د له منځه وړلو لپاره خپل ټول امکانات په کار واچوي، کنفرانسونه، غونډې او مظاهرې ترتيب کړای شي، ضعيف الايمان مسلمانان نارينه او ښځې په پيسو واخېستل شي او د هغوی په مرسته خپل دغه غورځنګ کامياب کړای شي.

هغوی تربیه کړای شي او دا وظیفه ورته ورکړای شي، چې په جوماتونو، کورونو او حجرو کې د حجاب په خلاف په عوامو کې دا ذهنیت تزریق کړي، چې ستر او پرده له ښځو سره ظلم دی او اسلام د حجاب په حکم سره د ښځو د ازادۍ حق سلب کړی دی او ښځه مظلومه یې د حجاب او ستر په نوم په خونو کې قید او بندي کړې ده.

پر ازادۍ خوښوونکو مسلمانو ښځو لازم دي، چې د حجاب په نوم د کورونو له بندیخانو څخه راووځي او غټ غټ ټیکري او چادري ګانې په اور کې وسوځوي او د غربي ښځو په څېر ازاد او ټولواک ژوند ترلاسه کړي، د دین، پلار او مېړه له مریيتوب او غلامۍ څخه خپله ازادي ترلاسه کړي او دا د ښځې پنځیز حق دی.

د دغو تبلیغاتو او د اسلامي حجاب په خلاف د پیل کړي غورځنګ د کامیابولو لپاره په اسلامي هېوادونو کې د ټولو انګلیسي کارمندانو پر ښځو او پر نورو غیر اسلامي ښځو لازم دي، چې له خپلو کورونو څخه هره ورځ بربنډ سرونه په داسې حالت کې بازارونو، چمنونو او سیل ځایونو ته ووځي او لاړې شي، چې نیمه عریان نازک لباس یې اغوستلی وي، سیګرټ یې په خوله کې وي، څو مسلماني ښځې له دوی څخه تقلید وکړي، د دوی په څېر سرونه لوڅ کړي، نیمه عریان بدنونه له کورونو څخه بازارونو، سیل ځایونو او هوټلونو ته ایکې یوازې له مېړونو، پلرونو او نورو محارمو څخه پرته تلل راتلل پیل کړي، له دوکاندارانو سره ازادانه خبرې، خندا، ټوکې ټکالې پېرودل او پلورل وکړي او زموږ غربي مسیحي ښځې چې څه کوي، هغه دوی هم ورڅخه زده کړي او عمل پرې وکړي.

پر همدغه مهال، کله چې په اسلامي ټولنو کې زموږ د بې حجابۍ غورځنګ کامیاب شي او ښځې لوڅ سرونه، بازارونو دفترونو، سیل ځایونو، هوټلونو او د نارینه په محافلو کې د ګډون لپاره بهر شي، زموږ کارمندانو ته لازم دي، چې مسلمانان ځوانان عشقبازۍ او له ښځو سره نامشروع

جنسي روابطو ته تشویق کړي.

په بازارونو، لارو، کوڅو او سیل ځایونو کې له ښځو سره لاسونه اچول، خنداګانې او ټوکې ټکالې کول، مچو ګانې اخیستل، انجونو ته اشارې او شپېلاقونه کول ور زده کړي، څو موږ وکولای شو په اسلامي ټولنو کې اجتماعي ژوند ګډ وډ کړو، د کهول شرعي احترام او درناوی او د اسلامي کورني نظام اصول له پښو لاندې درهم او برهم کړای شو.

۲۱- په مسلمانانو کې د جمعې له لمانځه او په جماعت سره پنځه وخته د لمونځونو ادا کولو روحیه کمزوري کول، د روحانیاتو پرځای مادي ګرځول، زموږ له مهمو اسلام ضد پلانونو څخه ګڼل کېږي.

۲۲- د مسلمانانو د نسل تحدید: په دې برخه کې مسیحي ګومارل شوي، باید په خصوصي توګه فعالیت وکړي او په اسلامي هېوادونو کې پربنېږدي، چې د اسلامي امت نسل ډېر شي، د مسلمانانو په زړونو کې د ډېر اولاد زېږولو په هکله راز راز تشویشونه پیدا کول، لکه د غربت او افلاس تشویش، د روزۍ، لباس، درمل، کور او تربیت، صحیح تعلیم او داسې نورو فکري اندېښنې ایجادول او په مسلمانانو کې پر الله تعالی د توکل کولو او بروسې کمزوري کول او له منځه وړل ډېر مهم او ضروري دي.

په اسلامي هېوادونو کې د نسل د تحدید او کنترول د موثر ثابتېدو په صورت کې هغوی ته د نسل د ممانعت دوا درمل تهیه کول او د تحدید نسل مرکزونه جوړول د بریتانوي استعمار ذمه واري ده، څو له یو پلوه د مسلمانانو نسل تحدید شي او له بل پلوه به په دغه لاره کې د مسلمانانو د بودیجې زیاته برخه د هغوی د خپل ځان او نسل په تباهۍ مصرف کړای شي.

۲۳- له یو واده څخه د زیات واده کولو ممانعت: په اسلامي هېوادونو کې ازدواجي نظام به بشپړه توګه له اسلامي شریعت څخه بهر کړای شي او په انګرېزي قانون او د مسیحیت پر اصولو عیار کړای شي او هغه داسې، چې

واده کوونکی نارینه او ښځه کال دوه کلونه په ازادانه توګه یارانه سره وکړي، په هوټلونو، پارکونو کې عشق بازي سره وکړي، په علم کې په عمر کې، په شتنو کې سره برابر وي، د مور و پلار او بل ولي له اذن او اجازې څخه پرته انجلۍ حق لري، چې پخپله واده وکړي. دیانت، تقوا، حیاء، اخلاق دا ټول ارتجاعي امور دي، چې باید نارینه او ښځه دواړه ورڅخه ازاد وي.

دریم: دا چې ښځه هم باید په ازادانه توګه په دفتر او کارخانو کې د کار کولو حق لري، مېړه حق نه لري، چې ممانعت یې وکړي.

څلورم: د کور کار کول، لکه پخلی، جامې وینځل د اولاد تربیه، مېړه او مېرمن باید په ګډه سره وکړي.

پنځم: د طلاق حق، لکه څرنګه چې نارینه لري، دغه راز ښځه هم دغه حق لري او هرکله چې وغواړي، له مېړه څخه خپل طلاق اخېستلی شي.

شپږم: دا چې یو نارینه له یوه څخه له زیاتو ښځو سره د هغې د موجودیت په صورت کې واده کولای نه شي.

اووم: دا چې د یو ملت نارینه د بل ملت له انجلۍ سره واده نه شي کولای، د مثال په ډول عرب له عجم سره او عجم له عرب سره، پښتون له تاجک سره، فارسي ژبی له پښتون سره واده کولی نه شي.

د دغو شرایطو په عملي کولو سره په مسلمانانو کې له اسلامي قانون څخه لرېوالی، د نسل تحدید، د قوم پرستۍ روحیه ژوندي کېږي، د یو زوجه ګي د نظریې په تعمیل سره مغربي دود عملي کېږي او هغه دا چې مېړه به د یوه مېرمن په موجودیت کې لس او شل معشوقې لري او مېرمن به هم د مېړه په موجودیت کې همدومره اشنایان لري او یو پر بل به نیوکه او انتقاد هم نه کوي.

۲۴- د جوماتونو او دیني مدارسو تحدید: په اسلامي هېوادونو کې باید د مسلمانانو معابد، لکه جوماتونه او مدارس له منځه یوړل شي او یا لږ تر

لږه محدود کړای شي، د مدارسو او جوماتونو د اعمار او جوړولو دنده له ديني عالمانو او ولسي خلکو څخه واخېستلی شي او حکومت ته حواله کړای شي او کله چې داسې وکړای شي، نو دديني شعايرو، معابدو او مدارسو او ديني زده کړو اهميت او ارزښت به د نوي نسل په زړونو کې کم شي او ورو ورو به له منځه لاړ شي.

۲۵- د اسلامي تعليماتو د نړيوالتوب مسئله: په دغې موضوع کې بايد په زړه پورې تبليغات وکړای شي او دا عقيده او د اسلامي امت دعوی ترديد کړای شي، چې د اسلام مقدس دين او اسلامي تعليمات د ټول بشريت لپاره دي او نور ټول اديان باطل او تعليمات يې منسوخ دي.

مسلمانانو او نورو نړيوالو ته بايد دا فکر ورکړای شي، چې په حقيقت کې د اسلام دين يوازې د عربو لپاره دی او په دې باره کې د قران کريم پر هغه ايت استدلال وکړای شي، چې په کې ذکر شوی دی:

﴿ وَإِنَّهُۥ لَذِكۡرٞ لَّكَ وَلِقَوۡمِكَۖ وَسَوۡفَ تُسۡـَٔلُونَ ۝٤٤ ﴾. (الزخرف/۴۴)

ژباړه: او په تحقيق سره دغه قران ستا لپاره او ستا د قوم لپاره پند دی او ډېر ژر به له تاسې څخه پوښتنه وکړای شي.

مطلب دا چې ددې خبرې زيار وايستلی شي، چې د اسلام دين نړيوال نه؛ بلکې محدود او د يو ملت دين ثابت کړای شي او نور ملتونه به ورڅخه منحرف کړای شي.

۲۶- په قران کريم او نبوي احاديثو کې شک او ترديد پيدا کول: په اسلامي هېوادونو کې د اسلام د مقدس دين پر خلاف او د مسيحيت د برياليتوب لپاره دا خبره ډېره ضروري او د تبشير د غورځنګ له اصولو څخه دی، چې مسلمانان د موجوده قران کريم د اصالت او صحت په باره کې شکمن کړای شي او ددې کار لپاره له درې وسايلو څخه بايد کار واخېستلی شي:

لومړی: دا چې نوی داسې قراني نسخې بايد چاپ او په اسلامي هېوادونو

کې تیت او خپرې کړای شي، چې په هغو کې د مستشرقینو له پلوه کمبوت او زیاتوالی کړای شوی دی او بیا همدغه نسخې بې خبرو مسلمانانو ته وښودلای شي، څو د قران کریم د صحت په هکله هغوی زیات شکمن شي.

دویم: دا چې له قران کریم څخه هغه ټول مضامین او ایتونه حذف کړای شي، چې په هغو کې د یهودیانو او نصرانیانو مذمت بیان کړای شوی دی او د دغو دواړو ملتونو اقوالو او اعمالو ته مشرکانه او غلط ویلی شوي دي.

دریم: دا چې قران کریم د محرف ثابتولو لپاره د یهودي او مسیحي مستشرقینو هغه کتابونه په مختلفو ژبو، لکه فارسي، پښتو، اردو، ترکي، جاوایي او نورو ژبو ترجمه کړای شي او بیا په زرګونو نسخې ورڅخه چاپ او په مربوطه هېوادونو کې توزیع کړای شي، چې د قران کریم په مضامینو او ایاتونو یې تنقیدونه او تردیدونه ور په کې کړي دي او په دې هکله د ګولډ زیهر مستشرق «المذاهب الاسلامیة في تفسیر القرآن» د خاصې یادونې وړ دی.

دغه راز د نبوي احادیثو په هکله مسلمانان په شک کې غورځول او هغوی ته دا فکر ورکول، چې نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته منسوب احادیث پخپله د هغه کلام نه دی؛ بلکې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم له انتقال څخه دوه پېړۍ وروسته د احادیثو تدوین شوی دی او خلکو له خپل ځان څخه جوړ کړي دي او بیا یې محمد صلی الله علیه وسلم ته منسوب کړي دي او په دې باره کې د مستشرقینو او بیا په خاصه توګه د مسلمان مستشرق ډاکتر احمد امین مصري پر کتابونو استناد کول زیات اغېزمن ثابتېږي.

**د قرآن کریم په هکله د ګلاډستون نظر:**

د بریتانیه د انګرېزي استعمار پخوانی لوموړی وزیر «صدر اعظم» ګلاډستون د انګلیس پارلمان ته په یو خطاب کې د خپل استعماري

پرمختګ په لاره کې د ځینې مهمو او خورا سختو خنډونو یادونه وکړه او ددغو خنډونو له جملې څخه یې قران کریم له ټولو څخه لوی خنډ ګڼلی او په داسې حال کې چې د قران کریم یوه نسخه یې په لاس کې نیولې وه، هغه یې اوچته کړه او پارلمان ته یې قران کریم ته په اشارې سره داسې وویل:

«مادام هذا القرآن موجودا فلن تستطیع اوربة السیطرة علی الشرق ولا ان تکون هی نفسها فی آمان».[۱]

ژباړه: ترڅو چې دغه قران موجود وي، نو نه یوازې دا چې اروپا ختیز څپله مستعمره ګرځولی نه شي او نه پرې مسلط کېدلای شي؛ بلکې پخپله اروپا هم په امن پاتې کېدلای نه شي.

دغه راز د فرانسوي استعمار حاکم په الجزایر کې د هغه هېواد د مستعمره کولو د سلم (۱۰۰) کال د کالیزو په لمانځنه کې د قران کریم په هکله داسې ویلي و:

«یجب ان نزیل القرآن العربی من وجودهم... ونقتلع اللسان العربی من السنتهم، حتی ننتصر علیهم».[۲]

ژباړه: پر موږ لازم دي، چې له هر څه نه لومړی له مسلمانانو څخه عربي قران لرې کړو او له منځه یې یوسو او عربي ژبه له منځه یوسو، ترڅو موږ د دوی پر نصراني کولو بریالي شو.

مطلب دا چې استعمار دا خبره احساس کړې ده، چې قران کریم هغه معجز الهي کتاب او ابدي قانون دی، چې په اصلي بڼه د مسلمانانو په منځ کې دده موجودیت د طاغوتي ځواکونو هیڅ یوه فکري دسیسه کامیابېدلای نه شي، نو له هر څه دمخه د اسلامي امت د دغه مومن بِهِ کتاب په هکله د

---

۱. الاسلام علی مفترق الطرق/۴۱، داکتر محمد اسد عربی.
۲ - التبشیر والاستعمار/۴۰، څلورم چاپ.

مسلمانانو د شکمن کولو فعالیت ضروري او لازمي ګڼي او په دې هکله د خپلو مستشرقینو او فتنه ګرو مبشرینو هر ډول مرستې او تعاون موږ ته چمتو دي.

۲۷- د مسلمانانو د تغریب وسایل په کار اچول: زموږ مامورینو ته لازم دی، چې په اسلامي هېوادونو کې د هغوی د غربي ګرځولو ټول وسایل په کار واچوي او په دې باره کې له هرڅه نه لومړی د اسلامي ثقافت پرځای غربي ثقافت ترویج کړي او په ټولو اجتماعي اړخونو کې غربي ثقافت حاکم وګرځوي.

د مثال په ډول، لکه په رسمي او سیاسي اړخونو کې اسلامي اصطلاحات او د ملي ژبې نومونه په استعماري ژبه بدل کړي، لکه د دفتر پر ځای افس، د مرکز پر ځای سنټر، د محکمې پرځای کچري، د قاضي د نوم پر ځای جج او جسټس، د ابتدایه، مرافعه او تمیز د محاکمو نومونه په سیشن کورټ، سپریم کورټ او های کورټ په نومونو بدل کړای شي.

صاحب منصب ته افسر، ښوونځي او مدرسې ته سکول، پوهنتون ته یونیورسټي، معهد ته انسټیټیوټ، لیسې ته کالج، شاګرد ته سټوډنټ او معلم ته ماسټر وویل شي.

ابتدایي زده کړې پرایمري، متوسطه میډل، یا میټرک او عالي زده کړو ته ګریجویټ وویل شي، عسکر ته سولجر، پیره دار ته سنتري، کاتب ته کلرک، سر معلم ته هیډ ماستر، سرک ته روډ، عامو لارو ته های وی، ایونیو، پیاده رو ته فوټ پات، نشراتو ته لټریچر، چاپځای ته پریس، پلورنځي ته ایجنسي، حکومت ته ګورنمنټ نومونه ترویج کړای شي، د لاسلیک پرځای مسیحي تاریخ ترویج کړای شي.

دغه راز پر مامورینو دریشي اغوستل، نیکټایي اچول، چې صلیب دې تړل، ږیره خرییل لازمي وګرځول شي، په مسلمانانو کې د زېږندې او مرګ کالیزو لمانځل، غربي لباس اغوستل رواج کړای شي، په نظامي اړخ کې د

شرعي سلام پر ځای مسیحي سلامي کول او مسیحي تشریفات او غربي عسکري زده کړې او اصطلاحات ترویج او لازمي وګرځول شي.

د ادب او لیکوالۍ په اړخ کې د اسلامي ادب پر ځای غربي مسیحي ادب، لکه افسانه، ډرامه مصوري تمثیلي فلمونه ترویجول، د نامتو مسلمانو شاعرانو، لکه حسان، عبدالله ابن رواحه لیکوالانو لکه ابن حجر، ابن خلدون، ابن تیمیه، ابن القیم، بلاذري او نورو پرځای ټالسټای، شکسپیر او داسې نور مشهور کړای شي.

صحافت ته ژورنالیزم او بیا اسلامي ادب په بشپړه توګه په غربي ادب بدل کړای شي، څو له عربي زده کړې او ثقافت څخه لرې کړای شي.

۲۸- د نوي نسل ګمراه کول: د مسلمانانو د نوي نسل د ګمراه کولو لپاره د مثمر او اغېزمن کار وکړای شي او په دې هکله د سینما ګانو جوړول، د ساز او سرود، ګډا نڅا وسایل تهیه کول په مختلف ډول لوبې، لکه هاکي، ټېنس، کرکټ، فوټبال، والیبال، باسکټ بال ترویجول، راډیو، ټلوېزیون او داسې نور اسباب تیارول، د ساز او سرود زده کړې ته په ښوونځیو او نورو تعلیم ځایونو کې په رسمي توګه ځای ورکول، د ارټ په نوم د بتانو جوړولو کسب رواجول، عکاسي او د هغه وسایل په زیاته اندازه مهیا کول او د حکومتونو له پلوه د دغو اشیاوو د زده کړې لپاره د زیاتو انعاماتو او تقدیرنامو ټاکل ضروري دي او دغه امور د اسلامي امت د نوي نسل د بې لارتیا لپاره په زړه پورې او موثر وسایل دي.

۲۹- مسیحي دعوت خپرول: مسیحي استعمار په رسمي توګه خپلو کار کوونکو ته فرمان صادر کړ، چې په مستعمره اسلامي هېوادونو کې مسیحي دعوت پیل کړي، کلیساوې او مسیحي معابد جوړ کړي، د مسیحي دعوت لپاره په پراخه پیمانه دعوتي مرکزونه جوړ کړي، انجیل پر مختلفو ژبو ترجمه او چاپ کړي او بیا یې پر مسلمانانو وړیا توزیع کړي دې په څنګ کې د مستعمره اسلامي هېوادونو د خپرونو وسایل، لکه

راډیو، تلوېزیون، ورځپاڼې، جراید، مجلې او داسې نور مسیحي دعوت ته وقف کړي، دغه راز دنیا پرست مسلمان شاعران، ادیبان او لیکوالان په روپیو اخلي او هغوی دېته چمتو کړي، چې خپل ادبي ځواکونه مسیحي دعوت ته استخدام کړي، عیاشو او لا ابالو خلکو ته د هغوی د عیاشۍ وسایل تهیه کړي او زیار وباسي، چې له اسلام څخه یې لرې کړي، په مسلمانانو کې په مختلفو وسایلو د اسلام د مقدس دین روحیه، حمیت، ننګ او غیرت له منځه یوسي، څو زموږ د ښکېلاکي او زېښاکي پلانونه د تطبیق لپاره زمینه برابره شي او په تدریجي توګه اسلامي دعوت، اسلامي قانون، اسلامي شعایر او اسلامي عبادات خپل ځای مسیحیت ته پرېږدي.

۳۰- د استعماري ځواکونو ترمنځ خپل منځي مرسته: د انګلیس د مستعمراتو د وزارت د استعماري پلانونو په کتاب کې دېرشم پلان له استعماري ځواکونو سره د خپل منځي مرستې او تعاون په باره کې و، په دغه پلان کې ترسیم او لیکلی شوی و، پر برېتانیه لازم دی، چې د اسلامي امت په ځپلو او د مسلمانو هېوادونو په مستعمره کولو کې د فرانسې او روس له پاچاهانو او امپراطورانو سره لازمي او د هغوی د ضرورت وړ مرستې وکړي او ددې په څنګ کې دغه امپراطوران دېته دعوت کړي، چې موږ ټول په ګډه سره په منظم ډول د اسلامي امت د بشپړ ځپلو لپاره هر اړخیزې او جامع برنامې او پلانونه جوړ کړو، څو له بهر او دننه څخه اسلامي حکومتونه فلج کړو او له منځه یې یوسو.

۳۱- په اسلامي هېوادونو کې استعماري ملتونه مېشته کول: په اسلامي هېوادونو کې د غیر اسلامي هېوادونو غیر اسلامي قومونه مېشته کول دېر ضرروي دي، برابره خبره ده که د هر مذهب وي، لکه زردشتیان «مجوسیان» هندوان، صابئین، یهودیان او مسیحیان او بیا به خاصه توګه روسي تزاري، فرانسوي او برېتانوي مسیحیان او غیر اسلامي ملتونو ته د مسلمانانو له ځمکو څخه غوره او حاصلخېزه ټوټې باید

ورکړای شي.
په تجارتي، اقتصادي، علمي، فرهنګي، اجتماعي او اداري مراکزو کې زموږ مسیحي دعوتګران «مبشرین» د مدیرانو رئیسانو، امرانو په صفتونو مقرر کړای شي، څو په اسانتیا سره د مسلمانانو د مسیحي کولو دنده سرته ورسولی شي.
په اسلامي هېوادونو کې د غیر اسلامي اقلیتونو له مېشته کولو څخه وروسته د هغوی د اقتصادي بنسټ د کروړلتیا په خاطر له هغوی سره لازمي مرستې باید وکړای شي، هغوی ته نظامي روزنه هم باید ورکړای شي، جنګي روزونکي او جنګي تجهیزات ورته ورکړای شي.
څو همېشه د مسلمانانو په سترګو کې اغزي وي او د اسلام د پرمختګ د مخنیوي لپاره په زړه پورې دنده سرته ورسولی شي، په تدریج سره په سیمه کې د اسلامي حکومتونو له منځه وړلو سبب وګرځېږي.
۳۲- د استعماري جاسوسانو ګومارل: د استعماري مقاصدو د ترسره کولو او د استعماري نقشو او پلانونو د پوره کولو لپاره د مستعمره اسلامي حکومتونو په دولتي سازمانونو او سکتورونو کې، د مشاورینو متخصصینو او مسلکي کارمندانو په نومونو د جاسوسانو او څرېو مقررول ډېر ضروري دي او دغه جاسوسان چې څومره زیات وي، په هماغه اندول د استعمار اهداف په بشپړه توګه سرته رسېدلای شي.
جاسوسانو ته دا تربیه او هدایات ورکول لازم دي، چې د مسلمانانو له تصامیمو، د هغوی له اسلامي غونډو، نظامي قوتونو، اقتصادي زېرمو او سیاسي ذات البیني اړیکو څخه خپل متبوع دولت ته خبرداری ورکړي او وخت په وخت راپورونه ورته تیار کړي.
۳۳- ازدواجي اړیکې پیدا کول: په اسلامي هېوادونو کې مېشته مسیحیان او کار کوونکي باید هڅه وکړي، چې له مسلمانانو سره په مستعمره اسلامي هېوادونو کې ازدواجي روابط قایم کړي، د قران کریم او

نبوي احاديثو په استناد چې مسلمانانو ته روا دی، چې له اهل کتابو ښځو سره واده وکړي، مسلمانان دېته وهڅوي، چې له مسيحي انجونو سره ودونه وکړي او مسيحيان هم له ممانعت څخه پرته خپلې خوېندې او لورګانې هغوی ته واده کړي.
ځکه چې په اسلامي امت کې د مسيحي انجونو ودول د مسيحيت د ترويج او تعميم لپاره خورا مهمه او اغېزمنه وسيله ده، خو لومړی بايد دغه ډول مسيحي ښځې پر تبشيري روحيه ورروزل شي، څو مطلوبه کار ورڅخه واخستلی شي، دغه مسيحي ښځې دا وظيفه لري، چې که خپل مسلمان مېړونه مسيحي نه کړای شي، نو لږ تر لږه هغوی خو بايد بې دينه کړي او د اسلام په هکله يې د بې تفاوته نظر لرونکي خاوندان وګرځوي
دغه راز مسلمانو واکمنانو او حاکمانو ته د ښايسته او نخره بازو انګليسي ښځو استخدامول، د سکرترۍ، ټايپستۍ، راپورتاژ ليکونکې په نومونو له هغوی سره کار کول، څو هغوی فاسد الاخلاق، تجمل پسند او زنکه باز، شراب خواره او عياش وګرځوي او دغه کار نه يوازې په دولتي سکتورونو کې؛ بلکې په نظامي سکتور کې هم رواج کړي
۳۴- د فاسدو او لاس پوڅو حاکمانو روزل موږ په اسلامي هېوادونو کې داسې مسلمان حاکمان بايد تربيه کړو، چې هغه سوچه زموږ لاس پوڅي وي، زموږ د بولې او امر تابع وي او يوازې زموږ لپاره او زموږ د استعماري اهدافو د ترلاسه کولو لپاره کار وکړي، موږ په خپلو مستعمره اسلامي هېوادونو کې د غټو پستونو د چارو تصدي داسې حاکمانو ته وسپارو، چې يوازې او يوازې زموږ امپراتورۍ ته وفادار وي، زموږ د اسرارو او منافعو ساتندويان وي؛ ځکه چې موږ بيا په همدغه صورت کې خپل استعمار ته دوام ورکولای شو
۳۵- د اسلامي او غير اسلامي ګاونډيو هېوادونو ترمنځ نزاع اچول د اسلامي او غير اسلامي ګاونډيو هېوادونو ترمنځ سرحدي جنګونه،

منازعات، شخړې او کشمکشونه ایجادول، زموږ له استعماري مهمو پلانونو څخه ګڼل کېږي، له همدې کبله د هغوی ترمنځ د اختلافاتو پیدا کولو په تکل د پولو او سرحداتو داسې مسایل ایجادول، چې تر ډېرې مودې پورې او یا تل تر تله د هغوی ترمنځ د دښمنۍ باعث او نه حل کېدونکي وي، دغه راز د اسلامي هېوادونو په داخل کې د مسلمانانو او نورو ادیانو پیروانو ترمنځ جنګونه او شخړې باید ایجاد کړای شي، څو د هغوی ترمنځ یو پر بل باور او اعتماد له منځه لاړ شي او د دوی ترمنځ د متقابله احترام د نه موجودیت په توسه دښمني او جنګونه ورځ په ورځ مخ په زیاتېدو وي، هېوادونه یې په مادي لحاظ له پرمختګ څخه وروسته پاتې شي، د خپل منځي جنګونو او شخړو له امله یې موږ ته پام نه وي، نو بیا په دې صورت کې موږ کولای شو په ډاډه زړه او سړه سینه خپل پلانونه سرته ورسوو او تطبیق یې کړو

## د تبشیر او استعمار ملګرتیا

استعمار په اسلامي هېوادونو کې د مسیحیت د سیاسي او فکري حاکمیت لپاره له تبشیر سره د زړه له کومې ملګری دی؛ بلکې همدغه استعمار دی، چې په اسلامي ملتونو کې یې د مسیحي تبشیر د فعالیت لپاره زمینه برابره کړې ده او د اسلامي هېوادونو په هر اړخیز تخریب کې یې ونډه اخستلې ده، لکه چې دوکتور عبدالحلیم محمود پخپل کتاب غزو فکري کې ویلي دي:
استعمار وکړای شو، چې هم د جنګ او زور له لارې او هم د مکر او فرېب او خپلو مڼکورو پلانونو په ذریعه په اسلامي هېوادونو کې تخریب وکړي او د خپل وس په اندازه ول یې ویجاړ کړي او ددې هدف د سرته رسولو او ترلاسه کولو لپاره له مختلفو نیرنګونو او لارو چارو څخه یې کار واخیسته او یو د بل په ملګرتیا سره یې کار پیل کړ، استعمار د خپل نظامي او سیاسي نفوذ او ځواک په وسیله په اسلامي هېوادونو کې د مسیحیت د دعوت په لاره کې له خپلو مبشرینو سره مرسته وکړه او په مبرره توګه یې د هغوی ملاتړ وکړ. [۱]
د مسلمانانو د توحیدي اسلامي عقایدو د فاسدولو په لاره کې یې له تبشیري تحریک سره داسې هر اړخیزه کومک وکړ، چې ګواکې استعمار اسلامي هېوادونو ته د همدغه کار، یعنې د تبشیر لپاره وارد شوی دی، استعمار وکړای شو، چې زیات مسلمانان د مسیحیت قبلولو ته وهڅوي او د اجنبي جنسیت قبلولو ته یې چمتو کړي او ددې کار لپاره یې د هغوی لپاره زښت ډېر امتیازات ترتیب او مقرر کړل، څو د مادي زرق او برق په

---

۱ - الغزوالفکري: ۱۷۰ مخ.

وسیله مسلمانان له حق دین څخه جار باسي، د مسیحیت عقیده او جنسیت پرې قبول کړي
لنډه دا چې استعمار په اسلامي هېوادونو کې د تبشیر او مسیحیت د پلي کولو په تکل د تبشیر له مختلفو فرقو او ډلو سره لکه یسو عیان، یعنې هغه مسیحي فرقه چې د عیسی علیه السلام پر مستقل الوهیت قایل دي او جزئیان یعنې هغه مسیحي فرقه چې عیسی علیه السلام د الله تعالی د مقدس ذات یو جز ګڼي او داسې نورو سره پوره مرسته وکړه.
د بشري خدمتونو او مرستو تر عنوانونو لاندې یې د اسلام په مسخه کولو او د مسلمانانو د عقایدو په فاسدولو کې یې د هغو ملګرتیا وکړه.
نتیجه:
مسیحي تبشیر له خپلې دغې ناولې طاغوتي وسیلې، یعنې استعمار څخه په زړه پورې او اغېزمنه ګټه واخېسته او هغه داسې چې په اسلامي مستعمره هېوادونو کې نه یوازې دا چې مبشرینو ته یې د مسیحي دعوت زمینه برابره کړه؛ بلکې د مستعمره هېوادونو اسلامي ثقافت، تهذیب دود او کلچر یې هم ورته فاسد کړ او د مسلمانانو اسلامي ژوند یې د غربي ژوندود په چوکاټ کې واچاوه.
خپله ژبه او طاغوتي قانون یې داسې پرې مسلط کړل، چې د دغو مستعمره اسلامي هېوادونو له ازادېدلو څخه وروسته هم پر هغوی د هغوی مسیحي مراسم لکه ورځې لمانځي، د مړي او ژوندي، غم او ښادۍ مراسم، تعلیمي نصاب، ناسته او ولاړه، اخلاقي بېلارتیاوې، سیاسي، اداري، اقتصادي او نظامي قوانین او تر اوسه پورې هلې ځلې کوي، مګر ځانونه ورڅخه خلاصولی نه شي.
او نه پخپلو اسلامي هېوادونو کې اسلامي حکومت پلی کولی شي
ددې خبرې نږدې او څرګند ثبوت پاکستان، الجزایر او مصر دی، د نیمې پېړۍ یعنې پنځوس کلونو له تېرېدو سره سره اسلامي تحریکونو چې

پخپلو قربانیو ورکولو یې خپل اسلامي هېوادونه له استعمار څخه ازاد کړل، اوس هم اسلامي حکومت جوړولی نه شي، د اسلامي ثقافت، اسلامي معارف، اسلامي شعایرو، قراني قوانینو د پلي کولو په لاره کې خنډونه ورته پراته دي او ددغو اسلامي ملتونو پرګنې اوس هم د خپل تهذیب او تمدن حکمیت ته تږي او لېواله دي.

لامل یې دا دی، چې استعمار د خپل کفري او طاغوتي نظام پر ټولو اړخونو خپل متعهد ایجنټان روزلي دي، چې د خپل بادار له تللو څخه وروسته د هغه کفالت کوي او په بشپړه وفادارۍ سره د هغه د بقایاوو د نفاذ او تداوم دنده ترسره کوي او د اسلامي نظام په مخنیوي کې له خپل بادار څخه هم زیات فعال دي او هغه داسې چې کله هم اسلامي تحریکونو پخپلو دغو اسلامي هېوادونو کې د اسلامي نظام د قیام لپاره پاڅون کړی دی، نو دغه د استعمار ایجنټانو د خپل بادار په قومانده له خپلو ټولو عیني او ذهني امکاناتو سره د مسلمانانو په مقابل کې اوچت شوي دي او له هر پلوه غوغاوې اوچتې کړي او د اسلامي امت د دغو دردمندو ځواکونو بدنامولو او ناکامولو لپاره په کروړلي طاغوتي ځواک سره د اسلام په مقابل کې درېږي.

دوېم لامل یې په دغو اسلامي هېوادونو کې د استعمار له پلوه د خپل حاکمیت په دوران کې د مسیحي، یهودي، بودایي، روسي، ارمني «زردشتي» او نورو اقوامو مېشته کول دي.

او هغوی هم د استعمار په لمسه دا هاند کوي، چې مسلمان ملتونه پخپلو اسلامي هېوادونو کې د اسلام نظام په پلي کولو کې بریالی نه شي او په دې لاره کې د اسلامي تحریکونو د هلو ځلو او د هغوی د دغه مقدس حرکت په لاره کې راز راز مزاحمتونه ایجادوي.

درېیم غټ لامل یې په دغو هېوادونو کې د استعمار د کفري قوانینو، تهذیب او شیطاني ثقافت، منحطو تعلیماتو ژورې جرړې دي.

ځکه استعمارګرانو پخپل دوه سوه کلن استعماري دور کې د خپلو غیر اسلامي ژېدودونو، کلچرونو او قوانینو جرړې دومره ژورې ځغولي دي، چې د هغوی له مونږ څخه په تمامه توګه ایستل هم څه اسانه کار نه دی او بیا له ټولو څخه زړه دردوونکې دا خبره ده، چې دغه ښکېلاکي ځواکونه تل دا زیار باسي، چې خپلې کفري بقایاوې چې په دغو استعمار ځپلو اسلامي هېوادونو کې د تل لپاره مسلطې پاتې شي، په غباب کې هم په عملي ډګر کې حکومت او حاکمیت د هغوی وي.



## په غیر مستعمره هېوادونو کې

هغه اسلامي هېوادونه چې له ډېرو هلو ځلو سره سره بیا هم هیڅ یو استعماري ځواک مستعمره کړی نه دی، لکه زموږ اسلامي هېواد افغانستان، سعودي عربستان، ترکیه او داسې نور په هغوی کې استعمار د نورو پلانونو په ذریعه د خپل فکري استعمار د پلي کولو هاند او هڅه کوي او هغه پلانونه په لنډیز سره په لاندې توګه وړاندې کېږي:

**لومړی: د اقتصادي او نورو مرستو مشروط کول:**

له دې کبله چې ټول کفري استعماري ځواکونه د اسلام او اسلامي امت دښمنان دي او هیڅکله یې پر مسلمانانو رفاه او سوکالي نه لري او نه دا خوښوي، چې اسلامي ملتونه د ژوند په کوم یو اړخ کې پر خپل ځان ویسا، متي او د کفري ملتونو له تعاون څخه مستغني وي؛ بلکې هغوی دا زیار باسي، چې مسلمانان تل بې وزلي، فقیر او دوی ته محتاج وي او دوی ته یې د مرستې غوښتلو لاسونه غځولي وي.

نو کله هم چې مسلمانانو له دوی څخه د اقتصادي، تخنیکي او نظامي مرستو غوښتنه کړې ده، کفري استعمارګرانو خپلې مرستې مشروطې کړې دي او په ازادۍ مېنو اسلامي هېوادونو یې د فکري استعمار د مسلط کولو لپاره اسلام دښمنه شرطونه عاید کړي دي، چې یو څو شواهد یې په لاندې توګه وړاندې کېږي:

**شواهد:**

**الف: مصر له مستعمره کولو څخه دمخه:**

د سعودي عربستان د ریاض د پوهنتون د شرعیاتو د پوهنځي استاذ ښاغلي دوکتور عبدالستار فتح الله سعید پخپل کتاب الغزو الفکري کې لیکلي دي:

کله چې په (۱۲۸۳) هجري کال کې له (۱۸٦٦) م کال سره سم.[۱]

د مصر خپلسري واکمن اسماعيل خديو اراده وکړه، چې مصر د عثماني خلافت له رکنيت او تابعيت څخه جلا کړي، نو له اروپايي مسيحي استعماري ځواکونو څخه يې د مصر په پياوړتيا کې مرسته وغوښته، هغوی هم د مرستې کولو ژمنه ورسره وکړه؛ مګر په دې شرط چې عملي ډګر کې اسماعيل پاچا د هغوی دغه شرطونه په عملي ډګر کې قبول او پلي کړي.[۲]

لومړی دا چې د قران کريم هغه ټول احکام به تبديلوي، چې د ژوند په سياسي او اجتماعي اړخونو پورې اړوند دی.

دوهم دا چې سياست به له دين څخه جلا کوي.

درېيم دا چې ښځو ته به په مطلق ډول داسې ازادي ورکوي، چې خپل ژوند د لوېديز د ښځو پر نهج عيار کړي.

څلورم دا چې د مصر تمدن به په هر اړخيزه توګه د غربي تمدن په چوکاټ کې اچوي او د غربي تمدن پر اصولو به يې عيار او پلي کوي.

د مصر دغه غرب زده او عياش واکمن دا هرڅه ورسره ومنل، د مصر د مسلمانې ټولنې سياسي او اجتماعي ژوند يې د قران مجيد د احکامو او قوانينو پرځای د اروپايي مسيحي قوانينو پر اصولو عيار کړ، دين يې له سياست څخه جلا کړ، د ښځو ازادي يې اعلان کړه اوبه مصر کې يې د اسلامي تمدن پرځای د غربي تمدن پر ترويج او پلي کولو لاس پورې کړ او په دې هکله له اسماعيل سره د مصر غرب زده ليکوالانو لکه عبدالرحمن الکواکبي، قاسم امين او داسې نوور پوره مرسته وکړه، قاسم امين د «المراة الجديدة» معاصره ښځه او د «تحرير المراة» د ښځې ازادي په

---

۱ - تاريخ دولت های اسلامي: ۱۴۳ مخ.

۲- غزو الفکري: ۵۲ مخ.

نومونو کتابونه هم ولیکل.[۱]

او د مصر ستر اسلامي هېواد، چې د غرب د فکري استعمار په توپان کې داسې لاهو کړ، چې تراوسه پورې ځان ورڅخه خلاصولی نه شي.

**ب: ترکیه:**

دویم او ځرګند مثال یې ترکیه ده او هغه داسې، کله چې د ترکې په اسلامي ستر هېواد کې چې د ټولې اسلامي نړۍ د خلافت مرکز و، د فرانسوي ښکېلاک روزل شوی ماسوني او سیکولر عسکري منصبدار کمال اتاترک په (۱۹۰۸) عېسوي کال کې کله چې د غیر اسلامي نظام راوستلو لپاره تحریک پیل کړ، نو له فرانسوي استعمار څخه یې په ترکیه کې د اسلامي خلافت د خاتمې لپاره او د غربي سیکولر نظام د پلي کولو په تکل د مرستې غوښتنه وکړه، نو فرانسوي ښکېلاک هم کمال اتاترک ته کټ مټ هماغه شرطونه وړندې کړل، چې برېتانوي ښکېلاک د مصر واکمن اسماعیل خدیو ته وړاندې کړي و او کمال اتاترک هم هغه ټول شرطونه ورسره منلي و.

نو بیا کله چې په (۱۹۱۹) عېسوي کال کې په ترکیه کې د یهودیانو او انګرېزانو په مرسته او بولي عثماني خلافت یې پای ته ورساوه، مصطفی کمال په ترکیه کې د سیکولر غربي نظام د پلي کولو لپاره له برېتانوي ښکېلاک څخه مرسته وغوښته.

هغه هم د مشروطې ژمنه ورسره وکړه او اتاترک هر ډول شرط قبلولو ته چمتو شو، مګر انګرېزانو اتاترک ته وویل، چې زموږ شرطونه او ستا له پلوه د هغه قبلول باید د یوې معاهدې او تړون په بڼه کې پر کاغذ ولیکل شي.

---

۱ - الاتجاهاف الوطئیة: ۲۷۵ مخ.

**د کرزون تړون:**

**مصطفی کمال ورسره ومنله او له دوارو خواوو څخه د معاهدې او تړون لپاره پلاوي وټاکل شول، چې د برېتانيه د پلاوي مشري د برېتانوي د بهرنيو چارو وزير کرزون پر غاړه لرله او د ترکيه د پلاوې مشري د کمال اتاترک ملحد لومړي وزير عصمت انونو ته سپارلی شوې وه او دواړو په متفق ډول معاهده ولیکله، چې څلور شرطونه په کې وليکل شول، چې بيا د کرزون د شرطونو په نوم ياد شول او هغه څلور شرطونه په لاندې ډول و:**

**الف: ترکيه به په بشپړه توګه له اسلام سره خپلې اړيکې پای ته رسوي.**

**ب: په ترکيه کې به نړيوال اسلامي خلافت ختموي.**

**ج: په ترکيه کې به ټول هغه حرکتونه له منځه وړي، چې د خلافت د بقا پلويان دي.**

**د: ترکيه به د ځان لپاره په ترکيه کې داسې نوی نظام پلي کوي او داسې قانون به جوړوي، چې د پخواني عثماني خلافت له هغه نظام او قانون څخه خلاف وي، چې د اسلام پر اصولو او احکامو جوړ کړای شوی و.**[۱]

**کمال اتاترک نه يوازې دا چې د برېتانيه دغه کفري شرطونه قبول او پلي کړل؛ بلکې په ترکيه کې يې (۵) په عربي ژبه د اذان په کولو او د لمانځه په اداء کولو هم بنديز ولګاوه او دا اعلان يې وکړ، چې له دې وروسته به په ترکي ژبه اذان او لمونځ ادا کولی شي. (٦) عربي رسم الخط يې پر لاتيني رسم الخط بدل کړ. (۷) د ښځو د ازادۍ اعلان يې وکړ او پر اسلامي حجاب يې بنديز ولګاوه او پخپله يې هم له يوې مشهورې فاحشې ښځې سره چې لطيفه نومېده واده وکړ، نوموړې ښځه په عمان کې روزل شوې وه، نيمه برېنډه به ګرځېده او کله چې اتاترک په ترکيه کې واکمن شو، نو دغه لطيفه نومې ښځه د ماسوني ګوند له پلوه ورته ډالۍ کړای شوه، خو له يو پلوه په**

---

۱- الغزو الفکري: ۱۱۱ مخ.

ترکیه کې د ښځو د ماسوني کولو، ازادۍ او بې حیايۍ دنده مخ پر وړاندې بوځي او له بل پلوه د اتاترک په زیات سیکولر کولو کې نقش ادا کړي او د هغه د کړو وړو سیاسي او دیني تحرکاتو څارنه وکړي.[1]

کمال اتاترک له برېتانوي او فرانسوي اسلام دښمنو زېږښاکي او استعماري ځواکونو سره له ژمنې کولو سره سم او د طاغوت د ګوند د پلویانو د خوشحالتیا لپاره په ترکیه کې د مسلمانانو د ژوند پر ټولو اړخونو د شرعي قوانینو او ملي دودونو پر ځای د مونتسکیو قوانین پلي کړل.

په کورني نظام کې یې طلاق د ښځې او مېړه مشترک حق وګرځاوه، په تعلیمي مراکزو کې یې د ځوانانو او پېغلو مخلوط تعلیم پیل او ترویج کړ بیت المال او د هغه عواید یې او په دې اړوند د اسلامي نظام ټول اقتصادي قوانین او هدایات یې لغوه کړل او په بدل کې یې د غرب د بروژوازي اقتصادي نظام بنسټ کېښود، د شرابو پر څښلو، جوړولو، پلورلو او پېرودلو یې بندیز پای ته ورساوه.

په ترکیه کې یې د غرب په شان له یوې ښځې څخه د زیاتو ښځو په کولو بندیز ولګاوه، د اقتصاد د غربي کولو لپاره یې د سود اسلامي او قران حرمت یې ملغی وګرځاوه، په ملي او دولتي سکتورونو کې سودي راکړه ورکړه یې عامه وګرځوله او په ډېره لږه موده کې یې په ترکیه کې اسلام دښمنه سیکولرستي نظام دومره په چټکتیا سره تطبیق او پلي کړ، چې غرب ورته اریان شو او په بدل کې یې د اتاترک یعنې د ترکانو د پلار لقب ورکړ.[2]

د خلافت مرکز، چې استانبول و، هغه یې انقره ته تبدیل کړ، په لویو

---

۱- د کمال اتاترک ژوند او واکمني: ۱۹۱ مخ.

۲- په اسلامي هېوادونو کې د اسلام او مغربیت کشمکش: مخ، علامه ابوالحسن علي ندوي په زیادت سره.

ښارونو کې يې د مسلمانانو د اخلاقو د له منځه وړلو په تکل کلبونه جوړ کړل، چې په ډاګه به زنا په کې کېده، د غرب په شان يې بروه ګري او فحاشي يو عادي کار وګرځاوه او په اصطلاح مرده ګاو خانو ته يې قانوني جوازونه ورکړل او ترکيه يې په سياسي، اقتصادي، نظامي، عقيدوي او تعليمي لحاظ داسې سيکولره کړه، چې تر اوسه پورې يې اسلام ته بېرته راستنېدل ګران شوي دي.

**ج: افغانستان:**

درېيم او له ټولو څخه ښکاره او ډاګيز شاهد يې زموږ پر اسلام ازادۍ او دين مېن هېواد اسلامي افغانستان دی.

ځکه کله چې برېتانوي ښکېلاک او زېښاک د افغانستان په ايلولو او مستعمره کولو کې ماتې وخوړه او درې ځلې زموږ له مجاهد او اتل مسلمان ملت سره په جنګونو کې تور مخ ناکام شو، نو زموږ د مسلمان ملت د فکري استعمار لپاره يې تبشيري حربه پيل کړه او په دې لاره کې يې د افغانستان د هغه وخت له ځان بايللي او غرب زده پاچا امان الله خان څخه د خپل ګوډاګي په توګه استفاده وکړه، څو وکولی شي د دغه بې لاري او له اسلام څخه بې خبره افغان پاچا په ذريعه په افغانستان کې تبشيري پلانونه تطبيق کړي او زموږ په اسلامي هېواد کې هم کلېساوې جوړې کړي او يا لږ تر لږه زموږ ملت ګمراه او په غربي شيطاني تهذيب راهي کړي.

په (۱۳۳۷) هجري قمري کال د جمادي الاول په اتلسمه (۱۸) د پنجشنبې په شپه د شپې درې بجې لـه (۱۲۹۷) هجري شمسي کال د حوت لـه لومړۍ نېټې او د (۱۹۱۹) کال د فبرورۍ له يوويشتمې نېټې سره سم امير حبيب الله خان د لغمان په کله ګوش کې شهيد کړای شو او د خپل پلار د مړينې په درېيمه ورځ، يعنې د حوت پـه درېيمـه د جمادي الاول پـه يوويشتمه د شنبه په ورځ امان الله خان خپله پاچاهي په کابل کې اعلان کړه؛ ځکه چې دی د پلار په ژوند کې عين الدوله او د پلار په غياب کې يې د ژمي په درې

میاشتو کې د سلطنت د پلازمېنې کابل ټولې چارې سرته رسولې.(۱)
امان الله خان د خپل سلطنت په نهم کال په (۱۳۴۶) هجري قمري کال د (۱۹۲۷) عېسوي کال د دسامبر په میاشت کې د (۱۳۰۶) هجري شمسي کال د قوس په اتلسمه (۱۸) نېټه له خپلې مېرمن ملکه ثریا سره د اروپايي هېوادونو په سفر لاړ او شپږ میاشتې او دولس ورځې يې په لندن، برلین، پاریس، انقره او مسکو کې تېرې کړې.(۲)
له اروپايي استعمارګرانو سره يې د دوستۍ تړون لاسلیک کړ او له هغوی څخه يې د افغانستان د پرمختګ لپاره مرستې وغوښتې، مګر هغوی هماغه شرطونه ورته وړاندې کړل، چې د مصر واکمن اسماعیل خدیو، د ترکیې واکمن مصطفی کمال ته يې وړاندې کړي وو او لکه څرنګه چې هغوی ورسره منلي و، امان الله خان هم د افغانستان په بې دینه کولو کې د زړه له کومې ورسره ومنل.
امان الله خان کله چې د اروپا له اوږد سفر څخه په (۱۳۴۷) هجري کې له (۱۹۲۸) عېسوي کال سره سم د (۱۳۰۷) هجري شمسي کال د چنګاښ په لومړۍ نېټه افغانستان ته راستون شو، په فکري او عقیدوي توګه بېخي بدل شوی و او له مسیحي استعمار سره يې چې کومې ژمنې کړې وې، سم له لاسه يې د هغوی په پوره کولو پیل وکړ او په دې تکل کې چې د افغانستان مسلمان ملت هم د استعمار د خوشحالتیا په خاطر د مسیحي مبشرینو او یهودي ماسونیانو له پلانونو سره سم د سیکولرستۍ په سیلاب لاهو کړي او د خپل دغه هدف ترلاسه کولو لپاره يې په لاندنیو نوښتونو او اقداماتو لاس پورې کړ او خپلو دغو اقداماتو ته يې د نويو اصلاحاتو نوم ورکړ.

---

۱- افغانستان در مسیر تاریخ: ۷۴۱مخ، میر غلام محمد غبار.
۲ - د افغانستان پېښلیک: ۲۵۴ مخ، لومړی توک، پوهاند عبدالحی حبیبي.

**د امان الله خان سیکولرستي اصلاحات:**

**۱- د ښځو ازادي:**

د اروپا د سفر له راستنېدو څخه دوه میاشتې وروسته د (۱۳۰۷هـ ش) کال د وږي د میاشتې په نهمه نېټه امان الله خان لویه جرګه راوغوښتله او د هېواد د علماوو، سپین روږو او سیاست پوهان په دغه لویه جرګه کې یې له هرڅه نه لومړی د ښځو د ازادۍ اعلان وکړ او ددغه اعلان تطبیق یې لومړی له خپل کهول څخه پیل کړ او خپله مېرمن ملکه ثریا یې بې حجابه او په اروپایي مونوژوپ لباس کې غونډې ته حاضره کړه او په غونډه کې یې اعلان وکړ، چې له نن څخه وروسته به د افغانستان ټول ملکي او نظامي مامورین او منسوبین رسمي غونډو او محفلونو ته خپلې مېرمنې بې حجابه له ځانونو سره حاضروي.

**۲- د نڅا او ګډا کلوپ جوړول:**

د ښځو د ازادۍ له اعلان څخه وروسته امان الله خان د کابل په ښار کې د «کلوب سیاه و سرخ و سبز» په نوم د ګډا نڅا، ساز او سرود مرکز جوړ کړ، چې ښځې به ور په کې ګډېدلې او د امان الله خان له پلوه د ملت لپاره دا هغه دوه سوغاتونه و، چې له لوېدیز طاغوتي تمدن څخه یې ورته راوړل، چې په حقیقت کې دغه کلوب د ملت د بې لارتیا د پیل او د غربي تمدن مهمه پایګاه وه.

امان الله خان د خپل خسر محمود طرزي او خپلې مېرمنې په مشوره په نورو اسلام دښمنو اصلاحاتو هم لاس پورې کړ.

د دغو اصلاحاتو فهرست یې لومړی په ګډه سره د غرب له هدایاتو سره سم جوړ کړ او بیا یې د (۱۳۰۷هـ ش) د میزان په پنځلسمه نېټه له (۱۹۲۸) مسیحي کال سره سم د کابل د ستوري په ماڼۍ کې اولسي جرګې ته اعلان کړ او د نفاذ حکم یې وکړ، چې لنډیز یې په لاندې ډول دی:

**۳- خارج ته د افغاني انجونو لیږل:**

امان الله خان یو د دې لپاره چې د ښځو د ازادۍ اعلان تحقق ومومي، شمېر افغاني انجونې له محارمو څخه پرته د زده کړې په نوم بهرنیو هېوادونو، یعنې ترکیه او اروپایي هېوادونو ته ولېږلې، څو افغانستان ته له راستنېدو وروسته زموږ په اسلامي هېواد کې ازادۍ او بې حجابۍ ته وده ورکړي.

**۴- پر دیني عالمانو بندیز لګول:**

امان الله خان د اروپا څخه له راستنېدو سره سم پر دیني علماوو یو شمېر بندیزونه ولګول او هغه دا و، چې اعلان یې وکړ: هغه دیني علماء چې د هندوستان د دیوبند دار العلوم شهادتنامې لري، هغوی په رسمي او غیر رسمي مدارسو کې تدریس نه شي کولی، امامت نه شي کولی، وعظ او خطابه نه شي کولی، په هدیرو، جوماتونو او عوامي غونډو کې د خبرو کولو حق نه لري.

او که چا له دغه فرمان څخه سرغړونه وکړه، چا مدرس کړ، یا یې امام مقرر کړي، یا یې وعظ ته اوچت کړ، نو د دغو ملایانو مقتدیانو او هم دوی دواړو ته به د حکومت له پلوه سخته سزا ورکول کېږي.

د دیني علماوو د بدنامولو او د عوامو په اذهانو کې د علماوو په هکله د نفرت پیدا کولو لپاره یې دا تبلیغات پیل کړل، چې ملایان د انګرېزانو ایجنټان دي او یو شمېر انګرېزان د علماوو په بڼه کې افغانستان ته راغلي دي، څو زموږ د مترقي برنامو د بدنامولو لپاره کار وکړي، له همدې امله د افغانستان خلک باید پر ملایانو اعتماد ونه کړي او بیا په خاصه توګه پر هغو ملایانو چې له دیوبند څخه فارغ شوي دي.

د دیوبند له فارغینو علماوو څخه د امان الله خان او د هغه د بادار انګرېز ځکه وېره کېدله، چې په دغه دار العلوم کې د اسلامي سیاست زده کړه هم ورکولی شوه او په دیوبند دارالعلوم کې د استشراق، استعمار، تبشیر او

ماسونیت په هکله هم معلوماتي درسونه ورکولی شو او د هغو له اسلام دښمنو پلانونو څخه زده کوونکي خبرولی شو، چې بیا به له فراغت څخه وروسته په اګانه توګه د دغو دیوبندي عالمانو د قادیانیت او نورو تبشیري حرکتونو په خلاف مبارزه کوله، همدغه سبب و، چې انګلیسي استعمار د دیوبند د علماوو د بدنامولو لپاره د خپلو ګوډاګیانو په ذریعه هر اړخیزه پروسه پیل کړه.

**۵- د تدریس او رسمي کار لپاره د شهادتنامې لرلو شرط:**

امان الله خان په افغانستان کې د لومړي ځل لپاره د تدریس او رسمي ماموریت لپاره د اهلیت او استعداد پرځای چې د اسلام د مقدس قانون شرعي شرط دی د رسمي شهادتنامې لرلو شرط کېښود او دغه شهادتنامه به د حکومت له پلوه وي.

دغه راز پر علماوو دا بندیز هم ولګولی شو، چې هغوی د حکومت له اجازې پرته امر بالمعروف او نهي عن المنکر، یعنې وعظ او تبلیغ کولی نه شي، د خطیبانو، موذنانو هغه تنخواوې یې هم بندې کړې، چې د امان الله خان پلار او نیکه او د افغانستان نورو پخوانیو پاچاهانو ورته مقرر کړي وي.

د دیني عالمانو او زده کوونکو له عسکرۍ څخه د معاف کولو امتیاز یې هم ختم کړ او علماوو ته یې د تیار خورو خطاب وکړ او هغه یې پر ټولنه اضافي بوج وګانه، څو د هغوی دیني وقار او عزت په ټولنه کې کم کړي او ددې کار لپاره یې په دیني عالمانو پسې ډرامې او مضامین هم خپرول، لکه چې د ظاهر شاه په حکومت کې د راډیو له لارې د «ملاداني» په نوم د علماوو توهین په تکل ډرامې خپرول.

**۶- د جمعیة العلماء جوړول:**

امان الله خان د لومړي ځل لپاره په افغانستان کې د جمعیة العلماء په نوم یو انجمن تاسیس کړ او په دې کې یې هدف دا و، چې خپلې نوې برنامې د دغو علماوو په لاسلیکونو مشروعې اعلان کړي او شرعي صبغه ورته

ورکړي.

په دغه انجمن کې امان الله خان یوازې هغه علماء مقرر کړل، چې د هغه نویو اصلاحاتو ته یې روا وویل او هغه یې له اسلامي شریعت سره منافي نه ګڼل.

**۷- د ږیرې خرئیلو شرط:**

د عسکري او نظامي او نورو ملکي مامورینو او منسوبینو لپاره یې د ږیرې خرېیل شرط او لزمي وګرځول، په داسې حال کې چې په اسلامي شریعت کې د ږیرې پرېښودل واجب دي.

**۸- دریشي کول:**

امان الله خان اعلان وکړ، چې د کابل په ښار کې هیچا ته اجازه نشته، چې له دریشي کولو ځخه پرته وګرځېږي او که هرڅوک بې دریشي وګرځېدل هغه به د حکومت له پلوه جریمه کولی شي، که څه هم پیره داري وي یا بل رسمي ماموریت.

**۹- په شرعي سلام بندیز لګول:**

امان الله خان پر شرعي سلام اچولو او پر ژبه د السلام علیکم پر تلفظ کولو بندیز ولګاوه او هغه یې ارتجاعي عمل وګاڼه او حکم یې وکړ، چې دوه کسان سره مخامخ کېږي، نو د سلام پرځای به خولۍ له سر څخه اوچتوي او سر به ښکته کوي.

**۱۰- د پګړۍ پر تړلو بندیز لګول:**

امان الله خان د نارینه وو لپاره د پګړۍ او دستار پر تړلو بندیز ولګاوه او حکم یې وکړ، چې یا به لوڅ سر ګرځېږي او یا به یوازې انګرېزي خولۍ به پر سر کوي.

**۱۱- د چادرۍ پر اغوستلو بندیز:**

د ښځو لپاره یې د چادري اغوستل غیر قانوني وګرځول او په مطلق ډول یې

بندیز پرې ولګاوه:

**۱۲- د جمعې د ورځې رخصتي پر پنجشنبې بدلول:**

امان الله خان د جمعې د ورځې رخصتي د پنجشنبې په ورځ بدله کړه او جمعه یې د انګرېزانو په شان رسمي ورځ وګرځوله.

**۱۳- پر قرض ورکولو بندیز:**

دغه راز پخپل منځ کې یو بل ته قرض ورکول چې د اسلام د مقدس دین د اجتماعي اخلاقي نظام ممتاز او غوره خوی دی او په قران کریم کې الله تعالی مومنان بیا بیا ورته تشویق کړي دي.

امان الله خان ممنوع وګرځول او دا حکم یې وکړ، چې پور ورکول او اخیستل که خپل منځي وي او که له حکومت څخه وي ممنوع دی او متخلفینو ته به سزا ورکول کېږي.

**۱۴- د شرابو د څښلو د سزا معاف کول:**

امان الله خان فرمان صادر کړ، چې د شرابو هر ډول سزاګانې معاف دي، یعنې څښونکی، شراب پېرودونکی او شراب جوړوونکی هیڅ یو ته هم سزا ورکولی نه شي.

**۱۵- د حنفي مذهب پابندي لغو کول.**

**۱۶- پیري مریدي، په افغانستان کې لغو کول.**

**۱۷- له دېرش کلنۍ څخه په کم عمر کې پر واده کولو بندیز لګول:**

امان الله خان پر هلک او انجلۍ بندیز ولګاوه، چې هیڅ یو هم له دېرش کلنۍ څخه په کم عمر کې واده کولی نه شي، دغه راز په دې هکله یې د مهر ورکولو او د انجلۍ لپاره د مور و پلار او نورو اولیاوو رضامندي ضروري کنل لغو اعلان کړل او دا فرمان یې صادر کړ، چې هلک او انجلۍ پخپله خوښه واده سره کولی شي، اولیا هیڅ حق نه لري، چې د هغوی دواړو مانع واقع شي.

**۱۸- د نفوسو د سر شمېرنې فرمان:**

امان الله خان فرمان صادر کړ، چې په افغانستان کې دې سر شمېرنه وکړای شي او هر چا ته دې پېژند پاڼه ورکړای شي او تر یو حده یې نافذ الاجرا هم وګرځاوه.

**۱۹- جبري عسکري کول:**

د عسکرۍ په باره کې یې په افغانستان کې د لومړي ځل لپاره پر هر افغان د دوه ویشت (۲۲) کلنۍ په عمر کې دوه کاله عسکري خدمت جبري او مجاني وګرځاوه.

**۲۰- د ښځو د ښوونځیو جوړول:**

د لومړي ځل لپاره یې د ښځو ښوونځي جوړ کړل او د لومړي ښوونځي مدیره د محمود طرزي مېرمن اسماء وټاکلی شوه.

**۲۱- د صدر اعظم ټاکل:**

په سیاسي نظام کې د امان الله خان نوی ابتکار دا و، چې په افغانستان کې یې د لومړي ځل لپاره د اسلام د سیاسي نظام پر ځای د غرب سیاسي نظام د ترویج په خاطر د صلاحیتونو د وېش نظام رامنځته کړ او د اتلسمې پېړۍ د فرانسوي فیلسوف منتسکیو د روح القوانین له نظریاتو سره سم یې د صدر اعظم ټاکل اعلان کړل او خپل حکومت یې مشروطه شاهي نظام وګرځاوه.[۱]

امان الله خان خپلو دغو یوویشتو فرمانونو ته د اصلاحاتو د نظامنامې نوم ورکړ، مګر د هغه دغه تبشیري فرمانونه د افغانستان د مومن ملت له پلوه سم لاسي مسترد کړای شول، نه یوازې دا چې د امان الله خان د دغو غیر اسلامي فرمانونو پرخلاف؛ بلکې دده د حکومت په خلاف یې قیام وکړ او هغه یې خپل بادار ته ولېږه.

---

۱- د استقلال ځلورمه جبهه: ۴۶-۷۱مخونه، حبیب الله رفیع.

**خلاصه:**

د پورتنیو شواهدو له ذکر کولو څخه مطلب او مقصد دا دی، چې تبشیر د اسلام په خلاف له خپلې استعماري وسیلې څخه په مستعمره اسلامي هېوادونو کې پر ګټې اخستلو سربېره په ازادو اسلامي هېوادونو کې هم په زړه پورې ګټه ورڅخه اخلي، یوازې د استعماري پلانونو د تطبیق او عملي کولو په اسلوبو کې د تبشیر روزل شویو مسیحي استعمارګرانو اسلام دښمنه فعالیتونه کړي دي.

په داسې حال کې چې په ازادو اسلامي هېوادونو کې د تبشیر د فکري استعمار نقشې او فعالیتونه د خپلو روزل شویو ګوډاګیانو په ذریعه ترسره کوي، چې په ځینې ملتونو کې نه یوازې دا چې پخپلو نقشو او فکري استعماري پلانونو کې ناکام شوي دي؛ بلکې ایجنټان یې هم تور مخ او نامراد د تل لپاره تښتېدلي دي، لکه زمونږ ګران افغانستان چې نه په کې ماسوني ایجنټان «کمونستان» او نه په کې مسیحي تبشیري روزل شوي، لکه امان الله خان په کې تم شوي دي.

## د تبشير او استعمار نور فعاليتونه

په اوسنيو حالاتو کې د يهوديانو هغه پنځه ويشت پروتوکولونه چې وو (۱۸۳۷) مسيحي کال کې يې په روس کې تدوين او تيار کړي و او د مسيحيانو هغه پلانونه چې په (۱۵۱۷) مسيحي کال کې جوړ کړای شوي و، په ټوله اسلامي نړۍ کې په بشپړه توګه پلي کړای شوي دي او مسلمانان په هر ډګر کې له ديني هداياتو، سياسي، جغرافيوي، علمي او اجتماعي، اقتصادي او قانوني، نظامي او کلتوري واکمني، ازادۍ او استقلال څخه بې برخې او محروم دي او پر هر څه يې سيکولرېزم او کمونېزم قبضه کړې ده، چې د بېلګې په توګه په ډېر لنډيز سره يې څو مثالونه وړاندې کوم:

**په تعليمي ډګر کې:**

د ښوونې او روزنې په ډګر کې په بشپړه توګه مسلمانان بېواکه دي، نصاب يې لوېديځ ورته جوړ کړی دی او هماغه نصاب له لومړي ښوونځي څخه تر پوهنځي پورې په کې لوستل کېږي، چې د علمانيت پر اصولو جوړ کړای شوی دی، په داسې ډول چې د اسلامي امت نسل نه يوازې دا چې په زده کړې سره يې نور ناپوهه کېږي؛ بلکې له دين او مذهبي معتقداتو څخه يې لرې کوي؛ ځکه چې په اوسنۍ زده کړه کې په لاندې ډول بدلون راوستل شوی دی:

**الف: د مقصديت فقدان:**

د تعليم او زده کړې مقصديت بدل شوی دی، په اسلام کې زده کړه د بشري نسل د هدايت له مهمو اسبابو څخه دی.

د علم او معرفت په ذريعه انسان د جاهلي خرافاتو له مهلکاتو څخه نجات مومي، له شرک او جاهلي توهماتو څخه د توحيد حقې لارې ته لارښودنه کوي، د حقوق الله او حقوق العباد پېژندګلوي په کې مقصد دی، د اخلاقو

زده کړه، د انسانيت د لوازمو زده کړه او معرفت، د دنيوي ژوند د مقاصدو د معرفت لپاره او د يو الله تعالی د عبادت د لزوم په خاطر، د ځمکې د ودانۍ او عمران په مقصد اسلام زده کړه لازم او فرض ګرځولې ده.
مګر په علماني تعليمي نصاب کې دا هرڅه بدل کړای شوي دي، د علم د زده کړې هدف دولت ګټل، د انسان هوسا او خوشحاله ژوند کول، له دين او مذهب څخه ازادي ميندل، له اخلاقي بنديزونو څخه نجات ورکول دي او ددې لپاره چې مسلمان نسل په علمي ډګر کې يوازې او يوازې مادي زده کړه ترلاسه کړي، له دين او عقيدې څخه لرې پاتې شي او سوچه علماني انسان ورڅخه جوړ شي، نو د لومړي ټولګي له ښوونځي څخه نيولی د پوهنځي تر وروستي ټولګي پورې دينيات يا خو ښېخي نه شته او که وي هم، نو يو خو يې زده کړه د شاګرد لپاره اختياري ګرځولې شوې ده، دوېم د درس پر مهالوېش يې له ټولو مضامينو څخه وروستی ساعت ورکړی دی، چې شاګردان ستړي وي، د درس له اورېدو څخه بېزار وي، هيڅ هم زده کولی نه شي، درېيم نور کوم مضامين لکه فزيولوژي، بيولوژي، امبريالوژي او داسې نور هغه مضامين چې په هغه کې د الله تعالی وحدانيت ثابتېږي، د انسان کرامت په کې انځور کړای شوی دی، د کايناتو د حقيقت راز ورپکې دی، داسې استاذان يې تدريس کوي، چې يا خو پخپله علماني او دهري وي او يا که مسلمان هم وي، دومره علمي او ديني استعدادونه لري، چې شاګردانو ته دغه مضامين او نور سانيسي علوم د دين په رڼا کې تشريح کړي.

**ب: مخلوطه زده کړه:**

په اسلام کې تر لس کلنۍ پورې هلکانو او انجونو ته ګډه زده کړه روا ده، هغه هم په دې شرط چې معلم او زده کوونکي داسې شخص وي، چې دوی ته اسلامي تربيه ورکړي، اسلامي اداب، اخلاق او احکام ور زده کړي، مګر د علمانيت د اوسنۍ زده کړې له اصولو څخه يو دا دی، چې له پيل څخه د

زده کړې تر پایه پورې هلکان او انجونه ګډه زده کړه کوي او په شعوري توګه داسې ښوونځي او معلمان او استاذان هم په کې وګوماري، چې سیکولر، علماني او کمونیست وي.

د مضمون پرځای په صنف کې د شراب، شباب، موسیقۍ، رقص، ګډا او فحشا جنسي بې لارتیا، روماني ترغیب او جنسي هڅوونکې کیسې ورته کوي، نېغ په نېغه بې حیایۍ، فحاشۍ او له اسلام څخه د بې لارتیا بلنه ورکوي او اوس خو په اسلامي هېوادونو کې د موسیقۍ او ګډا د زده کړې لپاره ځانګړې پوهنځي او فاکولتې جوړ کړای شوي دي.

**ج: په اسلامي تعلیمي نصاب کې:**

په اسلامي تعلیمي نصاب کې د تاریخ او رجالو د پېژندنې په مضمون کې په اسلامي رجالو، لکه محمد صلی الله علیه وسلم، صحابه کرام لکه ابوبکر صدیق، عمر فاروق، عثمان غني، علي حیدر کرار، عبدالله بن زبیر، حمزه او عباس، ابوهریره، انس بن مالک، ابو ذر، مقداد او داسې نور رضي الله تعالی عنهم، د هغوی تقوا، مېړانه، اتلولي، زُهد بیانولی شو.

د امهات المؤمنین او صحابیاتو فضیلتونه، فقهاوو لکه امام ابو حنیفه، امام مالک، امام احمد بن احمد بن حنبل، امام شافعي، امام اوزاعي، امام ابن تیمیه، امام طبري، امام غزالي، إمام ابن رشد او امام ابن حزم علمي خدمتونه فقاهت او تقوا او جهادي واقعات بیانول.

په ساینسي ډګر او طب کې به یې د اخوان الصفا، جابر بن حیات، ابن سینا، رازي، کندي، ابن جزار، رهراوي او داسې نورو طبي او ساینسي ایجادات او خدمتونه بیانول، چې په نتیجه کې به له شاګرد څخه پر اسلامي عقیدې سمبال، معلم، طبیب، ساینسدان، فقیه او د دین او ملت خدمت کوونکی عابد او مسلمان ټولنې ته وړاندې کړای شو.

مګر اوس د اسلامي رجالو، د هغوی د سیاسي، علمي، ادبي او ملي کارنامو پرځای د نیوټن، مادام کیوري، ژان ژاک روسو، ګالیله، نیچه،

دورکانم، ډي کارټ، ادم سمیت، تامس ارنلډ، ماکیاولي، داروین، دیوجانس کلبي، هیګل، هربرټ، سپنسر، هیچن، جارج کاونټ، کومي نس او داسې نورو علماني غربي ملحدو، صفتونه ورته کوي او دا اوس چې هرڅه دي د هغوی د تحقیقاتو او هاندونو نتیجه یې ګڼي.

**نتیجه:**

د اوسنۍ زده کړې په نتیجه کې شاګرد، چې له هر مسلک او علمي فن څخه فارغېږي، نو په مطلق ډول د ادم سمیټ له نظر سره سم د دولت ګټلو بېرحمه سخت زړی د مادیاتو ماشین ورڅخه جوړ شوی وي؛ ځکه چې د تعلیم مقصد دولت ګټل، هوسا، سوکاله او ارام ژوند تېرول ګڼي، په زیاترو کې، حیا، دیني حمیت، ملي غیرت، شرعی احکامو ته درناوی کول، معنوي روحیه ختمه شوې وي؛ ځکه چې د علماني تعلیمي نصاب په سبب یا خو کمونست او د هري شوی وي او یا سیکولر وي.

په کوڅو او بازارونو کې رقص کوي، چکې وهي، له مشرانو څخه حیا د هغوی احترام، لمونځ کول او روژه نیول د خپل ستیټس خلاف ګڼي، د جومات پر ځای هوټلونو، رقاص خانو او د فحاشۍ ځایونو ته ځي، د ملي لباس پر ځای غیر اسلامي لباس یونیفورم، کوټ او پتلون ته ترجیح ورکوي او دوی ته د داسې کولو لپاره اسلام دښمنه منابع د جېب خرڅ په نوم هره میاشت پونډونه او ډالر ورکوي او په دې کې نر او ښځې دواړه وي او کوم څوک چې داسې نه وي، نو چې فارغ شي، په دیني چارو او عبادات کې سست وي، له دین اوعقیدې څخه دفاع نه شي کولی؛ ځکه چې څه یې لوستي نه وي، علم یې یوازې د دولت ګټلو په خاطر کړی وي، هرڅه ورته بې توپیره وي.

**په قانوني او سیاسي ډګر کې:**

یهودیانو، مسیحانو په منافقانه ډول په اسلامي نړۍ کې د استعمار په ملکرتیا وکولې شول، چې مسلمانان د الله تعالی له شریعت او احکامو

ځنې محروم کړي او په اوسني عصر کې د اسلامي امت دوه پنځوس هېوادونه له خپل قانون ځنې په تېرو دوه سوه کلونو یا سلو کلونو کې په بشپړه توګه محروم کړای شوي دي او په حکومتونو کې یې سیکولر قانون نافذ کړای شوی دی، چې د بېلګې په توګه یې څو نمونې په لاندې ډول دي، چې په اسلامي هېوادونو کې یې یو پر بل پسې شرعي قوانین د خپلو روزل شویو سیاسي عناصرو په ذریعه ملغی کړي دي.

**په هند کې:**

په هندوستان کې تر (۱۷۹۱) مسیحي کال پورې د مغلو د وروستي پاچا شاه ظفر پورې شرعي قانون نافذ وو، کله چې انګرېزان په هندوستان کې پر سیاسي اوضاع مسلط شول، نو په هند کې یې اسلامي قانون ملغی اعلان کړ او مسلمانانو ته یې یوازې د نکاح او طلاق په مسایلو کې د شرعی قانون د عملي کولو اجازه ورکړه او په (۱۸۶۰هـ ش) کال کې انګرېزانو د جزا قانون، د اقتصاد قانون، د تعلیمي نصاب او نظامي او سیاسي قوانین جوړ او پلي کړل، چې تر اوسه پورې په هند، بنګال او پاکستان او کشمیر کې مرعي الاجراء دي.

**په الجزایر کې:**

په (۱۸۳۰) میلادي کال کې د فرانسې له پلوه له مستعمره کولو سره سم شرعي قانون لغوه کړای شو.

**په سوډان کې:**

په سوډان کې د نولسمې مسیحي پېړۍ تر نیمایي پورې په بشپړه توګه شرعي قانون نافذ و، مګر کله چې په دغه هېواد کې د دار الفور اسلامي حکومت د انګرېزي استعمار له پلوه پای ته ورسولی شو، اسلامي قانون یې هم له منځه یوور او په (۱۸۹۹) میلادي کې یې سیکولر انګرېزي هماغه قانون د سوډان پر مسلمان ملت نافذ کړ، چې په هندوستان کې یې نافذ کړی و.

**په عراق کې:**

په عراق کې انګرېزي استعمار په (۱۹۱۸) میلادي کال کې د عراق له ښکېلولو څخه وروسته شرعي قانون لغو کړ او پرځای یې انګرېزي قانون وضع کړ، چې تر اوسه پورې کفري قانون په کې نافذ دی.

**په تونس کې:**

په تونس کې په (۱۹۰۶) میلادي کې شرعي قانون معطل کړای شو او د هغه پرځای د تونس د مسلمانانو لپاره په (۱۹۱۴) میلادي کې د فرانسې، مصر، ایتالیا او ترکیې له قوانینو څخه مقتبس قانون جوړ او نافذ کړای شو، چې تر اوسه پورې هماغه سیکولر قانون په کې چلېږي.

**په مصر کې:**

په مصر کې تر (۱۹۸۲) میلادي پورې شرعي قانون نافذ و، مګر په (۱۸۸۳) میلادي کار کې د انګرېزي استعمار له پلوه د مصر په لرغوني اسلامي هېواد کې سیکولر انګرېزي قانون نافذ کړی شو.

**په عراق کې:**

په (۱۹۱۸) میلادي کال کې د عثماني خلافت له انحلال سره سم اسلامي شرعي قانون ختم کړای شو.

**په افغانستان کې:**

په افغانستان کې له دې امله چې انګرېزي استعمار یا کوم کفري ښکېلاک پښه ټینګه نه شوه، د خپلو سیکولر حاکمانو په وسیله یې په (۱۳۲۸) هجري شمسي کال کې اسلامي شریعت معطل کړ او غیر اسلامي قانون نافذ کړای شو او دا کار د افغانستان د هغه وخت واکمنانو د ترکیې په مرسته جوړ او نافذ کړ.[1]

---

۱- د استقلال څلورمه جبهه.

**په لبنان، سوریه او اردن کې:**

په دغو هېوادونو کې د ایټالیه او فرانسې له قوانینو څخه لومړی لبنان سیکولر حکومت د خپل ملت لپاره قانون ترتیب کړ او بیا له هغه څخه سوریې او اردن یو یو نقل واخیسته او پخپلو هېوادونو کې یې نافذ او پلي کړ، د مرکزي اسیا، الجزایر او د چین په اسلامي هېوادونو کې کمونېزم قانون نافذ کړای شو، چې تر اوسه پکې دی.[۱]

**په اجتماعي ډګر کې:**

تبشیر، استشراق، علمانیت او ماسونیت په ګډ جوړ کړي پلان د اسلامي امت او اسلامي نظام اجتماعي اړخ هم د خپل فساد لپاره نقشه وکړځاوه؛ ځکه چې اجتماعي سکتور په هره بشري ټولنه کې بنسټیز حیثیت لري، نو ځکه فکري یرغلګرو د دغه اړخ یا بنسټ د فاسدولو لپاره منصوبه تیاره کړه او د ملګرو ملتونو د سازمان له لارې او هم د خپلو وسایلو له لارې یې په اسلامي هېوادونو کې د پلي کولو هاند پیل کړ، چې د دغه پلان دوه اساسي مقاصد په لاندې ډول ذکر کوم.

**الف: د نسل تحدید:**

په اسلامي هېوادونو کې اسلام دښمنو ځواکونو چې په سر کې یې غربي علمانیت دی، کابو له پنځوسو کلونو را په دېخوا د اسلامي اجتماعي نظام د تباهۍ په تکل د نسل د تحدید «Birth Control» پروسه پیل کړې ده او د خپل دغه شوم پلان د عملي کولو لپاره د اسلامي امت د وروسته پاتې هېوادونو خپل سیکولرو لاسپوڅو حاکمانو ته په ملیونونو ډالر او پونډونه ورکوي او خپل ټول اقتصادي کومکونه یې د نسل د تحدید د پلان پخپلو خپلو هېوادونو کې په تطبیق او پلي کولو پورې اړوند کړي او تړلي دي، لکه چې په (۱۹۵۹) میلادي کال کې امریکایي استعمار اسلام دښمنه

---

۱ - الغزو الفکري: ۱۱۱۵مخ، دوکتور عبدالستار.

حکومت یو کمیسیون جوړ کړی و، چې مشرتابه یې د هغه وخت جمهور رئیس کاوه او په هغه کې یې دا پرېکړه وکړه، چې د دغه هېواد مالي مرستې باید یوازې هغو هېوادونو ته ورکړای شي، چې د برتې کنټرول یعنې د نسل د تحدید په منصوبه عمل وکړي او پخپل ملت کې یې ترویج کړي.

د اسلامي هېوادونو حاکمانو هم په ډېر اخلاص د خپل بادار دغه حکم ته لبیک ووایه او خپل ټول تبلیغاتي وسایل یې د نسل د تحدید پروسې ته وقف کړل، څو نا خبره مسلمانان په غیر شعوري توګه د طاغوتي حرکتونو په لمسه د اسلامي نسل د تباهی لپاره د انګلستان د اقتصادیاتو د ماهر «Malthus» مالتوس متوفی (۱۸۳۴) میلادي علماني دغه نظریه قبلولو او عملي کولو ته وهڅوي او له غرب څخه د نسل بندۍ ټول وسایل او درمل په ټنونو ټنونو اسلامي هېوادونو ته ورکړی شوي او د نسل بندۍ شایقینو ته نارینه وي او که ښځې وړیا ورکولی شي.

استعمار او تبشیر د اسلامي امت د نسل په تحدید کې دغه لاندې اهداف لري:

**له دین څخه لرېوالی:**

لومړی هدف یې دا دی، چې د دغه عمل په ارتکاب سره مسلمانان د الله تعالی او د الله تعالی د رسول محمد صلی الله علیه وسلم احکامو څخه نافرمانه او بې دینه شي؛ ځکه چې الله تعالی د نسل له تحدید څخه ممانعت کړی دی او زیانمن یې ګڼلي دي، لکه چې فرمایلي یې دي:

﴿قَدْ خَسِرَ الَّذِيْنَ قَتَلُوْٓا اَوْلَادَهُمْ سَفَهًۢا بِغَيْرِ عِلْمٍ وَّ حَرَّمُوْا مَا رَزَقَهُمُ اللّٰهُ افْتِرَآءً عَلَى اللّٰهِ ۭ قَدْ ضَلُّوْا وَ مَا كَانُوْا مُهْتَدِيْنَ ۝۱۴۰﴾. (الانعام/۱۴۰)

ژباړه: په باوري توګه هغه خلک زیانمن شول چې خپل اولادونه یې د جهالت او ناپوهۍ په اساس ووژل او د الله ورکړې روزي یې پر الله تعالی په دروغ تړلو سره حرامه وګڼله په یقیني ډول هغوی ګمراه شول او هېڅکله هغوی له

سمې لارې میندونکېو څخه نه وو

په دغه مبارک ایت کې د اولاد له وژلو سره سره د تناسل د نعمت پرځان باندې د حرام ګرځولو په نتیجه کې هم الله تعالی انسان ته د تاوان او زیان کولو خبر ورکړی دی او دغه زیانونه اسلامي محققینو او پوهانو په لاندې ډول بیان کړي دي:

۱ - جسماني نقصان:

د نسل د تحدید لومړی زیان د زوجینو، یعنې مېړه او ښځې بدني زیان دی او دا خبره پخپله غربي طبي څېړونکو منلې ده، لکه چې په (۱۹۲۷) میلادي کال کې د برېتانیه «National Birthrate Commission» نیشنل برت ریټ کمیسیون د خپل ریسرچ او څېړنې نتیجه داسې اعلان کړې وه.

د نسل منع کوونکو د وسایلو استعمال مېړه او مېرمن دواړو ته جسمي امراض پیدا کوي، مېړه ته لنډ مهاله کمزوري، دویم نامردي او کورنی خپګان او ذهني پرېشاني پیدا کوي او ښځې ته د مېړه په پرتله زیات نقصان پیدا کوي، لکه چې د هغوی دغه څېړنه ډاکترې (Dr. Marji Scharlieb) میریشار لیب پخپلو څلوېښتو کلونو طبي ازموینو کې هم ثابته او تائید کړې ده او ویلي یې دي:

د حمل مانع وسایل برابره خبره ده، که «Pessaries» فرزجه وي او که تخم وژونکي درمل وي، که ربړین پوکنۍ وي او که لفافې یا نور وسایل وي، له زیاتو استعمالولو څخه ښځې ته دغه لاندې ناروغتیاوې پیدا کوي، کله چې ښځه د پوخ عمر شي:

۱ - «NervousInstability» اعصابو ګډوډي.

۲- د جسمي تازه ګۍ فقدان.

۳- ژر غوسه کېدل.

۴- نانډرۍ وهل.

۵- د خواشینوونکو خیالاتو هجوم.

۶- بې خوبي.
۷- د زړه او دماغ کمزوري.
۸- د وینې د دوران کموالی.
۹- د لاسونو او خپو زیات ویده کېدل.
۱۰- د جسم په مختلفو ځایونو کې متاکې پیدا کېدل.
۱۱- د حیض بې قاعده ګي.
۱۲- «Falling of The Womb» یعنې اعوجاج رحم د زیلانځ کوږوالی.
۱۳- د حافظې خرابتیا.
۱۴- خپګان، زړه تنګي.
۱۵- لېونتوب.
۱۶- مراق او داسې نور...

۲- اجتماعي نقصان:

په ښځه کې د پورتنیو ناروغیو له کبله د مېړه او مېرمن ترمنځ اړیکې خرابېږي، په کهول خوشحالي، محبت، متقابل احترام، خلوص او همدردي په خپګان، خپلمنځي کرکې او نفرت، شخړې او جګړې بدلېږي، چې په نتیجه کې په قتل او یا طلاق پای ته رسېږي، چې په دې توګه جوړ کړای شوی کهول ویجاړ شي.

۳- اخلاقي زیان:

د نسل په تحدید سره زوجینو ته د زنا کارۍ لېسنس ترلاسه کېږي او له دې ښځه دمخه یې چې د ولد زنا پیدایښت له بدنامۍ ښځه وېرېدل د حمل اسقاط په لاس ته ورتلو سره دغه بدنامي له منځه ځي، چې په دې توګه په اسلامي ټولنې کې زنا، فحاشۍ او بې حیايۍ عمومیت پیدا کوي، چې د اسلام دښمنو طاغوتي پرګنو او توکونو اساسي مقصد دی.

۴- قحط الرجال:

د نسل د تحدید له امله په اسلامي امت کې د نامتو او عظیمو رجالو

قحطي منځته راځي، دا ځکه هرځل چې مېړه له مېرمن سره کورواله کوي، نو له دېرش کروړه څخه تر څلوېښتو کروړه پورې د نارینه تخم «Sperm» د مېرمن جسم ته سپاري، چې د ښځې له بیضې «Egg Cell» هګۍ سره هر یو د یو ځای کېدو هڅه کوي، چې دغه تخمونه هر یو موروثي او ځانګړي خصوصيات لري، په هغوی کې احمق او غبي هم وي او عقلمند او پوهان هم وي.
په هغوی کې ابن سينا، احمد شاه ابدالي، جابر بن حيان کيميادان او کندي رياضي دان، ابن خلدون او ابن قتيبه دينوري هم وي او په هغوی کې مفسدين او بشر دښمنه هم وي، اوس دغه تخم چې د مانع حمل په وسيلو هلاک کولی شي، کېدلی شي د عظيم شخصيت تخم وي، چې په دې توګه امت د رجالو کمبوت سره مخامخ کېږي او استعمار همدغه غواړي.

۵- اقتصادي زيان:
د نسل د کمښت پنځم زيان اقتصادي دی؛ ځکه چې په کوم ملت کې ځوانان ډېر وي، د هغه ملت اقتصادي توليدات هم ډېرېږي او که ځوانه طبقه کمه وي، اقتصاد يې هم کمېږي او ددې سبب هغه جسمي قوت او ځواک دی، چې د هغه په ذريعه شاقه کارونه سرته رسولی شي، همدا د ځوانانو پیاوړې متې وي، چې د يو هېواد اعمار او سمسورتيا متحققه کوي، اقتصادي توليدات يې کروړلي کوي او وده ورکوي او کله چې په کوم ملت او هېواد کې ځوانه طبقه محدوده وي، هغه هېواد خپلې اقتصادي اړتياوې پخپل کور دننه پوره کولی نه شي، نورو ته لاس کتونکی او محتاج وي او کفري ملتونه همدغه هدف لري، چې د نسل په کمښت سره اسلامي امت هغوی ته اړ شي او د اقتصادي مرستو په واسطه خپل کفري، استثماري او علماني، تبشير او له اسلام څخه د بېزارولو اهداف پرې قبول کړي.

**۶- نظامي نقصان:**

دا خو بدیهي او ډاګیزه خبره ده، چې که یو ملت ډېر ځوانان ولري، نو هغه ملت او هېواد ته دښمن هیڅکله هم په برندو سترګو کتلی نه شي؛ ځکه چې دفاعي ځواک یې پیاوړی وي او په ډاډه زړه د خپل هېواد اعمار او ابادۍ ته متوجه وي، مګر که ځوان نسل یې لږ او محدود وي، همېشه د یرغلګرو له یرغل څخه په ترهه کې وي.

د هېواد پولې یې تهدید سره مخ وي او په دفاعي ډګر کې د نورو مرستې ته محتاج وي او اسلام دښمنه ښکېلاکي ځواکونه د اسلامي امت د نسل په تهدید کې همدغه موخه لري، چې د ژوند په هر ډګر کې مسلمانان دوی ته محتاج وي، پر دوی یرغل کول او هېوادونه یې مستعمره ګرځول اوپر هر څه قبضه کول ورته اسانه وي؛ ځکه چې ښځې، زاړه او د پوخ عمر سړي له خپل هېواد څخه په لازمه توګه دفاع کولی نه شي.

**۷- له الله تعالی څخه نافرماني:**

له ټولو څخه غټ نقصان یې پر الله تعالی د توکل نه کولو دی؛ ځکه چې دوی په دې خاطر د نسل د کمښت پروسه پلي کړې ده او عملي کوي یې، چې که نسل ډېر شي او په یو کهول کې د دوه زامنو پرځای لس وي او پلار یې روزي د ځلورو ګټي، نو دا نور شپږ خو پرې پیټی وي.

لباس، تعلیم او روزي به څرنګه ورکوي، لوېدیز سیکولرېزم د اسلامي امت عوامو او نالوستو ته همدغه دلیلونه وړاندې کوي، چې که یو یا دوه اولاده مېره او ښځه ولري، نو په ښه توګه یې روزنه کولی شي، که ناروغه شي، علاج یې کولی شي، لباس یې په اسانتیا سره تهیه کولی شي، خوراک یې ورته رسولی شي او د زده کړې لګښت یې ښه کولی شي، خو که چېرې ډېر وي دا یو هم نه شي کولای، په داسې حال کې چې داسې عقیده لرل د اسلام منافي او جاهلي عقیده ده او الله تعالی د نسل هلاکت حرام کړی دی او د الله تعالی له حکم څخه سرغړونه ده؛ ځکه چې الله تعالی فرمایلي دي:

﴿ وَإِذَا تَوَلَّىٰ سَعَىٰ فِي الْأَرْضِ لِيُفْسِدَ فِيهَا وَيُهْلِكَ الْحَرْثَ وَالنَّسْلَ ۗ وَاللَّهُ لَا يُحِبُّ الْفَسَادَ ﴾. (البقره/۲۰۵)

ژباړه: او کله چې دی په ځمکه کې واکمن شو، نو دی په ځمکه کې د فساد خپرولو، د کښت او د نسل د هلاکت پلانونه جوړوي، الله تعالی فساد نه خوښوي.

او فرمایلي یې دي:

﴿ وَلَا تَقْتُلُوا أَوْلَادَكُمْ خَشْيَةَ إِمْلَاقٍ ۖ نَّحْنُ نَرْزُقُهُمْ وَإِيَّاكُمْ ۚ إِنَّ قَتْلَهُمْ كَانَ خِطْئًا كَبِيرًا ﴾. (اسراء/۳۱)

ژباړه: او تاسې مه وژنئ اولادونه خپل د وېرې د فقره او فاقه خپله چې که دېر شي، نو روزي به راباندې تنګه کړي؛ ځکه چې همدا موږ (الله تعالی) روزي ورکوو، دوی ته او تاسې ته هم، بېشکه چې قتل د دوی لويه ګناه ده «چې د نسل او نوعې قطع ده».

نو له دغه مبارک ایت څخه په ډاګه دا خبره څرګندېږي، چې د اقتصادي مشکلاتو او ستونزو له وېرې د اولاد او نسل کمښت حماقت او ناپوهي او د توکل خلاف عمل دی.

**۸ - د الله تعالی له رسول څخه نافرماني:**

د نسل د کمولو اتم نقصان دا دی، چې خاتم النبیین محمد صلی الله علیه وسلم د واده کولو بنسټيز مقصدیت په ګوته کړی دی او هغه د اسلامي امت د نسل ډېرښت دی، لکه چې په صحیح حدیث کې یې فرمایلي دي:

عَنْ مَعْقِلِ بْنِ يَسَارٍ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلم فَقَالَ إِنِّي أَصَبْتُ امْرَأَةً ذَاتَ جَمَالٍ وَ حَسَبٍ وَإِنَّهَا لاَ تَلِدُ أَفَأَتَزَوَّجُهَا قَالَ « لاَ ». ثُمَّ أَتَاهُ الثَّانِيَةَ فَنَهَاهُ ثُمَّ أَتَاهُ الثَّالِثَةَ فَقَالَ «تَزَوَّجُوا الْوَدُودَ الْوَلُودَ فَإِنِّي

مُکَاثِرٌ بِکُمْ».

(ابو داود: ۱۲۵/۲)

ژباړه: له معقل بن یسار رضي الله عنه څخه روایت دی، چې ویلي یې دي، یو سړی نبي کریم صلی الله علیه وسلم ته راغی او ورته وېې ویل: ما یوه ښځه میندلې ده، چې ډېره ښایسته هم ده او د عزتمنې کورنۍ هم ده، مګر هغه شنډه ده اولاد یې نه کېږي، ایا زه له هغې سره واده وکړم؟ نبي صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل، نه، دوېم ځل بیا ورته راغی، بیا یې له هغې سره له واده کولو څخه منع کړ، درېیم ځل بیا ورته راغی، نو ورته وېې فرمایل: تاسې ودونه وکړئ له داسې ښځو سره چې له خپلو مېړونو سره محبت کوونکي وي او زیات اولاد زېږوونکي وي؛ ځکه چې زه د تاسې په وسیله د خپل امت ډېروونکی یم.

او په یو بل حدیث کې یې فرمایلي دي:

اِمْرَأَة وَلُوْد اَحَبُّ اِلَی اللهِ مِنْ اِمْرَأَةٍ حَسْناء لَا تَلِدُ. (نیل الاوطار: ۱۱۴/۶)

ژباړه: هغه بد موره ښځه الله تعالی ته ډېره غوره ده، چې ډېر اولاد زېږوي، له هغې ښایسته ښځې څخه چې اولاد نه زېږوي.

**د اسلام فتوی:**

د نسل د کمښت په باره کې د اسلام فتوی دا ده، چې مسلمان ته داسې کول حرام دي؛ ځکه چې د اسلام په مقدس دین کې له واده کولو څخه مقصد یوازې د زوجینو د شهوت سړول نه دي؛ بلکې له واده څخه اساسي او بنسټیز هدف په ځمکه کې د انساني توکم ډېرښت دی، نو که چېرې پر نسل بندیز ولګولی شي، د نکاح مقصدیت ختمېږي، نو د هیڅ مسلمان لپاره روا نه ده، چې داسې وکړي؛ ځکه چې په دغه مشرکانه فعل سره مسلمان د درې جنایتونو ارتکاب کوي، یو دا چې د نسل په بندولو سره د خلق الله تغیر دی، چې الله تعالی شیطاني فعل ګڼلی دی او هغه داسې، چې الله

تعالی په انسان کې نر وي او که ښځه، ژوندی تخم پیدا کوي ددې لپاره چې هغه دنیا ته راشي ژوند وکړي، د الله تعالی عبادت وکړي، مګر د هغه په وژلو او ضایع کولو سره په خلق الله کې تغیر راولي، دویم دا چې که د روزۍ په خاطر وي، د الله تعالی په ربوبیت کې تصرف دی او دغه تصرف شرک دی، چې الله تعالی یې هیڅکله نه معاف کوي او درېیم دا چې په دې اړوند ځومره د ممانعت ایتونه او احادیث راغلي دي، له هغو ټولو څخه سرغړونه او بغاوت دی، چې د مخه بیان کړای شو.
اسلام په لنډ مهاله توګه مېړه او مېرمن ته په هغه صورت کې د عزل اجازه ورکړې ده، چې شرعي عذر ولري، په افغانستان کې په ځینې کلیوالو خلکو کې دا دود دی، چې د مېړه او مېرمن اولاد په ښځو شي او لمسیان یې پیدا شي، نو بیا نیا او نیکه شرمېږي، چې اولاد وزېږوي، نو قصداً یې بندوي، دا هم ګناه او ناروا عمل دی.

**ب: د ښځو حقوق:**

لوېدیز سیکولرېزم، چې په سر کې یې امریکایي ملحد یهودیان مسیحیان دي او په اوسنیو حالاتو کې په اسلامي هېوادونو کې دا تبلیغات په کار اچولي دي او غوغا یې ګډه کړې ده، چې په اسلامي امت کې او بیا په خاصه توګه په افغانستان کې د ښځو بشري حقوق تلف شوي دي او ښځه له خپلو حقوقو څخه محرومه ده، کوم حقوق؟ هغه چې غربیان یې حقوق ګڼي او مسلمانو ښځو ته د هغوی د ورکولو هاند کوي او هغه دا دی، چې:

**۱- د ګډ او مخلوط تعلیم حق:**

پېغلې او ځوانان باید ګډ او مخلوطه زده کړه وکړي او هغه فنون چې نارینه یې زده کوي، ښځو ته هم د هغو ټولو د زده کړې حق باید ورکړای شي.

**۲- د مساوات حق:**

ښځو ته له نارینه وو سره باید د برابر حق ورکړای شي، برابره خبره ده، که

په میراث کې وي، که په شاهدۍ کې وي او که په حدودو او قصاص کې وي، که له کهول څخه بهر په کار کولو کې وي او که په نورو ډګرونو کې وي او ښځو ته ناقص العقل ویل د ښځې سپکاوی او توهین دی.

**۳- د ازادۍ حق:**

ښځو ته د ازادۍ ورکولو حق: له شرعي حجاب، پردې او ستر څخه ازادي له نامحرمو سره دوه په دوه ناستې ولاړې، خبرو اترو، ټوکو ټکالو او د خلوت له شرعي پابندۍ څخه ازادي، د مور پلار، مېړه اولاد او د الله تعالی له حقوقو څخه ازادي، په کلبونو، هوټلونو کې لوڅ سر، بربنډې متې د غربي لباس نیمه عریاني ازادي، په دفترونو، کارخانو او تعلیمي مراکزو کې د کار کولو ازادي هغه هم له نامحرمو اجنبي سړي سره، د ګډا نڅا سندرو، ویلو او موسیقۍ زده کولو ازادي، په کور کې د کار کولو څخه ازادي، د اولاد له زېږولو څخه ازادي، له پخلنځي څخه ازادي له اسلامي معتقداتو څخه ازادي، له ملي کلتور څخه ازادي، د اسلام له دین څخه ازادي، د ښځې خوښه چې هر دین او مسلک ځان ته انتخابوي دا د ښځې خپل حق دی، له شرم او حیا څخه ازادي، له اخلاقو څخه او د تنها سفر کولو ازادي، د یارانې کولو ازادي.

**۴- د کور د مشرتابه حق:**

ښځه حق لري، چې د کهول مشرتابه په غاړه ولري، دا ظلم دی چې د ښځو دغه حق نارینه وو ته ورکړای شوی دی، یا یې ورڅخه تروړلی دی، ښځه باید مخ ته روانه وي او سړی ورپسې وي، نه دا چې سړی د مخه وي او ښځه ورپسې وي.

د کهول ټولې چارې باید د ښځې په امر وکړای شي، ان تر دې چې مېړه د خپلو جامو او درېشي د خوښولو حق نه لري؛ بلکې ښځه به یې انتخاب ورته کوي، د کتغ پخول د مېړه دنده ده، باید مېړه د پخلنځي کاروبار وکړي، د اولاد او هم خپل کالي ومینځي، اولاد ولمبوي.

۵- ازدواجي حق:

ښځې ته باید د مېړه په انتخاب کې حق ورکړای شي؛ ځکه چې دا ددې د ژوند مسئله ده، مور، پلار یا بل سرپرست حق نه لري، چې د ښځې په دې حق کې مداخله وکړي.

ښځه واده کوي او که نه، کافر کوي که مسلمان، خارجي کوي، که داخلي، مسیحي کوي، که یهودي، هندو کوي او که سیک، دا ددې ښځې حق دی، طلاق د ښځې او مېړه مشترک حق دی، لکه څرنګه چې مېړه ښځې ته طلاق ورکوي، ښځه هم حق لري، چې کله وغواړي مېړه ته طلاق ورکولی شي، لکه څرنګه چې سړی حق لري، چې تر څلورو پورې ښځې وکړي، ښځې هم حق لري، چې څلور مېړونه وکړي، لکه چې د پاکستان نامتو فلمي کار کوونکې ښځې زیبا بختیار د اخبارونو په سطحه څو ځلې د څلورو مېړونو په ایکي یو وخت کې د ښځو لپاره د کولو د حق دعوی کړې ده، مګر په افغانستان کې که څه هم کمونستي او سیکولرې ښځې ډېرې دي، خو تر اوسه پورې یې د خپل دغه غیر فطري حق مطالبه نه ده کړې.

Love Marriage:

لف میریج کول د هرې ښځې حق دی او هغه داسې چې له چا سره واده کول غواړي، کال دوه کاله یا له دې څخه هم زیات له هغه سره یارانه کول، د هغه هرڅه لیدل او هغه د دې هرڅه لیدل، په شپو شپو دوه په دوه سفر کول او د هوټل په یوه خونه کې دوه په دوه شپې تېرول، له دوه کاله وروسته د ښځې خوښه ده، که واده ورسره کوي او که نه؟ او که واده ورسره نه کوي، نو بیا نوې یارانه کول او له بل سړي سره عشق کول او رمانتیک دور پیل کول د ښځې حق دی، که د اړتیا په صورت کې مېړه ښځه کوي، نو له لومړۍ ښځې څخه به اجازه اخلي، که اجازه ورته وکړي، ښه و تر ښه او که نه مېړه حق نه لري، چې د لومړۍ ښځې په موجودیت کې دویم واده وکړي.

**۶- سیاسي حق:**

ښځه حق لري، چې په سیاسي نظام کې ګډون وکړي،له کتابت یعنې له کاتبې ښځه نیولي، سفارت، قاضي توب، وزارت، صدارت او ریاست پورې پر ټولو پوستونو د کار کولو حق لري.

په انتخاباتو کې د برخې اخیستلو او په پارلمان کې، په مشرانو جرګه یا په بله اصطلاح په سنا کې د کېناستلو حق لري، مطلب دا چې ښځه د دولت په درې واړو قواوو، اجرائیه، مقننه او قضائیه کې ان تر دې چې په پوځي نظام کې هم د کار کولو حق لري او لوېدیز الله تعالی منکره سیکولر نظام په تېرو پنځوسو کلونو کې په اسلامي امت کې د «کبری نورزی» «افغانستان» «بینظیر بوټو» پاکستان «حسینه واجد» بنګله دیش لیلی خالد او عشراوي «فلسطین» او داسې نورو کې دغه مقام ته ورسولې او په دغو ټولو حقوقو ترلاسه کولو کې چې په وومین رایټس سره شهرت لري، اوس هم په اسلامي هېوادونو کې کوښښ کولی شي.

**په پوځي- نظامي ډګر کې:**

په پوځي ډګر کې هم غربي سیکولر طاغوت په اسلامي امت کې له یوې پېړۍ را په دې خوا خپلې ناولې ښځې کړې دي او خپل طاغوتي کفري، عسکري اصول یې په اسلامي پوځونو کې پلي کړي دي، چې تر اوسه پورې دوام لري.

په افغانستان کې عسکري منصبداران په ترکیه، روس او امریکا کې تربیه کولی شو او کله به چې هېواد ته راستانه شول، نو په حربي پوهنځیو او حربي پوهنتون او عسکري مراکزو کې به یې د هماغو اصولو ښودنه کوله، چې دوی به هلته زده کړي وو او قسم به ورځخه اخیستل شوی و، چې پخپل هېواد کې به په عسکري او پوځي نظام کې همدغه اصول پلي کوي او هغه اصول په لاندې ډول دي:

۱- په سر ټیټولو او یا لاس په تنده نیولو سره سلام کول: په داسې حال کې

چې دغه دواړه ډوله سلام کول په اسلام کې حرام دي؛ ځکه چې دغه ډول سلام کول یو د یهودیانو دی او بل د مسیحیانو سلام دی او رسول الله صلی الله علیه وسلم ممانعت ورڅخه کړی دی او فرمایلي یې دي:

عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَيْسَ مِنَّا مَنْ تَشَبَّهَ بِغَيْرِنَا لَا تَشَبَّهُوا بِالْيَهُودِ وَلَا بِالنَّصَارَى فَإِنَّ تَسْلِيمَ الْيَهُودِ الْإِشَارَةُ بِالْأَصَابِعِ وَتَسْلِيمَ النَّصَارَى الْإِشَارَةُ بِالْأَكُفِّ.

ژباړه: له عمرو بن شعیب هغه له خپل پلار او هغه د عمرو له نیکه څخه او هغه له نبي کریم صلی الله علیه وسلم څخه روایت کړی دی، چې فرمایلي یې دي: هغه څوک له موږ څخه نه دی، چې له موږ څخه پرته له نورو سره ورته والی کوي.

تاسې «په سلام کولو کې» له یهودیانو او نصرانیانو سره مشابهت مه کوئ؛ ځکه چې د یهودیانو سلام د لاس د ګوتو په خوځولو سره دی او د نصرانیانو سلام د لاس په ورغیو سره دی.

د مسلمان سلام په ژبه سره د السلام علیکم په الفاظو سره دی، چې د اسلامي امت پوځیان او عسکري منصبداران ورڅخه منحرف شوي دي، د سر په ښکته کولو او د لاس په اوچتولو سره سلام کوي، چې په اسلام کې ممنوع او شرک دی.

۲- ږیره خرئیل د عسکري نظام لازمي اصل دی، په داسې حال کې چې په اسلام کې ږیره پرېښودل واجب دي، یو پیغمبر هم خرئیلی نه ده؛ بلکې په بشریت کې د لومړي ځل لپاره د لوط علیه السلام امت دغه ناوړه عمل منځته راوړی دی او رسول الله صلی الله علیه وسلم امر کړی دی، چې:

اقصوا الشوارب واعفوا الحی. برېتونه لنډ کړي او ږیره پرېږدئ.

۳- دریشي کول، چې دا هم د سیکولر سوغات دی او منصبدار ته د

نیکټایي ځوړندول هم لازمي دي، په داسې حال کې چې دا د مسیحیت د صلیب یو شکل دی او څوک چې دغه درې واړه اصول پرځای نه کړي او تخلف ورڅخه وکړي، د غربي عسکري ضوابطو سره سم د سزا مستحق ګڼل کیږي.

۴- چې عسکري منصبدار مړ شي، نو میوزیک یعنې هغه مخصوص ډول ساز پرې غږولی شي، چې انګرېزانو ترویج کړی او کله یې چې دفن کړي، نو بیا هم وروستی الوداعي میوزیک پرې غږوي، په داسې حال کې چې په اسلام کې کله چې مسلمان وفات شي، برابره خبره ده، عسکر وي که منصبدار، ملکي وي که عسکري او که عام مسلمان وي، د مغفرت دعا ورته کوي، د جنازې د وړلو پر مهال جنازه وړونکي تکبیرونه وایي او کله چې دفن کړای شي، نو د بقرې د سورة لومړی پنځه ایتونه د قبر د سر پلو ته او د اخر درې ایتونه یې د پښو پلو ته تلاوت کول سنت دي، مګر دوی ساز پرې کوي او دا د هغه اعزاز او درناوی ګڼي.

۵- او بیا د کاغذي ګلانو ګېډۍ د هغه پر قبر ږدي، په داسې حال کې چې په اسلام کې کله چې مړی دفن کړای شي، نو نبي کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي، چې د مدفون پر قبر تازه لښته او یا شین بوټی پرې کېږدئ؛ ځکه چې ترڅو پورې دغه لښته او یا شین بوټی وچ شوی نه وي، پر مړي عذاب سپک وي؛ ځکه چې دغه شین بوټی او یا لښته د الله تعالی حمد او ثنا وایي.

**ادب او فنون لطیفه:**

د فنون لطیفه ارټس او ادب په نوم بُتان جوړول او پلورل پېرودل، عکاسي او مصوري یې په اسلامي امت کې رواج کړي دي، لوڅ فلمونه، رومانتیک، واهي افسانې، فحاشي، ګډا، نڅا او رقص د اوسني ادب ثقافت او هنر په نوم هغه ادب دی، چې غرب په اسلامي امت کې داسې ترویج کړي دي، چې روزي پرې ګټي، په داسې حال کې چې په اسلام کې د دغو ټولو اکتساب

حرام دی.
دغه راز قمار د لاټرۍ په نوم په مسلمانانو کې رواج دی، سود ورکول او اخستل په اقتصادي ډګر کې د دولت ګټلو بانکي کارو بار او بیمې د غرب د اقتصادي نظام هغه لارې چارې او مدارک دي، چې په اسلامي امت کې رایج دي او د مسلمانانو اقتصادي نظام د نړیوال کفر بانک او ای ایم ایف په ذریعه شاته غورځولي شوي دي او غربي طاغوتي ښکېلاک همدا اوس دغه هرڅه په اسلامي امت کې جاري ساتلي دي.

**د مسلمانانو د بېلارتیا لپاره درې ګوني وسایل:**

په ټوله اسلامي نړۍ کې تبشیري او صهیوني او د لوېدیز سیکولرېزم له اسلام څخه د مسلمانانو د بې لارتیا په تکل درې مهمې وسیلې په کار اچولي دي، چې په موجوده عصر کې په اسلامي هېوادونو کې کار کوي او هغه وسایل زه په ډېر لنډیز سره دلته وړاندې کوم:

**الف: غیر اسلامي تحریکونه:**

یهودیانو د خپلو پروتوکولونو له اصولو سره سم او مسیحیانو د خپلو جوړ کړي و اسلام دښمنه پلانونو د پلي کولو او تطبیق په خاطر او په مسلمانانو کې د مسیحیت او سیکولرېزم په خاطر په اسلامي هېوادونو کې ملحد، مرتد او اسلام دښمنه دعوتي تحریکونه جوړ او په کار اچولي دي او هغوی ته یې دوه مهمې دندې سپارلی شوي دي:

یوه د مسلمانانو له اسلام څخه د ګرځولو د عوتي دنده او دویمه په اسلامي هېوادونو کې د اسلامي دیني شخصیتونو او مسلمانو سیاسي بیدارو رجالو ترور او وژل، څو د دوی د دعوت په لاره کې خنډ نه شي او عوام د دوی له طاغوتي اهدافو څخه خبر نه کړي او دغه تحریکونه دا دي:

***

## علمانیت «Secularism»

د علمانیت معنی، چې په انګرېزي کې «Secularism» ورته ویل کېږي، ساینس او علم پرستي، یعنې هغه فکر او عقیده چې یوازې په ساینټفیک حقایقو او مادیاتو ایمان لري، ساینس او فلسفه خپل معبود ګڼي، له الله تعالی، اخرت او ټولو معنویاتو او متا فزیکي عواملو څخه انکار کوي.

د الله تعالی بشري رسولان او انبیاء علیهم الصلاة والسلام یوازې د خپل خپل عصر او زمان «Riefaais» ریفارمران، یعنې مصلحین ګڼي، پر هغوی د الله تعالی له پلوه د بشریت د هدایت لپاره نازل شوي کتابونه د هغوی خپل خپل نظریات ګڼي، چې د خپلو خپلو قامونو د ښېګڼې په خاطر یې جوړ کړي وو او د هغوی له وفات کېدو سره د هغوی کتابونه او هدایات هم له منځه تللي دي، ارزښت یې ختم شوی او زاړه شوي دي او خپل ځای یې ساینس ته پرېښودلی دی.

**تاریخ:** په منظم ډول د علمانیت فکر د یو دعوتي تحریک په توګه په (۱۷۸۹) میلادي کال کې د فرانسې له انقلاب سره سم منځته راغی او له ټولو څخه لومړی سیکولر حاکم د فرانسې انقلاب مخکښ نیپولین بوناپاټ و، که څه هم د دغه فکر موجدین هغه ساینس پوهان و، چې له ده څخه دمخه تېر شوي وو، مګر هغوی خپل سیاسي نظریات د پاپانو او کلیسا له وېرې څخه منظم نه کړای شول.

**وتلي مخکښان:**

د علمانیت او سیکولرېزم پلویان ټول غربي ساینسي مفکرین دي، خو زه یې د بېلګې په توګه یو څو مهم شخصیتونه دلته ذکر کوم او نور پر همدغو باید قیاس کړی شي:

۱. Copernicus:

کوپرنیکس متوفی (۱۵۴۳) میلادي کال د پولنیده اوسېدونکی فیلسوف او ساینسي عالم و، نوموړی په (۱۵۴۳) میلادي کال کې په سماوي اجرامو لیکلی کتاب چاپ او خپور کړ، چې په هغه کې ده نظر ورکړی دی، چې لمر د ټولو کایناتو چورلیز او مرکز دی، چې له هغه څخه د ځمکې په ګډون ټول کاینات چورلېږي، چې په دې اساس انسان اشرف المخلوقات نه؛ بلکې لمر دی.

د نوموړي دغه کتاب په هغه وخت کې د کلیسا له پلوه مصادره کړای شوه.

۲- Descartes:

ډیکارت، متوفی (۱٦۵۰) میلادي کال، متولد (۱۵۹۷) میلادي کال فرانسوي ساینس پوه و، نوموړی انساني ذهن او عقل د هر شي خالق ګڼلی دی.

۳- Isac Newton:

اسحاق نیوټن په (۱٦۴۲) میلادي کال کې پیدا شوی او په (۱۷۲۷) میلادي کال کې مړ شوی دی.

نوموړی د انګلستان ساینس پوه و، هغه دا نظریه وړاندې کړه، چې کاینات هیڅ خالق او پیدا کوونکی نه لري؛ بلکې د یو څو پنځیزو، طبیعي قوانینو په وجه پخپله منځته راغلی دی.

۴- Lavoisier:

لوایزر فرانسوي ساینسي عالم و، چې په (۱۷۴۳) میلادي کال کې زېږېدلی او په (۱۷۹۴) میلادي کال کې وفات شوی دی.

نوموړي ویلي دي:

ماده نه فنا کېدونکې، اذلي او ابدي ده، یوازې خپلې بڼې، شکلونه پخپله بدلوي، مګر نه فنا کېږي، چې د نوموړي دغې دعوې د قران کریم د دنیا او

کاينـاتو د فنـا کېـدو او ختمېـدو د الله تعـالی فرمـان ترديـد کـړی او پـه لسکونو هغه قراني ايتونه يې رد کړي، چې په دې باره کې دي.

۵- P.G Tait:

پي، جي تايټ امريکايي ساينسي عالم دی، چې په (۱۸۷۶) ميلادي کال کې مړ شوی دی، نوموړي ويلي دي، په کايناتو کې حقيقي وجود ماده ده، انسان نه خو ماده پيدا کولی شي او نه يې فنا کولی او له منځه وړی شي.

۶- Hegal:

هيګل الماني فيلسوف دی، چې په (۱۷۷۱) ميلادي کال کې زېږېدلی دی او په (۱۸۳۱) ميلادي کال کې له دنيا تللی دی، نوموړي ويلي دي: هغه څه حقيقت لري او منلی شي، چې موجود دی او حواس يې احساس کوي او له دې څخه پرته هېڅ شی د منلو وړ نه دی، چې په دې توګه نوموړي د غيب له عالم څخه انکار کړی دی.

۷- Faurbach:

فيورباخ هم الماني ساينس پوه دی، چې په (۱۸۰۴) ميلادي کال کې پيـدا شوی دی او په (۱۸۷۲) ميلادي کال کې مړ شوی دی.
نوموړی د الله تعالی له وجود څخه انکار کړی دی او ويلي دي: دين او مذهب يوازې لوبې او بې وقوفانو ته دوکه ورکول دي.

۸- Nietzshe:

نيچه الماني فيلسوف او ساينسي عالم دی، چې په (۱۸۴۴) ميلادي کال کې په المان کې زېږېدلی او په (۱۹۰۰) ميلادي کال کې مړ شوی دی، نوموړي ويلي دي: له ساينس څخه دمخه الله تعالی و، مګر اوس الله تعالی مړ شوی دی (نعوذ بالله) او خپل مقام يې ساينس ته پرېښودلی دی، خلکو ته په کار دي، چې د ساينس عبادت وکړي او ويلي دي: مسيحيت د مريونو او مينځو دين دی.

۹- Paul Sartre:

پال سارتر فرانسوي ساينس پوه دی، چې په (۱۹۰۵) ميلادي کار کې زېږېدلی دی او په (۱۹۸۰) ميلادي کال کې مړ شوی دی، نوموړي ويلي دي: انسان تر هغه پورې بشپړ او مکمل کېدلای نه شي، ترڅو پورې چې له الله تعالی، دين او اخلاقو څخه ازادي ترلاسه نه کړي.

۱۰- Guiseppe Mazzini:

ګوسپ مازني ايټالوي ساينس پوه دی، چې په (۱۸۰۵) ميلادي کال کې په ايټاليا کې زېږېدلی دی او په (۱۸۷۳) ميلادي کال کې مړ شوی دی.
نوموړي ويلي دي: د ملت په وجود کې د الله تعالی ذات حلول او ظهور کړی دی، چې له همدې کبله بايد د ملت عبادت وکړای شي، چې د نوموړي دغه فکر په ټولې نړۍ کې د نېشنلېزم او قوم پرستۍ ذهنيت خپور او پياوړی کړ.

۱۱- Breadlaugh:

بريډلا برېتانوي ساينس پوه دی، چې په (۱۸۳۳) ميلادي کال کې زېږېدلی دی او په (۱۸۹۱) ميلادي کال کې مړ شوی دی.
نوموړي په اروپا کې د لومړي ځل لپاره د الحاد او دهريت بنسټ کېښود، چې په لږه موده کې يې پياوړی تنظيم جوړ کړ.

۱۲- Durkheim:

دور کائم فرانسوي ساينس پوه او فيلسوف دی، نوموړی په (۱۹۱۲) ميلادي کال کې مړ شوی دی، دورکائم د دين په باره کې ويلي دي، چې د دين او مذهب پيل له Totemism د توتميزم له توهماتو او خرافاتو څخه شوی دی، د وېرې خرافاتو، شرک او بُت پرستۍ له مختلفو پړاوونو څخه په تېرېدو سره توحيدي اديان منځته راغلي دي.

۱۳- Darwin:

داروین بریتانوي ساینس پوه دی، چې په (۱۸۰۹) میلادي کال کې پیدا شوی او په (۱۸۸۲) میلادي کال کې مړ شوی دی.

نوموړي ویلي دي: ژوند د پنځیزو طبیعي قوانینو په سبب منځته راغلی دی او هغه داسې، چې یو ځل په ناڅاپي توګه ایکې یوه ژوره حجره پیدا شوه او بیا هغې د بشپړتیا او تکامل د پړاوونو له پای ته رسولو څخه وروسته انساني بڼه او شکل تشکیل کړ.

دغه راز په کومه نامعلومه زمانه کې په ناڅاپي توګه خود په خوده کونیاتي وړانګې Cismac Rays شعاعي مجسمې شوې او ماده وجود ته راغله او بیا په یوه زمانه کې په ناڅاپي توګه خود په خوده یو ځل له مادې څخه Life ژوند منځته راغی او کاینات موجود شو، د داروین مطلب له دغه افسانوي او فرضیاتي ساینسي فورمول څخه دا دی، چې دا ټول کاینات د انسان په ګډون له الله تعالی او خالق څخه پرته خپل پخپله پیدا شوي دي.

په داسې حال کې چې د داروین دغه نظریه پخپله ساینس هم ردوي؛ ځکه چې ساینسي نړۍ د Law of Causation یعنې د علت او معلول نړۍ ده او د داروین په نظریه کې خو Necessity یعنې لزوم او جبر دی، چې د ساینس له اصولو څخه خلاف دی.

په هر صورت نیپولین د دغو او نورو ساینس پوهانو د پورتنیو نظریاتو له مجموعې څخه علمانیت یا په عربي اصطلاح سیکولرېزم د تحریک په بڼه کې جوړ کړ، چې تر اوسه پورې ددین، اخلاقو او معنویاتو په خلاف په ګرده نړۍ کې چلېږي او دمخه چې ما په قانوني ډګر کې په اسلامي هېوادونو کې د بدلون ذکر کړی دی، هغه د همدغه علمانیت او ساینس پرستۍ له پلوه شوی دی.

**معتقدات:**

د علمانیت عام عقاید په لاندې ډول دي:

۱- د الله تعالی له وجود څخه بېخي انکار کول د ځینې علمانیانو په نزد.

۲- د ځینې نورو په نزد الله تعالی شته، مګر د الله تعالی او د انسان د ژوند ترمنځ له هر ډول اړیکو لرلو څخه انکار کوي.

۳- ژوند پر ساینسي او علمي اصولو، تجربو او د عقل پر حاکمیت قایم دی.

۴- د روح او مادې ترمنځ توپیر او بېلوالی او ددوی په نزد ټول روحي خصوصیات سلبي دي.

۵- د دین او سیاست ترمنځ بېلوالی.

۶- د ژوند ټول اړخونه یوازې او یوازې مادي دي او د لومړي ځل لپاره دغه الحادي نظریه په (۱۷۶۶) مېلادي کال د فرانسې Free Mason Lodge فري میسن لاج وړاندې کړې وه، چې اوس علمانیت د هغې تبلیغ کوي.

۷- د سیاست، قانون او اخلاقو په باره کې د ماکیاولي (۱۴۶۹) میلادي (۱۵۳۲) میلادي کال اصول عملي کول او هغه دا چې د مقاصدو د ترلاسه کولو په لاره کې عقیده او دیني بندیزونه باید خنډ نه شي او هغه دا چې په سیاست کې دروغ ویل، مکر، چل ول، دوکه باید د سیاست اصول وي؛ ځکه چې پخپله سیاست دروغ، ټګي او چل ول دی.

۸- په ټولنه کې بد اخلاقي، ګډوډي او د کهول بنسټ له منځه وړل؛ ځکه چې کورنۍ د ټولنې جوړولو اساس دی، چې کورنۍ نه وي، نو مهذبه ټولنه به هم نه وي.

**په اسلامي نړۍ کې د فعالیت مقاصد:**

۱- د اسلام په باره کې شکوک پیدا کول.

۲- د قران حقانیت او منزل من الله په باره کې شکوک پیدا کول.

۳- د محمد صلی الله علیه وسلم د نبوت په باره کې شباهت ترزیقول.

۴. دا چې اسلام یوازې د معنویاتو دین دی، له دنیا سره هېڅ سرو کار نه لري
۵. دا چې اسلامي فقه د روم له پخواني قانون څخه مقتبسه ده
۶. اسلام له تمدن سره سخت مخالف دی او د تمدن په خلاف دعوت کوي
۷. له غربي اسلوبو سره سم د ښځو ازادي
۸. د اسلامي تمدن بدنامول او په خلاف یې تبلیغات کول
۹. د اسلامي امت نوی نسل بې دینه، سیکولر او علماني تربیه کول



## تغریب: (Westernization)

د تغریب معنی ده، غرب زده کې، د ژوند په ټولو اړخونو کې د لوېدیځ تهذیب، ثقافت او تمدن قبلول او په هرڅه کې د لوېدیز د ملتونو تابعداري کول، په سیاست کې وي، که په اقتصاد کې وي، په ادب او لباس کې وي او که په اجتماعي چارو کې وي، که په کورنیو چارو کې، د زده کړې په نصاب کې وي او که تدریسي سیستم وي، نظامي وي او که دولتي وي، قضائیه وي که عدلیه وي او که مقننه وي، په خوراک څښاک، ناسته ولاړه مطلب دا په بشپړه توګه د لوېدیز ملتونو ژوند ژواک قبلولو ته تغریب ویل کېږي.

**تاریخ:**

د تغریب تحریک په اروپا کې د لومړي ځل لپاره د اتلسمې پېړۍ په پای او د نولسمې پېړۍ په پیل کې تاسیس شوی دی، چې تر اوسه پورې په ټوله اسلامي نړۍ کې خپور شوی دی.

**هدف:**

د دغه حرکت ټول فعالیتونه یوازې اسلامي نړۍ ته متوجه دی، که څه هم په ختیز کې نور غیر اسلامي ملتونه هم ورڅخه اغېزمن شوی او د هغوی په لاره روان دي، مګر د دغه تحریک د جوړولو د اسلامي امت له اسلامي عقیدې او ژوند ژواک، ثقافت او تهذیب او تمدن څخه اړول او ګمراه کول دي او مسیحیان او یهودیان د اسلامي امت د هغو فتوحاتو غچ اخلي، چې د اسلام د مقدس دین په لومړي او دویمه پېړۍ د اوخارو مسلمانانو او مقدسو اسلامي نفوسو په لاس شوي وو او د هغوی جاهلي تهذیبونه یې تالا ترغه کړي وو او پرځای یې اسلامي تهذیب او عقیده حاکم کړځولی و.

**بریالي توبونه:**

د تغریب تحریک د خپل دغه شوم او ناولي مقصد د ترلاسه کولو لپاره د

اسلامي نړۍ د هغه وخت عیاش حکمرانان تطمیع او استخدام کړل، چې د هغو په ذریعه یې په اسلامي امت کې دغه تحریک د نولسمې پېړۍ په لومړۍ لسیزه کې پلی کړ، چې تر اوسه پورې دوام لري او د دغه نوي جاهلي او طاغوتي تهذیب، ثقافت او تمدن په پلي کولو کې هغو علماني مسلمانو، ادیبانو، شاعرانو او علم منسوب دواتو هم پوره ونډه واخېسته، چې جسم یې مسلمان او زړونه یې له هغوی سره وو، هغوی هم د عیاشو واکمنانو ملاتړ وکړ، چې په دغو لاندې هېوادونو کې یې بریالیتوبونه ترلاسه کړل.

**په ترکیه کې:**

په ترکیه کې عثماني واکمن سلطان عبدالحمید ثاني په (۱۸۲۶) میلادي کال کې په ترکیه کې یو فرمان صادر کړ، چې په هغه کې یې امر کړی و، چې ددغه فرمان له صدور څخه وروسته به په ترکیه کې نظامي، دولتي او عام خلک ټول اروپايي لباس اغوندي او که چا مخالفت وکړ، د دولت له پلوه به سزا ورکول شي.

**په مصر کې:**

په مصر کې د مصر واکمن محمد علي په (۱۸۰۵) میلادي کال کې د مصر پوځ د اروپايي پوځي نظام له اصولو سره سم عیار کړ او هم یې په همدغه کال کې د ازهر له پوهنتون څخه اروپا ته وکړي ولېږل، څو په اروپايي پوهنتونونو کې تخصصي زده کړې وکړي.

**په تونس کې:**

په تونس کې په همدغه کال کې د توس حکمران احمد پاچا اول نظامي لښکرې د اروپا د عسکري نظام په اصولو عیار کړ او د حربي زده کړو لپاره یې پوهنتون جوړ کړ او عسکري استاذان یې له ایټالیا، برېتانیا او فرانسې څخه استخدام کړل، څو د تونس عسکري منصبدارانو ته هغه پوځي زده کړې تدریس کړي، چې د اروپا په حربي پوهنتونونو کې تدریس کېږي.

**په ایران کې:**

په ایران کې په (۱۸۵۲) میلادي کال کې قاجاري واکمنانو له غربي طرز سره سم د فنونو او علمو د زده کړې فاکولته جوړه کړه او په غربي سیستم زده کړې په کې پیل کړای شوې.

**په لبنان کې:**

په لبنان کې په (۱۸۶۰) میلادي کال کې له اروپا څخه د پرله پسې سیاسي، تعلیمي، ادبي اوثقافتي، اقتصادي او نظامي یلاویو له راتللو څخه د هغه ځای د مسلمانانو ټولې اړوندې شعبې غربي وګرځولی شوې او په عملي توګه اسلام د مسلمانو له ژوندود څخه بهر کړای شو.

**ادبي او ثقافتي بدلون:**

په پورتنیو قانوني، نظامي او سیاسي تغیراتو پسې جوخت په ادبي او ثقافتي ډګر کې هم د لوېدیز په طرز بدلون راوستی شو، چې په پیلامه یې په اسلامي هېوادونو کې د سینماګانو، کلبونو او تیاترونو له جوړولو څخه وکړای شوه، د ژورنالېزم او ادب په ډګر کې په ترکیه، هند، اندونیزیا، افغانستان، ایران، مصر او نورې عربي اسلامي نړۍ کې په داسې ورځپاڼو، جریدو، مجلو، کتابونو خپرونو د هغوی کامریډانو پیل وکړ، چې په غربي خم کې رنګ کړای شوي و، هغوی په مطبوعاتو او ادبي خپرونو کې د اسلام په خلاف او د لوېدیز ژوند په ستاینه کې مضامین، ناولونه، داستانونه او هغه افسانې لیکلي او خپرولي، چې له خپل بادار څخه یې زده کړي وي او د غرب په هدایت یې لیکل او خپرول او لګښت یې غربیانو ورکاوه، چې تر اوسه پورې په بریالیتوب سره فعالیت کوي او اوس خو یې اسلامي امت داسې غربي کړی دی، چې اکثریت یې نر وي او که ښځه وړوکی وي او که لوی په بشپړه توګه د غربي نظام او غربي ژوندو د تابع دی او پنځلس سوه (۱۵۰۰) کلونه دمخه خاتم النبیین محمد صلی الله علیه وسلم خپل امت ته ددغه بدلون خبر ورکړی دی او داسې فرمایلي دي:

عَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَتَتَّبِعُنَّ سَنَنَ الَّذِينَ مِنْ قَبْلِكُمْ شِبْرًا بِشِبْرٍ وَذِرَاعًا بِذِرَاعٍ حَتَّى لَوْ دَخَلُوا فِي جُحْرِ ضَبٍّ لَاتَّبَعْتُمُوهُمْ قِيلَ: يَا رَسُولَ اللهِ آلْيَهُودَ وَالنَّصَارَى قَالَ فَمَنْ.[1]

ژباړه: له ابو سعيد خدري رضي الله عنه څخه روايت دی، چې ويلي يې دي: رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي: تاسې به هرو مرو د هرو امتونو متابعت وکړئ چې له تاسې څخه دمخه تېر شوي دي، وازه په وازه، لوېشت په لوېشت ان تر دې چې که هغوی د سيمساري پر غار کې ننوځي، نو تاسې به د هغوی «په دې کې هم» متابعت وکړئ، وويل شو: ای د الله تعالی رسوله! د يهوديانو او نصرانيانو «متابعت به وکړو» ويې فرمايل: نو بل څوک.

يعنې: هو؛ تاسې به په هرڅه کې د هغوی متابعت کوي.

اوس دې مسلمانان د دغه حديث په رڼا کې خپل ژوندود، وګوري او هر يو دې له ځان سره محاسبه وکړي، چې څومره په اسلامي عقيده، تهذيب او عمل رهي دی او څومره تغريب په لاره رهي دی، ګومان نه کوم، چې له تش نوم څخه پرته موږ بل هيڅ يو شی هم نه لرو.

دغه راز په تعليمي ډګر کې د غرب تقليد په اجتماعي ډګر کې د غرب په ناسته ولاړه، خوی، بوی مرګ او ښادی کې د لوېديز پيروي په سياحت کې د لوېديز متابعت، لنډه دا چې هيڅ يو داسې عمل نشته، چې د مسلمانانو يوه لويه ونډه د غرب تقليد په کې نه کوي.

**په لوبو کې:**

په لوبو کې هم د لوېديز په هر اړخېزه توګه د مسلمانانو متابعت کول، په داسې ډول چې د مشروع او غير مشروع لوبو توپير له منځه تللی دی.

---

۱ - مشکوة: ۴۵۸/۲ مخ.

غرب چې هره لوبه منځته راوړي او په هر ډول یې چې کوي او له هغوی څخه په ډېره مودبانه توګه هیله کوي، چې له ځان سره یې شریک کړي او بیا هغوی اوس پردې پوه شوي دي، چې مسلمانان دومره غرب زده ګرځېدلي دي، چې نارینه او ښځې په هماغه لاره راځي او هماغه لوبې کوي، چې موږ یعنې غربیان یې کوو او په هماغو نومونو یې کوي، لکه: سکواش، تیبل تینس، کرکټ، سنګل روینګ، جمناستک، هاکي او داسې نور یې...

نو په دغو غربي لوبو کې ګډون کول او د برخې اخېستلو لپاره یې داسې شرطونه ورته کېښودل، چې د اسلامي تهذیب په ډاګه خلاف دي او د اسلامي شریعت له احکامو څخه سرغړونه ده او دا یې ورته ډانګ پېیلې کړې ده، چې که کوم لوبغاړی نر وي او که ښځه زموږ شرطونه قبول نه کړي، په لوبو کې د ګډون کولو حق نه لري، چې د هغو شرطونو له جملې څخه یې دا هم دي.

هر نارینه ځوان چې د المپیک په لوبو کې ګډون کوي، نو ږیره به خرېیي، ږیره لرونکي په دغو غربي لوبو کې د ګډون کولو حق نه لري.

دوېم شرط یې دا دی، چې لوبو ته به هماغه لباس اغوندي چې غربیانو تجویز کړی دی او د هغوی نارینه او ښځې یې د لوبو کولو پر مهال کې اغوندي چې هغه یوازې یو نری بنیان چې تر نامه او تخرګونو پورې وي او یو پتلون چې یوه لوېشت وي او یوازې له نامه څخه د ورون تر نیمایي پورې وي، هغه هم داسې نری چې عورت له ورایه ورڅخه ښکارېږي.

درېیم دا چې د لوبو پر مهال لمانځه او عبادت کولو ته به تلل نه وي او لوبې په داسې مهال کې کوي چې د لمونځونو مهالونه وي.

مسلمانانو دا هرڅه نه یوازې دا چې ورسره منلي دي؛ بلکې په ځینې لوبو کې خو له هغوی څخه هم وړاندې شوي دي او هغه دا چې هغوی په لارو او کوڅو کې او خپلو مړیو په هدیرو کې کرکټ نه کوي؛ بلکې د خپلو مړستونونو دومره درناوی کوي، چې دېوالونه یې ورڅخه تاو کړي دي او ساتونکي یې پرې ګومارلي دي، چې تنخوا ورته ورکوي، خو مسلمانان

وړوکي او ځوانان په هره کوڅه او لاره کې او په هدیره کې سوباړي ورسره وي او کرکټ کوي، چې د اسلام له اجتماعي او ديني ادابو څخه خلاف دی، مور او پلار او خپلوان يې ورته هيڅ نه وايي او ورڅخه نه يې منعه کوي.
مطلب دا چې تغريب د مسلمان نسل د بې لارتيا لپاره له لوبو څخه د يوې مهمې وسيلې په توګه کار اخلي او د مسلمانانو په غربي کولو کې په زړه پورې هغه شيطاني وسيله ده، چې په اسانتيا سره مسلمانان ګمراه کوي او اوس خو هماغه د نبي کريم صلی الله علیه وسلم فرمان دی، چې کافران يعنې يهوديان او مسيحيان هرڅه کوي، مسلمانان د هغوی تقليد کوي او ورپسې رهي دي، دېته نه ګوري چې په اسلام کې روا دی او که ناروا دی.

**د تغريب ذرايع:**

په ختيز کې د اوسېدونکو اقوامو او ملتونو او بيا په خاصه توګه د مسلمانو ملتونو د غربي کولو لپاره د تغريب تنظيم له دغو لاندينيو ذرايعو څخه ګټه اخلي او په کار يې اچولي دي:

۱- اسلامي امت غربي تمدن خپلولو ته دعوت کول.

۲- د اسلامي امت تشخص او ځانګړتياوې ختمول او په لوېديز تهذيب کې مدغم کول او له اسلام سره په بشپړه توګه د دوی اړيکې ختمول.

۳- مسلمانانو ته د مترقي اسلاميت ذهنيت ورکول، هغه هم له غربي قواعدو سره سم څو د غرب او اسلامي امت ترمنځ اړيکې او دوستي ټينګه شي.

۴- نشنلېزم او قوم پرستۍ ته دعوت ورکول، هغه هم د غرب د ناسيوناليستي له اصولو سره سم، څو په دغه ذريعه د اسلامي امت د مختلفو اقوامو او قبايلو ترمنځ تصادمونه، جګړې او وژلون رامنځته شي او د اسلامي امت وحدت ختم شي او په خپل منځ کې د جګړو او اختلافاتو په سبب د اسلامي امت پياوړتيا او کروړلتيا په ضعف او کمزورۍ بدله شي.

۵- په مسلمانانو کې د نړيوال انسانيت مفکوره خپرول او په اسلامي امت کې دا تبليغات کول، چې په دې سره به ټوه ټوه بشري نړۍ يوه شي، دين به

یې یو وي، ټوله ځمکه به ایکي یو وطن وګرځېږي، دیني اختلافات به ختم شي، په ټوله نړۍ کې به امن او صلحه حاکمه شي، ټول به په ایکي یوه ژبه خبرې کوي او د ټول بشریت به ایکي یو ثقافت وي، یعنې غربي ژوند او غربي ثقافت، چې په دغه ذریعه اسلامي فکر په مختلفو افکارو کې د ذوب کولو مقصد لري.

۶- په اسلامي هېوادونو کې د پخوانیو جاهلي تمدنونو ژوندي کول، چې په دې توګه په مسلمانانو کې له زوړ غیر اسلامي مدنیتونو سره مینه پیدا کول دي او په دوی کې د توحید عقیده کمزوري کول دي او د دې کار لپاره د تغریب تنظیم او د هغوی غربي په کروړونو ډالر او پونډونه مصرف کوي، لکه چې د دغه تنظیم یو یهودي غړی روکفلر صهیوني د مصر د فرعوني اثارو د احیاء ننداړتون او کار کوونکو ته لس میلیونه ډالر د مرستې په توګه ورکړل.

۷- په اسلامي امت کې او په اسلامي تاریخ کې د هغو شخصیتونو د تمجید او ستاینې په باره کې مضامین او کتابونه لیکل، چې د اسلامي شریعت په حکم هغوی مرتد شوي او مجازات شوي و، لکه منصور حلاج، ابن راوندي، ابو نواس او داسې نور، لکه چې د تغریب یو غړی مستشرق لویس ماسینیون د منصور حلاج پر شخصیت د «الحلاج الصوفي الشهید في الاسلام» په نوم غټ کتاب لیکلی او په (۱۹۱۲) میلادي کال کې یې چاپ او خپور کړی دی او د هغه په دوه کتابونو الطواسین او دیوان الحلاج باندې یې تحقیق او شنه هم کړې ده.

۸- له اسلام څخه د منحرف شویو تحریکونو مرسته او ملاتړ کول او هغوی ته د دعوت مالي او دعوتي امکانات برابرول، چې د هغو تحریکونو له جملې څخه قادیانیت، اسماعیله، بهائیت او د قرامطه وو تحریکونه د خاصې یادونې وړ دي.

۹- د الحادي او دهري ګوندونو خپرول او د هغوی مرسته کول او په اسلامي هېوادونو کې د هغوی دعوتونه په مالي مرستو او سیاسي او نظامي ملاتړ پیاوړی کول، چې د هغو له جملې څخه داروینیزم، مارکسیزم، فرویدیزم د خاصې یادونې وړ دي.

۱۰- دغه راز د دورکائم فرانسوي ساینس پوه او فیلسوف د اجتماعي نظام په باره کې دا نظریه ترزیقول، چې د اجتماع په جوړرولو او منظم کولو کې دین او معنویات هیڅ ډول رول نه لري.

یوازې بشري مفکرین دي، چې د هرې ټولنې د تنظیم لپاره اصول او قوانین جوړوي او ټولنې رهبري کوي.

۱۱- همدارنګه د تغریب تنظیم په اسلامي ټولنه کې د یو بل نامتو فرانسوي فیلسوف او ساینس پوه Descartes ډیکارټ (۱۵۹۷-۱۶۵۰) میلادي کلونو دا نظریه تبلیغوي، چې د علم د حاصلولو لپاره یوازې دوه ذرایع دي: یو عقل او بله حواس او له دغو دواړو پرته بله هیڅ ذریعه نشته، چې په دې توګه د اسلامي امت نسل له وحې څخه چې د علم اساسي، اصلي او لومړۍ ذریعه ده، انکار کولو ته دعوت کوي.

**تغریبي غونډې:**

د تغریب تنظیم د خپل فعالیت د نتایجو د ترلاسه کولو او د دغه تنظیم د زیات ګړندي کولو او پیاوړي کولو په خاطر د نولسمې پېړۍ له پیل څخه تر (۱۴۰۹) هجري (۱۹۸۹) عیسوي کال پورې شپږ غونډې او سیمینارونه کړي دي، چې تاریخونه او هغه هېوادونه چې تغریبي تنظیم غونډې په کې کړي دي، په لاندې ډول دي:

**الف:** لومړۍ غونډه په (۱۹۴۲) میلادي کال کې په بلتیمور کې کړای شوې وه، په دغه غونډه کې د هغو سرې او پټو تغریبي تحریکونو د کار او فعالیت جاج واخیستلی شو، چې په اسلامي امت کې جوړ او پلي کړای شوي دي.

ب: دوېم سیمینار په (۱۹۴۷) میلادي کال کې د امریکا د برنستون په پوهنتون کې کړای شوې وه او په دغه سیمینار کې د تغریبي تنظیم په هغو ثقافتي او اجتماعي فعالیتونو بحث او څېړنه وکړای شوه، چې په شرعي هېوادونو او اسلامي هېوادونو کې شوي و.

ج: درېیمه غونډه په (۱۹۵۳) میلادي کال د امریکا د برنستون په پوهنتون کې شوې وه، چې د غونډې موضوع وه:

اسلامي او معاصر ژوندون، په دغه غونډه کې د تنظیم غټو غټو غړیو، میل بروز، هارولرلډسمیث، روفایل باټای، هارولډ الن، جان کرسویل، شیخ مصطفی زرقا، کنث کراج، اشتیاق حسین او فضل الرحمن هندي ګډون کړی و.

د: څلورم سیمینار په (۱۹۵۵) میلادي کال کې په لاهور کې وکړای شو، چې د مسلمانانو له پلوه ناکام کړای شو؛ ځکه چې په سیمینار کې د مستشرقینو او مسلمانانو ګډون کوونکو ترمنځ په تعلیمي مراکزو د اسلامي مضامینو په اړوند اختلاف پیدا شو.

هـ: په (۱۹۵۳) میلادي کال کې په بیروت کې غونډه وشوه، چې د غونډې موضوع وه، د اسلام او مسیحیت ترمنځ اختلاف.

و: شپږمه غونډه په (۱۹۵۴) میلادي کال کې د مصر په اسکندریه کې د پورتني مقصد لپاره کړای شوې وه.

**د تغریب ترکیبي عناصر:**

تغریب په ایکي یو وخت کې نصرانیت، صهیونیت او استعمار دی؛ ځکه چې د دغو درې واړوو، اهداف، وسایل او ظروف ایکي یو دي او هغه دا چې دغه درې واړه د اسلام پر ضد پارېدلي دي، له همدې امله هدف او فعالیت یې مشترک دی.

***

## تنصير

**تعريف:**

د تنصير لغوي معنی ده، نصراني کول او د نصرانيانو په اصطلاح کې هغه تنظيم دی، چې غير مسيحي وګړي مسلمانان وي او که بل څوک مسيحيت ته دعوت کوي او د مسلمانانو نصراني کول ددغه تنظيم خاصه دنده ده؛ ځکه چې له اسلام څخه پرته نور اديان خو هسې شرکي اديان دي او يوازې د اسلام مقدس دين دی، چې د توحيد په عقيدوي اصولو ولاړ دی، نو ددغه طاغوتي تنظيم هم زياته پاملرنه اسلامي امت ته ده، څو اسلامي نسل خپلو مشرکانه اعمالو ته دعوت کړي او خپل باطل او مشرکانه منحرف دين پرې قبول کړي.

**تاريخ:**

د دغه اسلام دښمنه تنظيم د جوړولو، تبارز او په منظم ډول په (۱۷۹۵) ميلادي کال کې د جمعية لندن التنصيريه په نوم د انګلستان په پلازمېنه لندن کې تاسيس کړای شو او بيا يو کال وروسته په (۱۷۹۶) ميلادي کال کې په اسکاټلنډ او درېيمه څانګه يې په نيويارک کې جوړه کړای شوه، چې بيا سوکه سوکه پر ټوله نړۍ او اسلامي امت که د تنصير د مرکزي دفتر نمايندګي جوړې کړای شوې، چې تراوسه پورې فعاليت کوي.

**د نماينده دفاترو شمېره:**

په تېرو دوه سوه کلونو کې د انګستان د تنصير مرکزي دفتر په درېيمه نړۍ او اسلامی هېوادونو کې درې زره اووه سوه (۳۷۰۰) نماينده دفترونه جوړ کړي دي، چې د غير مسيحي وګړو د مسيحي کولو لپاره دعوتي فعاليتونه کوي او هيڅوک يې مخه نيولی نه شي.

**د دعوت کوونکو شمېر:**

د خلکو د نصراني ګرځولو په دغو درې زره اووه سوه دفاترو کې په مجموعي توګه اته څلوېښت (۴۸) ميليونه دعوت کوونکي کار کوي، چې

زیاتره برخه یې هغه وګړي کار په کې کوي او دعوتي دندې سرته رسوي، چې نصراني ګرځولی شوي او له خپل پخواني دین او عقیدوي مسلک څخه اوړېدلي او مرتد شوي دي.
څارونکي او واکمن په کې یوازې یو یا دوه کسان اصلي مسیحیان دي او نور د هر هېواد نصراني کړای شوي مرتد نارینه او ښځې دعوت ورته چلوي او د دوی د دعوتي چارو څارنه هماغه یو یا دوه کسه اصلي مسیحي وګړي کوي، چې د دغه تنظیم او کلیسا له پلوه پرې ګومارل شوي وي او د هغوی د هر کال د دعوتي فعالیتونو راپور ورته ورکوي.

**لګښت:**

د تنصیر د پورتنیو درې زره اووه سوه دفاترو او د هغوی د کار کوونکو او هغو ذرایعو، چې د مسیحیت د تعمیم او دعوت په لاره کې استفاده ورڅخه کوي، هر کال د مجموعي لګښت او مصارفو اندازه په دقیق ډول د کال یو سل او نهه دېرش (۱۳۹) میلیارزده ډالر ښودلی شوې ده او په دې کې هغه لګښتونه داخل کړای شوي نه دي، چې مسیحي بډایان او پاپ یې په خصوصي توګه کوي او یا په کلیزو، سیمینارونو کې مصرف کولی شي دا باید وویل شي، چې د پورتني لګښت زیاته ونډه په وروسته پاتې او جنګ ځپلو اسلامي هېوادونو کې لکه د افریقا په لویه وچه کې او د اسیا د لویې وچې ځینې هېوادونه، لکه هندوستان، برما، فلپین، اندونیزیا، بنګله دیش، پاکستان، افغانستان، عراق، شام، ایران او داسې نورو کې کولی شي، چې څه ناڅه نتیجه یې هم ورته ورکړې ده.

**هدف:**

د مسیحیانو د دغه تنظیم، یعنې تنصیر هدف او مقصد هم کټ مټ د دوی د لومړي تنظیم تبشیریه شان دی او هغه دا چې ټوله بشري نړۍ باید نصرانیت قبول کړي او په ټوله نړۍ نصرانیت باید حکومت وکړي؛ لکه چې د نصرانیت د تنظیم جوړولو پر مهال دوه صلحه کلونه دمخه د دوی پاپ د

دغه تنظیم کار کوونکو ته زړې ورکړې و، چې ستاسې د دعوتي هلو ځلو په نتیجه کې به تر (۲۰۰۰) میلادي کال پورې به پر ټوله اسلامي نړۍ او بیا په خاصه توګه د افریقا په لویه وچه د مسیحیت مذهبي حاکمیت وي او د مسلمانانو له موجودیت څخه به تشه وي، چې الحمد لله اوس چې دوه زره یم مسیحي کال هم دی د پاپ شیطاني او طاغوتي پورتنی زړې او هیله له خاورو سره خاورې کړای شوه او په (۱۹۹۹) میلادي کال کې په نایجریا کې اسلامي شریعت نافذ شوی دی او له نایجریا څخه شپږ کلونه دمخه د افریقا په زړه سوډان کې اسلامي نظام نافذ کړای شو. یوویشت کلونه دمخه په ایران کې (۱۹۷۹) میلادي کال د شیعه دوازده امامیه له مذهب سره سم اسلامي نظام نافذ کړای شو او زموږ په اسلامي افغانستان کې په (۱۲۹۲) میلادي کال کې اسلامي حکومت جوړ کړای شو. مګر له دې ټولو اسلامي بریاوو سره سره تنصیر مایوسه نه دی او خپل فعالیت کوي، چې په نتیجه کې یې په (۱۹۹۹) میلادي کال کې شرقي تیمور د اندونیزیا له اسلامي پکې څخه جلا کړ او د مسیحیت ځاله یې ورڅخه جوړه کړه، خو ان شاء الله ډېر ژر به بېرته د اسلامي اندونیزیا ونډه وګرځولی شي

**نامتو مخکښان**

د تنصیر نامتو مخکښان په لاندې ډول ښودل شوي دي

**۱- ریمون لول**

دا لومړی هغه نصراني دی، چې د صلیبي جنګونو له ناکامۍ څخه وروسته یې د تبشیر او تنصیر مفکوره شیطان په دماغ کې غورځوله او په ډېر تکلیف سره یې عربي زده کړه او بیا په شام کې کلي په کلي او ښار په ښار وګرځېده او د اسلامي امت له علماوو سره به یې د مسیحي افکارو د حقانیت د ثابتولو په تکل بحثونه او مناظرې کولې

**۲- بارون ډوبیتس**

نوموړی مسیحیت ته د ودي ورکولو لپاره په (۱۶۶۴) میلادي کال کې

لومړی پوهنتون جوړ کړ، چې د مسیحي تنصیري دعوت کوونکو روزنه په کې کوله او بیا به یې د دعوت لپاره مختلفو سیمو ته لېږل.

**۳- هنري مارټن:**

نوموړي په لوېدیزه اسیا کې د نولسمې پېړۍ له تنصیري مخکښانو څخه و او تورات یې په هندي، فارسي او ارمني ژبو ترجمه کړی دی.

**۴- Zwemer سمویل زویمر:**

نوموړی په منځني ختیز «شرق الاوسط» او په بحرین کې د تنصیري وفودو د لېږلو رئیس او په انګرېزي ژبه د مجلة العالم الاسلامي د تحریر مدیر هم دی، چې نوموړې مجله په (۱۹۱۱) میلادي کال پیل او تر اوسه چلېږي، دغه راز، زویمر ته د امریکایي کلیسا په نوم په بحرین کې کلیسا هم جوړه کړه.

**۵- لویس ماسینیون:**

نوموړی په مصر کې د تبشیر او تنصیر مشرتابه پر غاړه لري او په قاهره کې د مجمع اللغة العربیة مجلې غړیتوب هم لري.

**د اسلام په باره کې څرګندونې:**

د تنصیر مخکښانو د اسلام د مقدس دین او مسلمانانو په باره کې زیاتې منفي څرګندونې کړې دي، د مثال په ډول د تنصیر یو لیډر قس سیمون ویلي دي: اسلامي وحدت د مسلمانانو مقاصد بشپړوي او د اروپا له ولکې څخه نجات ورکوي، چې له همدې امله موږ زیار باسو، چې د تنصیر او تبشیر په ذریعه د مسلمانانو د اسلامي وحدت مخه ونیسو.

۱- یو بل تنصیري لیډر «Lawrance Brawn» لورنس براون ویلي دي: که چېرې مسلمانان سره متحد شي، نو د عالم بشریت لپاره به یا خطر او یا نعمت وګرځېږي، مګر که چېرې تیت او پرک وي، نو په نړۍ کې به هېڅ وزن ونه لري.

۲- د دغه اسلام دښمنه تنظیم یو بل مشر مسټر بلس ویلي دي: په افریقا کې تنصیر او تبشیر د پرمختګ په لاره کې اسلام خورا لوی خنډ دی، چې

باید لرې کړای شي.
۳- یو بل مشر طاغوت جست ویلي دي: اسلام نیمګړی دین دی او په اسلام کې ښځه مستعبده ده، یعنې مینځه ده، چې باید نجات ورڅخه ورکړای شي.
۴- سموئیل زویمر پخپل کتاب «العالم الاسلامي» کې ویلي دي:
دا لازمه ده، چې مسلمانان پر دې قانع کړای شي، چې نصرانیان د دوی دښمنان نه دي.
پر نصرانیانو لازم دی، چې خپل سپېڅلی کتاب «انجیل» د مسلمانانو پر ژبو ترجمه کړي؛ ځکه چې په مسیحي دعوت کې دا مهم او خورا اغېزمن کار دی.
مسلمانانو ته «مسیحیت په بللو سره د نجات» زېری باید د دوی د استاذي «مسیحي شوي» په واسطه او د دوی له صفونو څخه «د جلا کړای شوي شخص په سبب» ورکړای شي؛ ځکه چې دا متل دی، ونه د هغه په خپل شاخ «تبر لاستي» سره غوڅولی شي.
مبشرینو ته په کار دي، چې که چېرې په مسلمانانو کې د خپل دعوت نتیجه کمزورې احساس کړي او وګوري، چې مایوس نه شي؛ ځکه دا خبره ثابته ده، چې د مسلمانانو په زړونو کې د اروپایي علومو د زده کړې مینه خورا زیاته ده او هم د ښځو ازادۍ ته هم زیات لېوال دی.
مطلب یې دا دی، چې کله په مسلمانانو کې اروپایي علوم او د ښځو د ازادۍ غورځنګ بریالی شي، خپل پخپله به مسیحیان شي.
**امکانیات:**
د درېیمې نړۍ په وروسته پاتې اسلامي هېوادونو کې د تنصیر او تبشیر اسلام دښمنه تنظیم د نصرانیت د دعوت د کامیابولو او پرمخ بوولو په تکل له دغو لاندې ذرایعو او امکانیاتو څخه زیاته ګټه اخلي.
**تعلیم او تربیه:**
په دې کې هیڅ شک نه شته، چې ښوونه او روزنه د بشري نسل په لارښوونه

او بې لارتیا کې بنستیز نقش لري، له همدې کبله د تنصیر تنظیم په هره سیمه او هېواد کې پر تعلیم او تربیه د قبضه کولو هڅه کوي؛ ځکه چې تعلیمي مراکز د دعوت لپاره ښه زمینه برابروي، لکه چې د تنظیم یولیډر سموئیل زویمر ویلي دي:

تعلیمي مراکز لکه پوهنځي، لیسې او پوهنتونونه داسې مراکز دي، چې تنصیري او تبشیري دعوت کوونکي کولی شي، په اسانتیا سره د مسلمانانو نسل نصراني کړي.

او یو بل تنصیري مشر ماسینیون ویلي دي:

کله چې مسلمانان محصلین د زده کړې لپاره د فرانسې پر ځمکه قدم کېږدي، نو دا د نصرانیانو او د تنصیر دعوت کوونکو دنده ده، چې هغوی نصرانیت ته دعوت کړي او هغوی له غربي ژوندود سره اشنا کړي، چې په دې توګه موږ کولی شو، کله چې دغه مسلمان محصلین د خپلو زده کړو له پای ته رسولو ښخه وروسته خپلو هېوادونو ته ستانه شي، نو هغوی به زموږ خورا غوره خدمتګاران او زموږ وفادار دوستان وي.

له همدې کبله هغوی د دعوت په هره سیمه کې ښوونځی، وړوکتونونه، لومړني ښوونځي، د کوچنیانو مدارس او کورسونه جوړوي، چې د مسیحي راهبانو ښځو له پلوه اداره کېږي او غټې غټې لګښتونه پرې کوي، د کوچنیانو لپاره د لوبو ځایونو جوړوي؛ ځکه چې دوی په کوچنیانو کې د ځوانانو په پرتله په اسانتیا سره صلیب د هغوی په لاسونو کې ورکړی او د هغوی په دماغو کې او سپېڅلو اذهانو کې ترزیق کړی.

سربېره پر دې هغوی په اسلامي هېوادونو کې پوهنتونونه او فاکولتې هم خپلې موخې ته د رسېدو په تکل جوړوي، لکه چې په قاهره کې یې د «الجامعة الامریکیة» په نوم پوهنتون جوړ کړی دی.

د پاکستان په لاهور کې یې فرانسوي کلیه، یعنې پوهنځی جوړ کړی دی، په بیروت کې یې د «الجامعة الامریکیة» په نوم پوهنتون تاسیس کړی دی

او په سوریه کې یې د «الكلية السورية الانجيلية» په نوم پوهنځی جوړ کړی دی.

په پاکستان کې په (۱۹۷۹) میلادي کال کې چې د مسیحي تعلیمي مراکزو شمېره او سروې شوې ده، په مجموعي توګه دوه سوه درې (۲۰۳) ښوونځي شوي دي، چې اتیا (۸۰) یې لومړني ښوونځي، پنځه ویشت (۲۵) منځني ښوونځي، پنځه اویا (۷۵) لېسې، څلور کالجونه (پوهنځي) او دیارلس (۱۳) حرفوي د ښوونې مرکزونه جوړ کړای شوي دي.

دار الایتام:

د تنصیر دوېمه مهمه ذریعه په اسلامي هېوادونو کې د یتیم خانو جوړول دي او دا د هغو ماشومانو لپاره چې له کورونو څخه تښتېدلي وي او د دوی په لاسونو کې کېوتي وي.

د تنصیر دعوت کوونکي دغه ډول کوچنیانو ته ډېر خوشحالېږي؛ ځکه چې له لومړۍ ورځې څخه د دوی روزنه او ښوونه له صلیب څخه پیل کېږي، له همدې کبله د تنصیر یو لیډر «لافجري» په الجزایر کې یو زر اته سوه (۱۸۰۰) یتیمان وپېرودل او په یو پنډغالي «کمپ» کې چې د نصرانیت کلي نوم یې پرې کېښودلی دی، له روزنې لاندې ونیول او ددې لپاره چې د یتیمانو د خپلوانو خولې پټې وساتي، هره میاشت د جېب خرڅ په توګه د یتیمانو د تنخوا په نوم پېسې ورکوي او هم د نصرانیانو خیریه صندوق او د هغوی مرستندویه ادارو ته معرفي کوي.

دغه ډول یتیم خانې په ټولو جنګ ځپلو او وروسته پاتې اسلامي هېوادونو کې تنصیري او تبشیري دعوت کوونکو جوړې کړې او جوړوي یې.

یوازې په پاکستان کې نصرانیت ته بلونکو مسیحیانو دوه شپېته (۶۲) یتیم خانې جوړې کړې دي، چې دېرش د انجونو لپاره دي او دوه دېرش د هلکانو لپاره دي او له هرې یتیم خانې سره یې لیلیه «هاسټل» کلیسا د لوبو میدانونه او روغتونونه هم جوړ کړي دي، چې په مجموعي توګه د درې

زره نهه سوه څلور دېرش (۳۹۳۴) يتيمانو په کې تربيه کولی شي، چې نولس سوه (۱۹۰۰) هلکان دي او دوه زره څلور دېرش (۲۰۳۴) انجوني دي.[۱]

**کتابتونونه:**

د تنصير او تبشير درېيمه مهمه ذريعه کتابتونونه دي، چې په ټولو هېوادونو کې تنصيري طاغوتاتو جوړې کړې دي او د کتاب مقدس کتابتون او بايبل لايبرري په نومونو يادولی شي، د مسيحيانو دغه کتابتونونه په دوه ډوله دي:

يو ډول هغه کتابتونونه دي، چې په وړيا توګه انجيل او نور تنصيري کتابونه توزيع کوي او يا يې په خورا ارزانه بيه پلوري، چې تر (۱۹۸۹) ميلادي کال پورې يې زر ميليونه، يعنې يو ميليارد د محرف انجيل نسخې توزيع کړي دي، چې د نړۍ په (۱۱۳۰) په يو زره يو سل يو دېرش ژبو ترجمه کړای شوي دي او د انجيل پر دغه يو ميليارد نسخو اووه زره (۷۰۰۰) ميليونه، يعنې اووه ميلیارده ډالر لګښت شوی دی.

په انجيل سربېره نور هغه لوی او واړه کتابونه هم توزيع کوي، چې تنصيري ليکوالانو د اسلام او مسلمانانو په خلاف او د مسيحيت په حقانيت کې ليکلي دي او بيا يې په مختلفو ژبو کې ترجمه کړي دي، چې د هغو له جملې څخه په پښتو او دري ژبو هم د افغانستان د مهاجرينو لپاره يې ترجمه کړي دي او له (۱۹۸۰) ميلادي کال څخه تر (۲۰۰۰) ميلادي کال پورې يې زموږ په کمپونو «پنډغالو کې» يو لک اويا زره دوه سوه درې دېرش نسخې اناجيل په پېښور، کويټه، چترال او د صوبه سرحد په نورو سيمو کې وړيا توزيع کړي دي.

دويم ډول هغه کتابونه دي، چې يوازې په کتابتون کې دننه د مطالعې لپاره

---

۱- الموسوعة الميسرة في الاديان والمذاهب: ۱۶٦ مخ.

دي او د کتابتونونو دغه ډول له تنصيري او تبشيري کتابونو، مجلو او جرايدو ډکې وي، د تنصير دعوت کوونکو د کتابتونونو په انګړ کې د کنفرانسونو خونې او د ذهني مسابقو لپاره بېلې خونې جوړې کړې دي.
په کتابتون کې د پنګ پانګ لوبې کولو مېزونه او داسې نور يې تيار کړي دي او دا هرڅه د تنصير دعوت کوونکو لپاره دا زمينه برابروي، چې له مراجعينو سره د دعوت او مفاهمې دروازه پرانيزي، د مثال په ډول دغه ډول کتابتون په (۱۸۹۲) ميلادي کال کې د عراق په بصره کې او په (۱۸۹۳) په بحرين کې جوړ کړای شوی دی.
په دغه ډول کتابتونونو کې مسيحيانو ښايسته او له ناز او نخرو ډکې پېغلې نجونې د راغلو ځوانانو په خدمت کولو ګومارلې وې او دوی ته دنده سپارلې شوې وه، چې کتابتون ته راغلي مسلمان ځوانان د خپل ناز او انداز په لومو کې داسې قيد کړي، چې د تل لپاره د کتابتون غړي او نصراني شي.

**راډيو تلوېزيون:**

د تنصير او تبشير د کاميابولو لپاره څلورمه مهمه وسيله راډيو او تلوېزيون دی، چې د دنيا په مختلفو ژبو تنصيري خپرونې او دعوت چلوي او تر اوسه پورې يې د نصرانيت د پرمختګ لپاره په مجموعي توګه يو زر شپږ سوه شل (۱۶۲۰) راډيويي او تلوېزيوني سټېشنونه او مراکز يې جوړ کړي دي، چې څو مشهور يې په لاندې ډول دي:

**۱- الصرة البشارة:**

يعنې د زېري ورکولو غږ، دغه راډيويي مرکز د سوډان په پلازمېنه اديس بابا کې جوړ کړای شوی دی، چې په عربي ژبه د تنصير دعوت چلوي.

**۲- د کوريا راډيو:**

د تنصير د خپرولو لپاره د کوريا راډيو په اوونۍ کې يو ځل راډيويي خپرونې په عربي ژبه کوي او دا دليل وړاندې کوي، چې د کوريا درې لکه

(۳۰۰۰۰۰) کار کوونکي په سعودي عربستان کې کار او مزدوري کوي دغه خپرونه د هغوی لپاره په ځانګړې توګه کوي، سربېره په عربي د کوریا د تنصیر راډیویي مرکز د افریقا او منځني ختیز لپاره هم په دولسو بېلا بېلو ژبو او لهجو د مسیحیت تنصیري خپرونې کوي.

**۳- د واتیکان راډیو:**

دغه راډیو چې د روم په واتیکان کې ده، خپل دعوتي پروګرامونه په انګرېزي، فرانسوي، پرتګالي او افریقایي ژبو خپروي، چې پخپلو دعوتي خپرونو کې انجیل د ژوند د ټولو مشکلاتو د هوارونکي په توګه تفسیر او بیانوي، دغه راز د روحي او معنوي موضوعاتو د مسیحیت په رڼا کې تحلیل کوي.

**۴- د حب ابدي راډیو:**

دغه تنصیري دعوتي راډیویي مرکز د افریقا د بیلیبیریا د هېواد په مزوویا کې دی، چې په (۱۹۹۴) میلادي کال کې د امریکایانو له پلوه د تنصیر د دعوتي خپرونو لپاره جوړ کړای شو، چې د مسیحیت د خپرونو لپاره ډېر اغېزمن ګڼلی شي او خورا زیات لګښت پرې کوي.

**۵. د لاګوس راډیو:**

په نایجریا کې د لاګوس راډیو په دري ژبو انګرېزي، هوسایي او فولاتي د تنصیر او تبشیر مذهبي خپرونې کوي.

**۶- د سیسلي راډیو:**

د هند په سمندري ټاپو سیسلي کې د تنصیر د تنظیم دغه راډیویي مرکز په افریقایي سیمه ییزو «محلي» ژبو خپرونې کوي او د لرې ختیز د ارتباطي خپرونو په نوم یادولی شي.

**۷- د کاډونا راډیو:**

د نایجریا په شمال کې د مسیحیانو دغه د تنصیري دعوت راډیویي مرکز په افریقا فولاتي ژبه تدریس او خپرونې کوي.

**۸ - د سیرالیون راډیو:**

دغه مسیحي دعوتي راډیو هم د سیرالیون په پلازمېنه فریټاون کې جوړ کړای شوې ده، چې په انګرېزي او افریقایي ژبو خپلې دعوتي خپرونې کوي.

**۹ - د ګابون راډیو:**

دغه راډیو هم د الصوة البشاره په شان خپرونې کوي.

**۱۰ - د لاهور راډیو:**

د پاکستان په لاهور کې د نصرانیانو دعوتي او تبشیري راډیو په اردو، پنجابي، سندي، کشمیري او نورو سیمه ییزو ژبو خپرونې کوي.

په مازدیګر او سهار کې په پښتو ژبه د پښتنو د نصراني کولو لپاره یو ساعته خپرونې کوي، نیم ساعت مازدیګر او نیم ساعت سهار دعوتي او ترغیبي تبلیغ کوي.

**۱۱ - د اسلام اباد راډیو:**

د تنصیر دغه راډیو، چې د پاکستان په پلازمېنه کې ده، په (۱۹۸۰) میلادي کال کې پر افغانستان د روسانو له یرغل څخه وروسته دعوتي خپرونې په دري ژبه د افغانانو د نصراني کولو په تکل پیل کړې دي او د پروګرام متصدي یې د افغانستان د بدخشان د ولایت کمونست دی.

***

## د کلیساوو جوړول

د تنصیر او تبشیر دعوت کوونکي په اسلامي هېوادونو کې کلیساوې او نور مسیحي معبدونه جوړوي؛ دا ځکه چې هغوی دغه معابد په اوسني عصر کې د نوي بدلون په سبب د نصرانیت د پرمختګ او د اسلامي امت د ځوانانو او پېغلو د بېلارتیا لپاره اغېزمنه ذریعه ګڼي او لامل یې دا دی، چې اوسنۍ کلیساوې له پخوانیو څخه مختلفې دي او هغه داسې، چې په پخوانیو کلیساوو کې که څه هم د کلیساوو په محیط کې به که څه هم د راهبانو او راهباتو ترمنځ جنسي اتصال کېده، مګر د هغوی دغه ناوړه عمل به بیا هم په پټه او د کلیساوو په کور بدوروننو کې او د راهبانو په تیارو خونو کې ترسره کېده.

مګر د نن ورځې د کلیساوو، متصدیان له دغو پټو کارونو کولو څخه ستړي شوي دي او د غربي فلاسفه وو او ساینس پوهانو په مرسته یې وکولی شو، چې په کلیساوو کې د شپې ناسته او د شراب څښلو د ځوانانو او پېغلو لپاره د موسیقۍ او ګډا محفلونه په کلیسا کې دننه جوړ کړي او کلیسا ته ددغو چارو په کولو سره د ځوانانو پاملرنه جلب کړي، خو د هغو نجونو او ځوانانو چې دیني تربیه یې په صفر کې ضرب وي، چې په دې توګه د نصرانیانو اوسنۍ کلیساوو د نایټ کلبو بڼه غوره کړې ده؛ ځکه په وړیا شراب، رقص او موسیقۍ د حمل ضد ټابلیټ هم په کې موجود وي، چې د مستقبل د خطر له وېرې څخه دوه یاران خپله جنسي غریزه په کلیساوو کې په ډاډه ترسره کولی شي، لکه چې د بییرکولي شرکت فرانسوي وکیل ویلي دي: موږ ډېر نېکمرغه یو، چې د حمل د ضد ټابلیټونو پر مټ مو دا وکولی شو، چې د «اخلاقو» دروند پېټی له خپلو

اوړیو ښخه لرې کړو او هوسا او دمه شو.[۱]

په هر صورت دغه مسیحي کلیساوې د تنصیري دعوت مهمه ذریعه ده، چې له همدې امله تنصیري او تبشیري تنظیم زیار باسي، چې په هر هېواد کې زیاتې کلیساوې جوړې کړي او بیا په خاصه توګه په هغو اسلامي او غیر اسلامي هېوادونو کې چې مخنیوی یې نه شي کولای، چې زه یې دلته دوه درې مثالونه وړاندې کوم.

**په اندونیزیا کې:**

اندونیزیا په اسیا کې له لویو اسلامي هېوادونو څخه دی، چې له (۱۳۶۰۰) ټاپوګانو «جدیدو» څخه جوړ شوی دی، مګر په دې وروستیو کې په حیرانوونکي توګه د نصرانیت د خپرېدلو مرکز ګرځېدلی دی او په دغه اسلامي هېواد کې له بل هر هېواد څخه زیاتې کلیساوې جوړې کړای شوې دي، چې په مجموعي توګه اوولس زره اته سوه نولس د پروتستان د تنظیم دي او دوه زره پنځه سوه کلیساوې د کاتولیکانو دي او څلور څلوېښت خالص د امریکایانو دي.

د پروتستان په کلیساوو کې درې زره اته سوه اووه نوي (۳۸۹۷) کشیش او اته زره پنځه سوه څلور (۸۵۰۴) منصرین یعنې د تنصیري تنظیم موظفین او اووه زره (۷۰۰۰) داوطلب تنصیري مسیحیان کار کوي، چې د هغه هېواد مسلمانان یې نصراني کړي.

دغه راز په کاتولیکي کلیساوو کې دوه زره شپږ سوه دېرش (۲۶۳۰) قسیس او پنځه زره دوه سوه درې نوي (۵۲۹۳) د تنصیر د تنظیم غړي کار کوي.

**په جاپان کې:**

په جاپان کې نهه زره اووه سوه نهه څلوېښت (۹۷۴۹) کلیساوې او یو ستر

---

۱- د القتبس ورځپانه خپروونکی سودان: ۱۹۸۸، نوامبر ۳ ګڼه، ۲مخ

تنصیري مرکز جوړ کړای شوی دی، چې په (۱۹۸۴) میلادي کال کې د دغو کلیساوو جوړولو ته د پروتستان د کلیسا له پلوه (۲۱۷۲۵۰۰۰۰) جاپاني ین ورکړای شوي دي، په داسې حال کې چې په ټول جاپان کې مسلمانان یوازې دوه زره زاړه جوماتونه لري.

**قمر مصنوعي:**

د تنصیر مسیحي تنظیم په دې وروستیو کې په ټوله نړۍ کې د نصرانیت د خپرولو او تبلیغ لپاره قمر مصنوعي هم ترلاسه کړې ده، چې د کلیسا له پلوه منصرین او مبشرین د دغه سپوږمکۍ په ذریعه نړیوال مسیحي دعوت چلوي.[1]

**ویډیو کسټونه:**

د انګلستان مرکزي کلیسا د پنځه اویا زره (۷۵) انګریزي پونډونو په بیه د ویډیو کسټونه اخستلي دي او په مختلفو ژبو یې په هغو کې د نصرانیت دعوت ثبت کړی دی او بیا یې هغه په ټولو هېوادونو کې اړوندو دفترونو ته لېږلي دي، څو هغه تکثیر او توزیع کړي او خپل دغه کار او نوښت یې ویډویي انقلاب نومولی دی او د انګلستان مقدس انجمن ویلي دي: د ویډیو کسټ په استخدامولو سره موږ اوس له دې څخه بې غمه شو، چې لاړ شو، پر ممبر ودرېږو او خلکو ته د مسیحیت دعوت ورکړو.

**الوتکې:**

د مسیحیت نړیوال تنصیر تنظیم پنځوس الوتکې هم لري او دغه ځواک یې په (۱۹۴۵) میلادي کال کې د دویم نړیوال جنګ له پای ته رسېدو څخه وروسته ترلاسه کړی و او په (۱۹۵۳) میلادي کال کې یې په کار پیل کړی وو.

تنصیر د خپل هوایي ځواک بنسټ د لاس انجلس په ښار کې کېښود او

---

[1] ۱- له المجتمع مجلې څخه، ګڼه۷۷۴.

اوس پنځلس مهم هوايي ډګرونه لري، چې د اړتیا په صورت کې ګټه ورڅخه اخلي او د تنصیر دغه هوايي موسسه «الزماله» نومېږي.
پر دې برسېره تنصیر او تبشیر نورې هوايي موسسې هم لري، چې یوه یې ریګون پیوند نومېږي، دویمه یې میسیونادي بونیون نومېږي او درېیمه یې اډفنتس السبتي کلیسا پورې مربوطه هوايي موسسه ده او پنځمه یې د روم په کاتولیک کلیسا پورې مربوطه موسسه ده، د تنصیري دعوت ددغو هوايي موسساتو دندې په لاندې ډول دي:
۱- داسې لرې سیمو ته غذايي مواد رسول، چې هغوی مواصلاتي لارې نه لري.
۲- هغو سیمه ییزو او محلي خلکو ته د کرهنې او تعمیراتي موادو رسول، چې زیاته اړتیا ورته لري.
۳- روغتونونو ته د ناروغانو رسول او بیا له روغتونونو څخه بېرته کورونو ته د هغوی رسول.
۴- لرې او صعب المرور سیمو ته د استادانو او معلمینو رسول.
۵- غونډو او سیمینارو ته د مسیحي تنصیري دعوت د ارکانو رسول.

**اخبارونه او مجلې:**

د تنصیر تنظیم د مسلمانانو په مسیحي کولو کې مطبوعات ډېره مهمه ذریعه ګڼي، له همدې امله هغوی په هر اسلامي هېواد کې ورځپاڼې، جراید او مجلې خپروي، چې د هغو له جملې څخه د بېلګې په توګه په پاکستان کې د هغوی مطبوعاتي فعالیت په لنډیز سره وړاندې کوم او هغه دا چې د پاکستان په اسلامي هېواد کې د تنصیر تنظیم ډېرش ورځپاڼې، جراید او مجلې خپروي، چې نومونه یې په لاندې ډول دي:

| نوم | ځای | خپروونکې اداره |
|---|---|---|
| ۱- لاهور ډایوسس میګزین | لاهور | پنجاب د بلیجس بک سوسایټي انارکلي لاهور |
| ۲- المائده | لاهور | پاکستان بایبل سوسائټي لاهور |
| ۳- مسیحي بچو | ګوجرانواله | نهیو لاجیکل سیمزی |
| ۴- مسیحي نوجوان | لاهور | مسیحي اشاعت خانه ۳۹ فیروز پور روډ |
| ۵- نعره جنګ | لاهور | نرالی کتابین پوست بکس نمبر ۱۸سول لائنز |
| ٦- اخوت | لاهور | ایس پي سی کی معرفت پي ار بي ایس انارکلي |
| ۷- ازاد وطن | لاهور | دي سالویشن ارمي ۳۵ شارع فاطمه جناح لاهور |
| ۸- شاداب | مردان | اخوت اندراسیه ۳ وارث روډ لاهور |
| ۹- سوز | لاهور | پاکستان لوتهرن چرچ اردو لټریچرشپ منزل |
| ۱۰- نقیب کاتولیک | لاهور | جانلدایو نجلیرم فیلوشپ اب پاکستان ۳۶ فیروز پور |
| ۱۱- بچو کا دوست | سرګودها | اسکریچر ګفټ مشن معرفت مسیحي اشاعت خانه |
| ۱۲- ال شاهد | راولپنډي | پاکستان ورنیکلر کاتولیک تروت سوسانټي کچري |
| ۱۳- بشیر | ګجرانواله | روډ پاکستان لوترن چرچ پشتو لټریچر |

| | | |
|---|---|---|
| النساء | | بشپ مردان |
| ۱۴- کلام حق | گجرانواله | مطبوعاتي پولوسی، ۳ پی وارث روډ لاهور |
| ۱۵- مسیحي خادم | سیالکوټ | مکتبه شاداب ایمپرس روډ بي بي پاک دامن |
| ۱۶- خزینة الجواهر | سیالکوټ | مکتبه تنویر ۹۰/۲ کریم پارک کچاروای روډ لاهور |
| ۱۷- کلیسا | ملتان | راس اکیډمي بي بي پاکدامن لاهور (۵) |
| ۱۸- همارا ډاکتر | کراچي | اداره اظهار و افکار (۷۲) بي گلبرگ نمبر ۲ لاهور |
| ۱۹- کرسچین وایس | کراچي | |
| ۲۰- جفاکش | کراچي | |
| ۲۱- قاصد جدید | لاهور | |
| ۲۲- هلیت | لاهور | |
| ۲۳- المشیر | راولپنډي | |
| ۲۴- اچها چرواها «لانیک شپون» | راولپنډي | |
| ۲۵- چهوتا سپاهي «وروکی عسکر» | راولپنډي | |
| ۲۶- افسر | راولپنډي | |

| | | |
|---|---|---|
| ۲۷- هوم لیک «د ښځو لپاره» | راولپنډي | |
| ۲۸- طلوع فکر | پېښور | |
| ۲۹- مستقبل | لاهور | |
| ۳۰- اخلاق | لاهور | |

۶- طبي خدمتونه: نصراني تبشيري او تنصيري طاغوتيان د اسلام پر ضد په ټولو فعاليتونو او اعمالو کې طبي خدمتونه خورا ذريعه ګڼي، ان تر دې چې د خپلو تنصيري چارو پيلامه له طبي خدمتونو څخه کوي او دا دليل وړاندې کوي، چې عيسی مسيح عليه السلام درملګر او معلم و، چې له يو پلوه به يې د ناروغانو او له پښو څخه غورځېدلو علاج به يې کاوه او له بل پلوه به يې خلکو ته تعليم او دعوت ورکاوه، نو موږ «منصرين» هم د هغه په متابعت سره بايد له هر څه نه لومړی د مريضانو علاج وکړو او بيا له هغه وروسته مسيحيت ته دعوت ورکړو.

مګر د دغو تنصيريانو دغه مثال وړاندې کول سم نه دی او خلکو ته دوکه ورکوي او د عيسی عليه السلام متابعت نه؛ بلکې د هغه مخالفت کوي؛ ځکه چې عيسی عليه السلام ټول بشريت ته اعلان کړی و او ورته ويلي يې دي:

﴿ قَالَ اِنِّيْ عَبْدُ اللّٰهِ ۛ اٰتٰىنِيَ الْكِتٰبَ وَ جَعَلَنِيْ نَبِيًّا ۝۳۰ ﴾. (مريم/۳۰)

ژباړه: وويل عيسی چې بېشکه زه بنده د الله يم، راکړی يې دی ماته کتاب او ګرځولی يم زه الله تعالی نبي.

مګر دوی ظالمان وايي، چې هغه د الله تعالی زوی وو!! «نعوذ بالله»

عيسی عليه اسلام خو خلک توحيد ته دعوت کول او ورته ويل يې، چې زموږ ستاسې رب الله دی او يوازې د الله تعالی عبادت وکړئ، لکه چې الله تعالی د هغه دغه توحيدي دعوت په قران کريم کې ورڅخه حکايت کړی،

چې هغه خلکو ته وویل:

﴿ وَإِنَّ اللَّهَ رَبِّي وَرَبُّكُمْ فَاعْبُدُوهُ ۚ هَٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيمٌ ﴾. (مریم/۳۶)

ژباړه: او وویل عیسی، بېشکه الله رب زما دی او رب ستاسې دی، پس عبادت کوئ تاسې د الله، همدغه لاره سمه صافه برابره ده.

مګر دوی خو د عیسی علیه السلام د دعوت په خلاف خلک شرک او تثلیث ته دعوت کوي، عیسی علیه السلام او د هغه مور بي بي هم خدایان ګڼي او د هغوی عبادت وکړئ، دعوت کوي، بلکې د تنصیر دعوت کوونکي خو یې د صلیب چې یوازې اوسپنه ده، عبادت ته دعوت کوي؛ ځکه د تنصیر تنظیم او ډاکتران لېدلی شوي دي، کله چې ناروغ ته ټابلیټ په لاس کې ورکوي، نو ورسره صلیب هم په غاړه کې ورته اچوي او دا تلقین ورته کوي، چې صلیب ته سجده وکړي، هغه ښکل کړي او په تنده پورې یې وسولوي، هغه صلیب چې مسیحي ظالمو مشرکانو د عیسی علیه السلام له وفات څخه دوه سوه کلونه وروسته د شیطان په لمسه له اوسپنې څخه جوړ کړی دی.

په هر صورت د تنصیر ډاکتران یوازې د خلکو د نصراني کولو لپاره د خلکو علاج کوي، چې مسلمان نصراني وګرځوي؛ لکه چې د تنصیر یو مخکښ په خپل کتاب «الطبیب فی بلاد العرب» کې ویلي دي:

ژباړه: موږ په عربي هېوادونو کې ددې لپاره «طبابت کوو» چې نارینه او ښځې نصارانیان کړو، د همدغه مقصد په خاطر یو تنصیري طبیب ډاکتر ېینټ په (۱۹۱۰) میلادي کال کې د لومړي ځل لپاره کویټ ته لاړ او د یو کال په موده کې یې وکولی شو، چې په (۱۹۱۱) میلادي کال په قس ج فان ېیرسم او یو بل ډاکتر او، ه، ستورم له کویټ څخه په (۱۹۵۴) میلادی کال کې قطر ته ولېږلی شول او هغه وکړای شول، چې په (۱۹۴۷) میلادي کال کې په قطر کې لوی روغتون جوړ کړي.

اوس خو په هر اسلامي هېواد کې په لسګونو دغه ډول روغتونونه تنصيري تنظيم جوړ کړي دي، چې د علاج او طبي خدمت د پردې تر شا مسيحي دعوت چلوي، چې نړدې مثال يې زموږ ګاونډی اسلامي هېواد پاکستان دی، چې په مجموعي توګه څلور دېرش روغتونونه د پاکستان په پنځو ايالتونو کې د مسيحي دعوتګرانو له پلوه جوړ کړای شوي دي.[۱]

دغه راز په افغانستان کې هم تنصيري دعوتګرانو طبي مراکز جوړ کړي دي، چې مثال يې د وردګو د ولايت د چک د ولسوالۍ په شېرخانه کې جوړ کړی، لوی روغتون دی، چې د تنصير د تنظيم غړې او دعوت کوونکې يوه ښځه يې سرپرستي کوي، چې (کالا) نومېږي.

۷- سيمينارونه او غونډې: د تنصير او تبشير له پيل څخه تر اوسه پورې يې په اوچته سطحه ډېرې غونډې او سيمينارونه داير کړي دي او په هغو کې يې د مسلمانانو د نصراني کولو په اراده نوي نوي پلانونه جوړ کړي دي او جوړوي، يې چې په لاندې کرښو کې يې ذکر کوم:

۱- په (۱۳۲۴) هجري کې له (۱۹۰٦) ميلادي کال سره سم د مصر په پلازمېنه قاهره کې د زويمر په رياست کې غونډه وکړای شوه، چې دوه شپېته (٦۲) تنصيري مشرانو نارينه وو او ښځو په کې ګډون کړی وو، د سيمينار د بحث موضوع وه، چې په مسلمانانو کې انجيل څرنګه توزيع کړای شي.

۲- په (۱۳۲۸) هجري کې له (۱۹۱۰) ميلادي کال سره سم د سکاټلنډ په اډنبره کې د مبشرينو نړيواله غونډه وکړای شوه، چې له ټولې نړۍ څخه يو سل نهه پنځوس (۱۵۹) مسيحيانو ګډون په کې کړی و.

۳- په (۱۳۳۹) هجري کې له (۱۹۱۱) ميلادي کال سره سم د هندوستان په لکنوو کې د تنصيريانو غونډه وکړای شوه، چې سموييل زويمر هم په کې

۱- پاکستان مين مسيحيت: ۴۷۹- ۴۸۱ مخونه.

ګډون کړی و.

د دې غونډې په پای کې په ګډون کوونکو کارډ ووېشلی شو، چې په یو مخ یې لیکلی شوي وو: د (۱۹۱۱) میلادي کال د لکنوو د غونډې یادګار او په بل مخ یې لیکلي وو (ای هغه الله چې اسلامي نړۍ په ورځ کې په عاجزۍ سره پنځه ځلې سجده درته کوي. اسلامي ملتونو ته په مهربانۍ سره نظر وکړه او دوی ته په یسوع مسیح سره نجات الهام کړه.

۴- په (۱۹۱۱) میلادي کال کې په بیروت کې.

۵- په (۱۳۴۳) هجري له (۱۹۲۴) میلادي کال کې غونډه.

۶- په (۱۹۲۸) میلادي کال کې په القدس کې نړیواله غونډه.

۷- په (۱۳۵۴) هجري کې (۱۹۳۵) میلادي کال په القدس کې بله غونډه چې دولس سوه (۱۲۰۰) کسانو ګډون کړی و.

۸- په (۱۳۸۰) هجري کې (۱۹۶۱) میلادي کال کې په القدس کې بله غونډه.

۹- په (۱۹۷۴) میلادي کال کې په سویس کې په لوزان کې د پروتستانیانو غونډه.

۱۰- په (۱۹۷۸) میلادي کال د اکتوبر په (۱۵) د امریکا په کولرادو کې غونډه چې د امریکا د سیمینار په نوم یادېږي او یوسل پنځوس کسانو ګډون په کې کړی وو او د سیمینار د بحث موضوع وه، د مسلمانانو نصراني کول او غونډې د دې کار لپاره یو میلیارد ډالر بودیجه منظوره کړه.

۱۱- په (۱۹۸۱) میلادي کال کې په سویډن کې د نړیوال تنصیر غونډه.

۱۲- د ترکیې په استانبول کې.

۱۳- د مصر په حلوان کې.

۱۴- په لبنان کې.

۱۵- په بغداد کې.

۱۶- په قسطنطنیه کې.
۱۷- په شیکاګو کې.
۱۸- په (۱۹۴۸) میلادي کال کې په هالنډ کې په امستردام کې.
۱۹- په (۱۹۴۲) میلادي کال کې په بلتیمور کې.
۲۰- په (۱۹۵۴) میلادي کال کې د امریکا په ایفانستون کې.
۲۱- په (۱۹٦۱) میلادي کال کې د هند په ډیلي کې.
۲۲- په (۱۹۷۵) میلادي کال کې د اندونیزیا په پلازمېنه جاګارتا کې، په دغه غونډه کې درې زره (۳۰۰۰) کسانو مندوبینو ګډون کړی و.

***

## ځینې نور ذرایع

د تنصیر او تبشیر اسلام دښمنه مسیحي تنظیم په ذکر شویو ذرایعو سربېره یو شمېر نور ذرایع هم لري، چې له هغوی څخه په ګټه اخېستلو د اسلامي امت د تضعیف او بې لارتیا په تکل د خپل نامراده موخې د پوره کولو هاند کوي او هغه ذرایع په لاندې ډول دي:

**مشروط قرض ورکول:**

اسلام دښمنه تنصیري فکري استعمار دا زیار باسي او تل په دې تمه وي، چې کوم مسلمان یا اسلامي واکمن په اقتصادي بحران اخته شي، نو دوی لومړی د بشري همدردۍ په نوم د اقتصادي مرستې ژمنه ورسره کوي او له بحران څخه د ایستلو لپاره خپل چمتووالی ورته څرګندوي او کله چې هغه ډاډه کړي او له بل مسلمان څخه له پور غوښتلو څخه یې منصرف کړي او خپل ځان ته مجبور کړي، نو بیا لومړی شرط دا ورته وړاندې کوي، چې قرض درکوم، خو په دې شرط، چې پخپل هېواد کې به د نصرانیت دعوت ته اجازه ورکوي او ددې څرګند مثال یې صومالیه ده.

له نن څخه پنځلس کلونه دمخه صومالیه یو سوچه اسلامي هېواد و، په سلو کې سل مسلمانان په کې وو، یو مسیحي هم په کې نه وو، مګر کله چې په (۱۹۷۵) میلادي کال کې صومالیه له سخت اقتصادي مشکل سره مخ شو، نو د ایټالیا مسیحي حکومت د صومالي واکمن سیاد بري ته بلنه ورکړه، سیاد بري چې ایټالیه ته په رسمي دوره لاړ او هلته یې له مسیحي حکامو سره د خپل هېواد اقتصادي بحران مسئله مطرح کړه، نو ایټالوي مسیحي حکامو ورته وویل، چې موږ تا ته درې سوه اتیا (۳۸۰) میلیونه ډالر قرض درکوو، په دې شرط چې ته پخپل اسلامي هېواد کې مسیحیانو

ته د مسیحي دعوت اجازه ورکړي.
سیاد بري کله چې د ایټالیا د راډیکال ګوند له زعیم مارکو بانیلا څخه د دومره غټ پور ورکولو خبره واورېده، نو له مارکو بانیلا سره یې وعده وکړه، چې د دومره غټ پور د ورکولو په بدل کې نه یوازې دا چې په صومالیه کې مسیحي دعوت ته اجازه ورکوي؛ بلکې دی به خپله هم په ډېر ویاړ سره د نصرانیت دین قبلولو ته چمتو وي.
هماغه و، چې سیاد بري له صومالیه څخه ایټالیه ته مسلمان تللی و او له ایټالیه څخه صومالیه ته بېرته مسیحي ستون شو او یوازې د خپل ځان په مرتد کولو یې بس والی ونه کړ؛ بلکې خپله ټوله کابینه یې مسیحي کړه او مسیحي دعوتګرانو ته یې دروازې پرانستلې، چې جوپې جوپې صومالیه ته داخل شول او په صومالیه کې یې په فعالیت وکړ.
مسیحانو په صومالي کې د مسیحي مدارسو په جوړولو پیل وکړ، چې سیاد بري به یې پخپله افتتاح کوله او خطابې به یې ارادولې، د سیاد باري د حکومت د عدلیه وزیر په یوه اعلامیه کې امر وکړ، چې له دې وروسته به په صومالیه کې د اسلام د دین تعلیم نه شي کولی، په دیني وعظونو یې په جوماتونو کې او هم د قران کریم په تدریس بندیز ولګاوه، د قران کریم د حفظ ټولې مدرسې یې وتړلې.
سیاد باري د تنصیري د لومړۍ مدرسې د افتتاح کولو په خطابه کې وویل: زه هیله لرم، چې دا مدارس به په صومالیه کې د مسیحي تنصیري مدرسو پیلامه وي.
په داسې حال کې چې په صومالیه کې له پوځي انقلاب څخه دمخه تنصیري فعالیت ممنوع و او نصرانیانو یوه مدرسه هم نه لرله.
د صومالیې د اسلامي مملکت په تاریخ کې په (۱۹۹۰) میلادي کال کې د لومړي ځل لپاره ځوانان د پاپانو په لباس کې میدان ته ووتل او مسلمانانو ته یې تور برېښ ورکړ، چې نیونه پرې ونه کړي.

د صومالي د پلازمېنې موګاديشو راډيو سهار او بېګا د مسيحيت د ترانو خپرول پيل کړل او د عيسی عليه السلام د ميلاد په مناسبت يې جشنونه پيل کړل او په داسې دعوت يې بنديز ولګاوه او د عدليه وزير په دې اړوند دغه لاندې مادې اعلان کړې:

۱- هيڅوک نه شي کولی، چې د صومالي د عدليه وزارت له اجازې پرته په جوماتونو او غونډو کې ويناوې او ديني وعظونه وکړي.

۲- څوک چې د عدليه وزارت له اجازې پرته په وعظ کولو وليدلی شي او يا داسې ديني کتاب ورسره وليدلی شي، چې د دولت له پلوه ممنوع وي، سزا به ورته ورکولی شي.

۳- که چېرې د دولت له پلوه اجازه نامه لرونکي واعظان داسې وعظونه وکړي، چې دولت ته ستونزې پيدا کوي، نو اجازه نامه به ورڅخه اخيستلی کېږي او درنده سزا به ورکولی کېږي.

۴- د عدليه وزارت له اجازې پرته د اسلامي عقيدې ديني کتابونه چاپول او صومالي ته د داسې ديني کتابونو راوړل منعه دي، چې دولت بنديز پرې لګولی دی.

۵- د عدليه وزارت له اجازې پرته هيڅوک په صوماليه کې د قران کريم د زده کړې او تعليم مراکز او دارالحفاظ جوړولی نه شي.

۶- د جوماتونو جوړول او افتتاح د عدليه وزارت له اجازې اخيستلو پرته ممنوع دي.

۷- د صومالي وسله وال ځواک، پوليس او حزبي کمېټې درې واړه مکلف دي، چې پورتنۍ مادې تطبيق کړي.[۱]

د صومالي په لرغوني اسلامي هېواد کې دغه ناخاپي د اسلام له دين څخه اووښتل او هر اړخيز بدلون او په تيتو سترګو او ذلت سره مسيحيت قبلول

---

۱- المجتمع د (۱۹۶۸) کال ۷۷۶ ګڼه.

یوازې د ایټالیه مسیحي حکومت له پلوه صومالي ته د (۳۸۰) میلیون ډالرو مشروط پور ورکولو په سبب وشو.

**سیاسي تهدیدونه:**

د تنصیر مسیحي طاغوتي ګوند د مسلمانانو د نصراني کولو لپاره سیاسي ګواښونه بله لویه ذریعه ده او د دغه طاغوتي ګوند خلک تکل کوي، د اسلامي هېوادونو واکمنان داسې تهدید کړي، چې هغوی ونه شي کولای پخپل هېواد کې په تنصیري دعوت بندیز ولګوي، چې نږدې مثالونه یې د مالیزیا او اندونیزیا دوه اسلامي هېوادونه دي، چې تنصیري مسیحیانو وکولی شول، په دغو دواړو اسلامي هېوادونو کې د خلکو د نصراني کولو لپاره له دغې حربې څخه ګټه واخلي او هغوی د سیاسي تهدیدونو په واسطه دې ته اړ باسي، چې پخپلو اسلامي هېوادونو کې نه یوازې دا چې مسیحي دعوت ته اجازه ورکړي؛ بلکې مسیحیت حق دین وګڼي او پخپلو هېوادونو کې د تنصیر دعوت تضمین هم کړي.

د تنصیر د تنظیم اسلام دښمنو کار کوونکو لومړی د دغو دواړو اسلامي هېوادونو پر واکمنانو دا فشار راووړ، چې پخپلو هېوادونو کې نصرانیت، بودايیزم او نور په رسمیت وپېژني، څو د دوی هېوادونه په دیموکراتو هېوادونو کې وشمېرل شي، چې وکولی شي له دغې لارې څخه هغه کومکونه ترلاسه کړي، چې د پرمختللونکو هېوادونو لپاره تخصیص شوي دي.

د تنصیري ډلې دغه اسلام دښمنه تزویر او موامره په اسلامي اندونیزیا کې کامیابه شوه؛ ځکه چې اوس د اندونیزیا په (۱۳۶۰۰) ټاپوګانو کې د تنصیري مسیحي مشرک تنظیم اوولس (۱۷) زره کلیساوې جوړې کړې دي او پنځلس زره تنصیري دعوت کوونکي یوازې د جاوا په ټاپو «جزیره» کې په فعالیت بوخت دي.

د تنصیري تنظیم مخکښانو داسې پلان جوړ کړی دی، چې په شلو کلونو

کې جاوا او په پنځوسو کلونو کې ټوله اندونیزیا مسیحي وګرځوي، چې تراوسه پورې دولس کلونه يې تېر شوي دي او نور پاتې دي.
الله تعالی دې مسلمانانو ته همت ورکړي، چې په اندونیزیا کې د طاغوت د ګوند دغه پلان شنډ وګرځوي.

**نیشنلېزم ته بلنه:**

د تنصیر دعوت کوونکي کله چې په کوم اسلامي هېواد کې ونه شي کولای چې د خپل محرف انجیل دعوت پلي کړي، نو هلته زیار باسي، چې د هغه هېواد د مختلفو اقوامو او قبیلو ترمنځ لساني او نژادي مسایل او د ملتپالنې داعیه متحرکه کړي، چې وکولی شي د هغو له زړونو څخه په دغه نوم د اسلام مینه وباسي او مخکې له دې څخه چې مسلمانان پر اسلام وویاړي، پر ملیت فخر وکړي، چې په دې توګه د تنصیر ډله په هغه هېواد کې اسلامي حمیت پر ملي او د نیشنلېزم په جاهلي روحیه ننګ او غیرت بدل کړي، اسلام او اسلامي اقدارو او شعایرو ته بې تفاوته شي او هر ملت په دې هاند او تکل کې وي، چې د هېواد پر نورو پرګنو د خپل قوم اوچتوالی ثابت کړي.

په داسې حال کې چې دغه داعیه د اسلام د مقدس دین له روح سره منافي ده او یو نیم زر کلونه دمخه يې غندلې او مسترد کړې ده او ټول مسلمانان يې یو ملت او د یو وجود اعضا ګڼلي دي.

**خپلمنځي شخړې او جنګونه:**

د تنصیري تنظیم د مسلمانانو د نصراني کولو لپاره بله لویه وسیله خپلمنځي شخړې او جګړې دي او دغه وسیله په یو اسلامي هېواد کې هم استعمالوي او د دوه اسلامي هېوادونو ترمنځ يې هم په کار اچوي.

په اسلامي هېواد کې يې داسې په کار اچوي، چې هلته لومړی سیکولر او بې دینه، مادي او د هرې سیاسي تنظیمونه جوړوي او بیا پر هغوی د داسې پاروونکو مسایلو خپرونه او اعلانونه کوي، چې په هغه اسلامي هېواد کې

ديني او مذهبي مسلمان خلک او موجود اسلامي ګوندونه په غوسه شي، چې په نتيجه کې يې يو په بل پسې ستغې سورې وايي، ان تر دې چې خپل منځي قاتلان او جنګ ته خبره ورسېږي او تنصيري تنظيم له دغه حالت څخه په استفاده خپل دعوت مخ پر وړاندې بوځي او د مسلمانو ګوندونو او افرادو پام يې له خپل دعوت څخه اړولی وي.
او د دوه اسلامي هېوادونو ترمنځ په ډيپلوماتيکي او سياسي مسايلو او جغرافيوي موضوعاتو، لکه سرحدات، پر يو بل په ځينې مواردو کې يو پر بل له سياسي قواعدو او اصولو څخه د مخالفت کولو تور لګول او داسې نورو ته لمن وهي او بيا هر يو د هغه بل په خلاف د خپلو تبليغاتي دستګاوو او مراکزو په ذريعه لکه بي بي سي راډيو، امريکا غږ راډيو، المان غږ راډيو، د پکنګ راډيو داسې نورو او هم د اخبارونو په ذريعه يو د بل په شا ټپوي، څو دواړه اسلامي هېوادونه سره پخلا نه شي او يو د بل په خلاف جنګي مورچل ونيسي، وسلې او پيسې دوی ورته رسوي، څو اسلامي نړۍ لا پسې بدمرغه او کمزورې شي.

***

# مرستندویه مؤسسې

(NGOS)

اسلامي امت او ددغه مرحومه امت او حزب الله په خلاف کفري نړۍ او د شیطان ګوند دویم لوی محاذ او ګمراه کوونکې وسیله مرستندویه موسسات دي او دغه شبکې په هغو اسلامي هېوادونو کې په فعالیت کولو ګماري، چې جنګ ځپلي، کاختۍ وهلي او وروسته پاتې دي.

دغه موسسې د بشري مرستو او خدمتونو په پرده کې او د بشري همدردۍ په نوم په اسلامي ملتونو کې کفري او استعماري دعوتونه چلوي او اسلام دښمنه مقاصد ترلاسه کوي.

په افغانستان باندې په (۱۹۷۹) میلادي کال کې له (۱۳۵۸) هجري شمسي کال سره سم په لسګونو دغه غربي کفري موسسې په افغانستان کې په اسلامي ضد فعالیتونو د بشري مرستو په نوم وګمارلی شوې، چې د یهودیت، نصرانیت، استعمار او تغریب، یعنې سیکولرېزم لپاره کار کوونکې ټولې شبکې ور پکې دي او هره یوه موسسه زموږ د افغانستان د مسلمان د نوي نسل د بې لارتیا په تکل پخپلو خپلو ځانګړو اسلوبو او اصولو پر فعالیت کولو ګمارلی شوي دي، چې تراوسه پورې فعالیت کوي، چې په افغانستان کې د دغو کفري مؤسسو سرسري شمېر په لاندې ډول دي:

| انګرېزي نوم | پښتو نوم |
| --- | --- |
| ۱- اکشن کنټري الافام | فعاله ملکي کومکي موسسه |
| ۲- فغان ایګري کلچرل انګیزنګ ایجنسي | افغان کرهڼیزه انجینیري کومکي موسسه |
| ۳- افغان سنټر فار رورل ډیولپمنټ | د افغان د کلیوالي پرمختیا موسسه |
| ۴- افغان ډیولپمنټ ایسوسی ایشن | د افغان د پرمختیا مرکز |
| ۵- افغان جرمن بیسک ایجوکیشن | د افغان جرمن د لومړنیو زده کړو مرکز |
| ٦- افغان جرمن ټیکنکل ټریننګ پروګرام | د افغان جرمن د مسلکي زده کړو پروګرام |
| ۷- افغان انفارمیشن سنټر | افغان اطلاعاتي مرکز |
| ۸- نارویجن چرچ ایډ | د ناروې د کلیساګانو د مرستې مرکز |
| ۹- میډیرا | د ناروې د کلیساګانو د مرستې مرکز |
| ۱۰- نارویجن پراجیکټ افس | د ناروې د مختلفو چارو او د کلیو د پراختیا پروژې دفتر |
| ۱۱- پروګرام کلچرک فرانکو فار افغان | د افغانانو لپاره د ثقافتي مرستو اداره |
| ۱۲- ارفن اینډ رفیوجز ایډ انټرنیشنل | د یتیمانو او پناه ګزینو لپاره د مرستې بین المللي اداره |
| ۱۳- نارویجن افغان کومیټي | له افغانانو سره د ناروې د مرستې |

| | کمېټه |
|---|---|
| ۱۴- میډیسن سان فرنټیر | بې سرحده ډاکتران |
| ۱۵- ای ار سي فیملز ایجوکیشن پروګرام | د ای ار سي د ښځو د زده کړو پروګرام |
| ۱۶- جاپانیز انټرنیشنل ویلفیر فاونډیشن | د جاپان د بین المللي مرستو مرکز |
| ۱۷- افغان وومین ریسورسز سنټر | د افغان مېرمنو ته د وسایلو برابرولو مرکز |
| ۱۸- کوارډینیتس فار افغان ریلیف | افغانانو ته د ګټو رسولو مرکز |
| ۱۹- جرمن افغان فاونډیشن | د جرمن افغان اتحادیه |
| ۲۰- ایمان سانتفیک افس | د ایمان ساینسي دفتر |
| ۲۱- بریټش کونسل | بریتانوي کتابتون |
| ۲۲- کلچرل اینډ ریلیف فاونډیشن | د ثقافتي او مرستو اداره |
| ۲۳- اکبر کوارډینیشن افس فار افغان ریلیف | د اکبر د مرستو د انسجام اداره |
| ۲۴- اکبر هیلت ایجوکیشن ریسورسز | د اکبر د صحي زده کړو موسسه |
| ۲۵- انټرنیشنل فیډریشن اف ریډکراس | د سور صلیب بین المللي اتحادیه |
| ۲۶- ایم ایس ایف هیلټ نیټ | د بې سرحده طبیبانو مرستندویه مؤسسه |
| ۲۷- ملټي اکټیویټي رورل | د کثیر المقاصدو او د کلیو د |

| ایکریډټګ فاونډېشن | پراختیا مؤسسه |
|---|---|
| ۲۸- ایټالین کواپریشن فار ډیولپمنټ کنترول اف کمیټي | د ایټالیا د نړي رنځ د مخنیوي لپاره د مرستې اداره |
| ۲۹- هیلپ دی افغان فاونډېشن | د جرمني لخوا له افغانانو سره مرستې |
| ۳۰- هیلپنګ دی افغان فارمرز | د افغانستان د کروندګرو سره مرستې |
| ۳۱- هیومن کنسرن انټرنیشنل | د بشري مرستو بین المللي اداره |
| ۳۲- جاپان افغان میډیکل سرویسز | د جاپان افغان طبي مرستې |
| ۳۳- لیپراسي کنټرول ارګنایزیشن | د اندام خوړوونکي «جذام» ناروغۍ د مخنیوي مؤسسه |
| ۳۴- میډیکل ایمرجنسي سروسز | د بېړنیو طبي مرستو رسولو خدمات |
| ۳۵- افغان ایډ | د افغان کومکي مرکز |
| ۳۶- کوه نور فاونډېشن | د کوه نور د مرستو اداره |
| ۳۷- ای ار سي چلډرن ایجوکیشن پروګرام | د ای ار سي د کوچنیانو د زده کړې پروګرام |
| ۳۸- افغان ریکنسټریکشن کنسلټنټ | د افغانستان د بیا ودانولو مرکز |
| ۳۹- انټرنیشنل کمیټي اف ریډکراس | بین المللي سور صلیب |
| ۴۰- اکبر هیلټ ایجوکیشن ریسورسز | د اکبر د صحي زده کړو مرکز |

| ۴۱- هیلپ جرمني | د جرمن د مرستو مؤسسه |
| --- | --- |
| ۴۲- انټرنیشنل اسټنس میشن | د بین المللي مرستو اداره |
| ۴۳- وچ کــــومیټي فـــار افغانستان | د جرمن د افغان مرستندویه کمیټه |
| ۴۴- ایم ایس ایف هیلت نیټ | د بې سرحده طبیبانو مرستې |
| ۴۵- افغان سټډي سنټر | د افغانستان مطالعاتي مرکز |
| ۴۶- یورپین یونین | اروپايي اتحادیه |
| ۴۷- جرمن ایګرو ایکشن | د جرمن د کرهنې پروسه |
| ۴۸- دی کنسټریکشــن اتــارټي فار افغان | د افغانستان د بیا ودانولو موسسه |

دا او داسې نورې د پري نصراني او یهودي مرستندویه ادارې په افغانستان کې کار کوي، چې تر اوسه پورې یې یو لک او پنځه ویشت زره افغانان مسیحیان کړي دي، چې په دوی کې نر، ښځې او کوچنیان ټول شامل دي.

***

# کمونېزم

(Comuwnesam)

اسلام دښمنه مسیحي او یهودي داړه مارانو د اسلام د مقدس دین او اسلامي امت په خلاف او د مسلمانانو د بې لارتیا په تکل بله لویه وسیله د کمونېزم وحشي او بهیمي مسلک منځته راوړی دی او د خپلو روزل شویو ګوډاګیانو او لاس پوڅیو په ذریعه یې په اسلامي هېوادونو کې د اسلامي امت د نسل د ګمراهۍ په هڅه په کار اچولی دی، چې په تېره یوه پېړۍ کې یې د اسلامي امت ژوند ژواک، امن، سوکالي او د اسلام د مقدس دین تلپاتې نظام له ګواښ سره مخامخ کړی دی او دا هاند یې کړی دی، چې له بشریت څخه د دغه بشر دښمنه مسلک په وسیله که وکولی شي د اسلامي ایډیالوژۍ لمن غونډه کړي او د تل لپاره یې د حاکمیت تغر له نړۍ څخه ونغاړي، مګر عالم، غالب او قدیر الله تعالی دوی په دې موخه کې تورمخي او نامراده کړي دي او د خپل پنځیز دین اسلام حفاظت او ژغورنه یې ورڅخه کړې ده او د کمونېزم طاغوتي مسلک یې له خپلو شومو اهدافو سره په شا تمبولی دی او ددغه غیر انساني اندود، هلې ځلې یې له خاورو سره خاورې کړي دي او د یهودي او مسیحي استعمار ګرانو دغه وسیله یې هم د هغوی د نورو اسلام دښمنو وسایلو په څېر په اسلامي امت کې د خپلو ننګیالیو مسلمانو بنده ګانو په اتلوالو او حماسي قیامونو سره ځای پر ځای خنثی کړې ده او ددغه شیطاني مسلک کرغېړنه اصلي څېره یې د روڼ اندیو او څارو مومنو بنده ګانو په علمي جهاد سره یې اسلامي او بشري نړۍ ته ثابته کړې ده، د بشر دوستۍ او بشرپالۍ درواغجن ماسک یې د دغه سوچه مادي مسلک له تورمخیو وحشي مخکښانو له مخونو څخه لرې کړی او بشریت ته یې هغوی پخپله اصلي بڼه کې معرفي کړي دي.

**تاریخ:**

په بشري نړۍ کې په منظم ډول د کمونېزم منځته راتلل دوه بېلا بېل تاریخونه لري؛ ځکه چې دغه انسان دښمنه نظریه هم دوه پړاوونه لري، چې لومړی پړاو یې د نظري کمونېزم دی او دویم پړاو یې د عملي کمونېزم دی، چې په هغه کې کمونېزم د یو حاکم نظام په توګه د ځمکې پرمخ ښکاره شوی او حکومت یې کړی دی، مګر په عمومي توګه هغه تاریخ ته اعتبار ورکولی شوی دی، چې په نظري توګه یې تبارز کړی دی، یعنې هغه تاریخ چې دغه ناولي مسلک ته اصول په کې جوړ او اعلان کړای شوي دي او په اصولي توګه ښکاره شوی دی (۱۸۶۸) میلادي کال دی، یعنې په اتلس سوه اته شپېتم مسیحي کال د کمونېزم لومړنۍ اصولنامه چاپ او خپره کړای شوه، چې د کمونست ګوند د مانیفسټ، یعنې منشور او اساسنامې په نوم نومولی شوي، چې د کمونېزم په تاریخ کې له ټولو څخه زیات اغېزمن او زیات مهم دی.[1]

**بنسټ کېښودونکی:**

د موجوده کمونېزم بنسټ کېښودونکی کارل مارکس دی.

کارل مارکس (KARL MARX) په (۱۸۱۸) عیسوي کال کې د مۍ د میاشتې په پنځمه د لوېدیز المان په ټرایر نومې ښار کې زېږېدلی و، د پلار نوم یې هاین رک مارکس و، چې د وکالت دنده یې لرله، د کارل مارکس پلار یهودي و، مګر د یهودیانو له یو جوړ کړي پلان سره سم په ظاهره کې هغه یهودیت پرېښود او نصراني شو، چې په دې توګه د هغه ټول کهول نصراني معرفي کړای شو، مګر په حقیقت کې پر یهودیت ټینګ ولاړ و.

کارل مارکس لومړنۍ او متوسطه بکلوریا پورې زده کړه پخپل ښار ټرایر کې کړې وه او په (۱۸۳۵) میلادي کې د بون پوهنتون ته د [illegible]رو زده کړو

---

۱- فرهنګ سیاسي: ۱۵۰ مخ، داریوش اشوري.

لپاره لاړ.
په (۱۸۳۶) کې له بون څخه لاړ او د برلین په پوهنتون کې داخل شو او په برلین پوهنتون کې د فلسفې استاذ (Hegal) هیګل و او نوموړی فیلسوف له تولو مغیباتو څخه منکر و او ویل یې هر هغه څه چې په حواسو درک کولی شي او موجود دی، همدغه حقیقت دی او بس.
پر کارل مارکس د خپل استاذ هیګل نظریاتو په زړه پورې اغېزه وکړه او د هغه نظریات یې قبول کړل.
په هیګل سربېره د فیخته (Fichte) چې د برلین پوهنتون څخه د دهریت د دعوت له امله شړلی شوی و، دغه راز د نیچه (Nietzshe) المانی فیلسوف چې ویل به یې الله تعالی وفات شوی دی او خپل ځای یې ساینس ته پرېښودلی دی. (نعوذ بالله)
او د کانټ (Kant) الماني فیلسوف ملحدانه نظریات هم مطالعه کړل، چې په نتیجه کې یې کارل مارکس د دهریت په کنده کې وغورځولی شو او پلار یې دومره پرې خوښ و، چې په ویاړ به یې ویل: کار مارکس زما په نهه اولادونو کې هغه څوک دی، چې زما ارمان یې ترسره کړ.
کارل مارکس د خپل استاذ هیګل د ماتریالېزم نظریه چې ( Thesis) (Synthsis)) دی او د کانټ د ضدینو د اجتماع (Antimonies) او داسې نور د زړه له کومې ومنل.
سربېره په پورتنیو دهري فلاسفه و، د یونان د دهري فلاسفه وو لکه لایي کرکس متوفی (۴۸۴) قبل مسیح، ډیموکریټ متوفی (۳۷۰) قبل مسیح زینوفون متوفی (۴۳۰) قبل مسیح، دیو جانس کلبي متوفی (۴۱۲) قبل مسیح، د ایران د مزدک مقتول (۵۲۸) مسیحي فلسفه ژوره مطالعه کړه او په (۱۸۴۱) میلادي کې یې په فلسفه کې دکتورا ترلاسه کړه او بون ته لاړ او د ژورنالېزم دنده یې پیل کړه، مګر له المان څخه د خپلو انقلابي مضامینو په توسه وشړلی شو او له خپلې مېرمن جیني سره چې نوې یې

واده ورسره کړې و، پاریس ته لاړ او هلته یې د کمونېزم د ګوند لپاره کار پیل کړ، په پاریس کې د خپل هېواد المان زلمی انقلابي ځوان فاردریک انګلز متولد (۱۸۲۰) میلادي سره یو ځای شو او دواړه په ګډه په یو وخت کې دوه تحریکونه چلول، چې یو یې د یهودیانو د ازادۍ او سیاسي حقوقو تحریک وو او دویم د کمونېزم تحریک و، چې دواړو وکولی شو په فرانسه کې هم د کمونېزم د تحریک څانګه پرانیزي او هلته یې د (Vorwats) په نوم مجله پیل کړه، چې د هغې له امله په (۱۸۴۵) میلادي کې له پاریس څخه هم وشړلی شو او کارل مارکس له خپلې مېرمن او لور سره له فرانسې څخه بروسیلز (بلجیم) ته لاړ او د (۱۸۴۵) کال د فروري په درېیمه ورځ د هغه هېواد د کورنیو چارو وزیر وغوښت او ورته ویې ویل، چې اخبارونو ته به د کمونېزم په اړوند څه نه لیکي او نه به دعوت کوي.

کارل مارکس د بلجیمي کمونستانو په ذریعه خپل تحریک ته ادامه ورکړه، څو موده وروسته انګلز هم پسې ورغی او په بریتانیه کې یې د تحریک په باره کې رپوټ ورته وړاندې کړ او بیا په (۱۸۴۵) کال د جولای په میاشت کې لندن ته دواړه لاړل او بیا په (۱۸۴۶) میلادي کال کې مارکس او انګلز د نړیوالې پرولیتاري ګوند په جوړولو کار پیل کړ او په (۱۸۴۷) میلادي کال کې د نوامبر په (۲۹) په لندن کې کمونست لیګ په نوم غونډه جوړه کړای شوه، چې لس ورځې جاري وه او په دغه اجتماع کې د روس، المان، سویزرلنډ، فرانسې، بلجیم، پولینډ او بریتانیه کمونستو مخکښانو ګډون په کې کړی و.

کارل مارکس او انګلز په دغې غونډې د لومړنۍ نړیوالې پرولیتاري اجتماع نوم کېښود او دواړو انقلابي او پارونکي تقریرونه ورته وکړل.

په همدغه کال کې دواړو د کمونېزم اصولنامه تیاره کړه، چې بیا په (۱۸۴۸) میلادي کال کې په الماني، فرانسوي، ایټالوي، روسي، هسپانوي او انګرېزي ژبو په زرګونو نسخې چاپ او توزیع کړای شوې، چې

مصارف یې د یهودو ماسوني ګوند د تنصیر ګوند وکړل.
د کمونېزم د بریالیتوب او حاکمیت په منلو ترړو کې کارل مارکس د (۱۸۸۳) میلادي کال د مارچ په (۱۴) په لندن کې او انګلز د (۱۸۹۵) عېسوي کال د اګست په پنځمه د ستوني په سرطان مړ شو او د هغه له وصیت سره سم یې مړی وسوځولی شو او ایره یې ایستې بورن ته نژدې په سمندر کې لاهو کړی شوه او دواړه ارماني له دنیا لاړل.[1]

***

۱- موسي سي مارکس تک: ۴۹۰ - ۴۹۶مخونه، سبط حسن.

# سره خونړي انقلابونه

کارل مارکس یهودي خو په لندن کې مړ شو، مګر د کمونېزم کوم اور چې ده بل کړی و، د هغه لمبې او شغلې یوازې او یوازې په اسلامي نړۍ کې اوچتې شوې او په میلیونونو مسلمانان یې د مارکس له مرګ څخه شلوېښت کلونه وروسته وسوځول، چې سکروټې یې د مارکس د کمونستو ایجنټانو په بڼه کې اوس هم موجودې دي؛ ځکه چې ماسونیت او تنصیر د کمونېزم طاغوتي مفکوره یوازې د اسلامي امت د تباهۍ لپاره جوړه کړې شوې ده او د کمونېزم د سرو خونړیو انقلابونو پیلامه له روس څخه د لینن د کمونستي قیام چې په (۱۹۱۷) عېسوي کال کې یې کړی و وکړای شوه.

د لینن اصلي نوم (Vladimir Ilyich Ulyanovsk) ولادیمیر الیچ الیانوسک وو.

لینن د هغه فرضي او مستعار نوم دی، چې په المان کې یې په (۱۹۰۸) عېسوي کال کې یې د تبعید په حالت کې پر ځان کېښود او پخپلو هغو کمونستي کتابونو او رسالو به یې لیکه، چې روس ته به یې انقلابي بالشویکانو ته لېږلي او لینا د هغه سیند نوم دی، چې په سایبریا کې بهېږي.

لینن په (۱۸۷۰) عیسوي کال کې د اپریل په (۲۲) د روس په سیمبرسک «اولیانوفسک» ښار کې زېږېدلی و، د پلار نوم یې ایلیانو کولای وچ اولیانوف وو او نیکه یې نیزني یهودي و، چې د روس د نوو ګورود په ولایت کې د یو نواب مریی «غلام» وو.

د لینن د مور نوم ماریا الیکساندروونا و، په پنځه کلنۍ کې یې زده کړه پیل کړه، پلار یې معلم و، تر پنځلس کلنۍ پورې تر دولسم ټولګي زده کړه بشپړه کړه، په (۱۸۸٦) عېسوي کال کې یې پلار مړ شو، په (۱۸۸۷) عېسوي کال کې یې د قازان په پوهنتون کې د قانونو او حقوقو په پوهنځي

کې داخل شو او هلته د کمونستانو، مارکستانو په ګوند کې شامل شو، مګر تزاري حکومت هغه د کمونستي فعالیتونو په وجه سایبریا ته تبعید کړ او هلته یې ټینګه څارنه کوله.
لینن تر شپاړس کلنۍ پورې سوچه کمونست ګرځېدلی و، ځکه چې د هغه مشر ورور الیکساندر کمونست و او خپل ټول ورونه او خویندې یې کمونستان ګرځولي وو او د مارکسېزم ګروهمن وو.(۱)
لینن په (۱۹۰۳) عیسوي کال کې لندن ته لاړ او هلته یې د مارکسیزم په نړیواله غونډه کې ګډون وکړ او له لندن څخه روس ته په بېرته ستنېدو یې په همدغه کال کې د کمونستانو د بلشویک ګوند جوړ کړ، چې د روس د اصلاح خوښوونکي منشویک کارګري ګوند په مقابل کې و.
په (۱۹۰۵) عېسوي کال کې لینن بیا د روس د تزاري حکومت له نیولو څخه المان ته لاړ او د لومړي نړیوال جنګ په موده کې په سویزرلینډ کې وو.
په (۱۹۱۷) عېسوي کال کې د یهودیانو ماسوني ګوند په روس کې د کمونستي سور انقلاب امر ورته وکړ، چې لینن هم په روس کې د خپل ګوند غړي خبر کړل او امر یې ورته وکړ، چې په ټاکلي تاریخ د روس په پلازمېنه پیټرسبرګ «پیټروګراد-لینن ګراد» کې پاڅون وکړي.
هماغه و، چې په (۱۹۱۷) عېسوي کال کې د اکتوبر په (۲۵) نېټه په روس کې کمونستي انقلاب وکړای شو او د روس شاهي محل سرما ونیولی شو او وروستی تزاري حاکم د خپل ټول کهول د غړو په ګډون ووژلی شو او بالشویکانو په ټول روس د غیر بالشویکي خلکو په قتلان پیل وکړ او د وینو ویالې یې وبهولې.

۱- لینن او د هغه انقلاب: ۱۳ مخ.

## په کمونستي انقلاب کې د یهودیانو مرسته

په روس کې د کمونست انقلاب په بریالیتوب کې یهودیانو په زړه پورې مرسته کړې وه؛ ځکه چې په حقیقت کې دغه اسلام او بشر دښمنه اووښتون د همدوی وو او لینن، بیا وروسته ستالین او ماو په چین کې او مارشال تیتو د بالقان په اسلامي هېوادونو کې د هغو پروتوکولونو د پلي کولو هاند وکړ؛ بلکې تطبیق یې کړل، چې یهودي مشرانو په (۱۸۲۹) عیسوي کال کې په روس کې تدوین او جوړ کړي و او بیا کارل مارکس ته ورکړای شو او هغه د کمونېزم د منشور په بڼه کې چاپ او د نړۍ په ټولو ژبو کې، د کانټ، هیګل، نیچه، دورکائیم، فیورباخ، ډیموکریټ، دیوجانس کلبي او مزدک له نظریاتو سره ګډ خپاره کړل.

له همدې کبله یهودیانو لینن ته د انقلاب لپاره لومړی قسط درې میلیونه ډالر ورکړل او دغه مبلغ د یهودیانو د پټ مجلس د مشر ډیزرائیلي په امر د یهودیانو مالي موسسې شیف د کوهن لوب بانک په ذریعه اداء کړی وو او له دې ځخه دمخه هم هغوی په روس کې د نیکولای په خلاف د قیامونو لپاره د روس د بهرنیو چارو یهودي وزیر کیونسکي توزیع کول.

دغه راز کله چې په (۱۸۹۵) عیسوي کال کې د روسي پاچا دویم نیکولای ځخه په روسیه کې د یهودیانو دیني، فرهنګي او حقوقي ازادي اعلان کړای شوې وه، یهودیانو په ازادانه توګه فعالیت کاوه او یهودو د ماسوني ګوند نامتو غړی چې برونستین نومېده او بیا په تروتسکي سره مشهور شو، په (۱۹۰۵) عیسوي کال کې په روسیه کې د ماسونیت له پلوه د روس د امپراتور په خلاف د ټولو تحریکونو مشري ورته سپارل شوې وه او د لینن په روزنه کې دده لوی لاس و او بیا کله چې په روسیه کې کمونېزم راغی، نو تروتسکي د کمونېزم د ډوما، کنګرې مهم غړی و.

یهودیانو سربېره په مالي مرستې په روس کې د کمونېزم د انقلاب د

کامیابۍ لپاره درې سوه یهودي ښکلي انجونې هم لینن ته حواله کړې وې.[۱]

کمونېزم د فکري استعمار له ټولو څخه ناوړه وسیله د دین او اسلامي امت په خلاف؛ بلکې د بشریت لپاره له ټولو څخه ناوړه طاغوتي ذریعه ده؛ ځکه چې ددغه مسلک په قاموس کې انسان هیڅ ارزښت نه لري، لکه چې د عملي کمونېزم بنسټ کېښودونکي کمونستانو ته په یو پیغام کې ویلي دي:

که چېرې ټول بشریت په څلورو برخو ووېشل شي او بیا پر ټوله نړۍ د کمونېزم د بریالیتوب او حاکمیت په خاطر درې برخې انسانان ووژلی شي هم، هیڅ پروا نه لري، د کمونېزم لپاره د یوې برخې انسانانو ژوندي پاتې کېدل بسوالی کوي، چې کمونست وګرځېږي.[۲]

د لینن پورتنۍ خبره یوازې شعار او یوازې اعلان نه و؛ بلکې په عملي ډګر کې یې هم پخپله ثابته کړه او هم د هغه خلفو او په اسلامي هېوادونو کې سیمه ییزو کمونستانو ثابته کړه او د کمونېزم د بشریت دښمنه شیطاني نظام او مسلک د حاکمیت په خاطر په میلیونونو انسانان په ډله ییزه توګه او په انفرادي توګه له منځه یوړل، چې په وژل شویو کې ماشومانو زاړه، ځوانان، ښځې، نارینه، کارګران، مزدوران، ملي او نظامي مامورین، متعلمین، محصلین، استاذان، بېوزلي، شتمن، عوام، خواص، لنډه دا چې د هرې طبقې وګړي په کې شامل و، د لینن مارکسېزم، ماویزم مارکسېزم په قاموس کې معافي، زړه سوی او بشر دوستي بېخي وجود نه لري او که کوم کمونېزم ډېره لږه عاطفه ولري، د کمونستانو په نزد هغه خو نه کامریډ دی او نه کمونست دی.

---

۱- نقش یهود در پیدایش کمونېزم: ۲۴-۳۳ مخونه.

۲- الموسوعة المیسرة في الادیان: ۳۱۱ مخ.

کمونست د لینن په تعریف:

بې رحمه، وینه زبېښونکی، بې عاطفي او نه معاف کوونکی د انسان په بڼه کې لېوه، چې دا دی د نمونې په توګه زه دلته ځینې هغه هېوادونه ذکر کوم، چې کمونستانو د خپل مخکښ لینن په وصیت د عمل کولو په نتیجه کې په انساني ژوند او وینې لوبې کړې دي او کمونېزم ځپلي هېوادونه یې انساني مسلخونه او مذبحونو نه ګرځولي دي:

| د هېواد نوم او کال | وژلي شوي | بندي شوي | مهاجر شوي |
|---|---|---|---|
| د مرکزي اسیا هېوادونه ۱۹۱۷- ۱۹۶۰م | درې میلونه | ۱/۵ میلیون یا ۸ لکه | ۱ میلیون ۵۰۰ لکه |
| البانیه ۱۹۴۶- ۱۹۶۰ | ۳۰ زره | ۳۰ زره | ۵ زره |
| چیني ترکستان ۱۹۴۹- ۱۹۶۷ | یو میلیون | ۲ زره | ۵۰ زره |
| یوګوسلاویا ۱۹۴۴- ۱۹۶۰ | ۴۰ زره | ۳ زره | ۴ زره |
| رومانیه ۱۹۴۷ - ۱۹۶۰ | ۵ زره | ۲ زره | ۳ زره |
| لهستان ۱۹۴۸- ۱۹۶۰ | ۷ زره | ۶ زره | ۴ زره |
| چکسلواکیه ۱۹۴۸- ۱۹۶۹ | ۳ زره | ۸ زره | ۳ زره |
| هنګري ۱۹۵۰- ۱۹۶۰ | ۵زره | ۸۰۰ | ۳ زره |
| کیوبا ۱۹۵۹- ۱۹۶۴ | ۱۰ زره | ۷ زره | ۲ زره |

| عربي هېوادونه ۱۹۵۴ - ۱۹۶۹ | ۱/۵ یو میلیون | ۹۵ زره | ۱۲ زره |
|---|---|---|---|
| افریقا ۱۹۵۶ - ۱۹۶۷ | ۱۰ زره | ۳۰ زره | ۵ زره |
| اندونیزیا او برما ۱۹۴۵ - ۱۹۶۹ | ۵ زره | ۹۵ پنځه زره | ۴ زره |
| افغانستان ۱۹۷۸ - ۱۹۹۲ | یو میلیون اته سوه زره | ۱۵۰ زره | ۵ میلونه[۱] |

**یادونه:**

دغه پورتنی شمېر د هغو مقتولینو دی، چې د کمونستو واکمنانو له پلوه په جنګونو کې وژل شوي دي او هغه مقتولین په کې شمېرلی شوي نه دي، چې په مختلفو پېښو کې وژلی شوي دي، لکه په ماینونو په سیندونو کې ډوب کړای شوي او د تېښتې په حالت کې لاهوي شوي، لکه چې په (۱۹۷۹) عېسوي کال کې د افغانستان د کونړ په ولایت کې پنځه زره وګړي، چې زیاتره یې ښځې وې، د کونړ په سین کې لاهو کړای شوي وو، دغه راز هغه وګړي، چې د هجرت په دوران کې له غرونو څخه رغړېدلي دي، یا د سړو له امله هلاک شوي دي او داسې نور، یا هغه علما، استاذان او محصلین چې له انقلاب څخه دمخه ترور کړای شوي دي او یا سردار داود په مشرۍ کې د پرچمیانو له پلوه اعدام او شهیدان کړای شوي دي.

د ثور له کودتا څخه وروسته د افغانستان علماء، منورین، روحانیون او سپین روبي چې شهیدان کړی شوي دي، په انفرادي او ډله ایزه توګه مجموعي شمېر یې (۱۲۵۹۹۴) ښودلی شوی دی.[۲]

---

۱- تاکتیک های متنوع کمونېزم: ۸۹ - ۹۰ مخونه.

۲- د روسانو د تېري بېلګې: ۲۱۱ مخ.

روسي کمونستو يرغلګرو او داخلي کمونستانو په افغانستان کې په ځوارلس کلن خونړي جنګ کې د يهوديانو د ماسونيت ګوند له امر سره سم (۲۲۰۰۰) لويو کليو له جملې څخه (۱۵۰۰۰) کلي بېخي ويجاړ او په کنډوالو بدل کړل او (۱۵۰۰۰) داسې کلي دي، چې د هستوګنې وړ نه دي او له (۴۸۰) لويو ښارونو او کوچنيو بازارونو څخه يو هم داسې نه دی، چې د روسي الوتکو او راکټونو څخه روغ پاتې شوی وي[1]

***

1 - پيمان جينيوا: ۴۰ مخ، پوهاند علمي

## اهداف

د یهودي ماسونیت د دغه نا مشروع بچي کمونېزم د بشریت او بیا په خاصه توګه د اسلام په باره کې پخپل پاڅون، حرکت او انقلاب کولو سره دغه لاندې کرغېړن، ناولي بشر دښمنه اهداف او مقاصد لري:

**الف: د دین او دیانت ختمول:**

لکه چې یهودي ماسونیت پخپل څوارلسم پروتوکول کې په دې اړوند ویلي دي:

«موږ به په بشري نړۍ کې دیني عقیده له جرړې څخه باسو او په ټولو لویو هېوادونو کې به د خپلو ګومارل شویو او روزل شویو لیکوالانو په ذریعه د دین په باره کې به د خپلو دین دښمنو مطالبو په تزریق کولو سره مسموم کوو» او بیا یې پخپل شپاړسم پروتوکول کې لیکلي دي:

موږ به ددین د له منځه وړلو لپاره علماء خلکو ته د مرتجعینو او مفت خورو په اوصافو معرفي کوو، څو په دې وسیله وکولی شو، له دغه یوائیني لوی خنډ څخه نجات ومومو، چې زموږ د پورتني هدف په لاره کې راته ولاړ دی او ترڅو چې یهودیان وي، علماء به بېوزله، بېچاره او بدبخته ژوندون کوي.[1]

د یهودیانو د همدغه مقصد د ترلاسه کولو لپاره د کمونېزم مفکوره په اسلامي نړۍ کې د کور، کالي، ډوډۍ، مساوات، ازادي د زړه وړونکو شعارونو په بدرګه په کې پلي کړې ده او مزدوران یې هاند کوي، چې د ماسونیت دغه ناولی هدف پوره کړي، دا ځکه چې د یهودیانو د کامیابۍ په لاره کې یوازینی خنډ د اسلام مقدس دین دی.

کمونستان چې په هر اسلامي هېواد کې بریالي شوي دي او حاکمیت یې

---

۱- الشیوعیة ولیدة الصهونیة/۴۲، شیخ عبدالغفور عطار.

ترلاسه کړي د یو نو له هرڅه نه لومړی یې د یهودي ماسونیت د دغه هدف د ترسره کولو په تکل د دین په ختمولو برید کړی دی، په داسې ډول چې د دین د بقا او پاتې کېدو، څلور واړه ستنې یې په لاندې ترتیب سره نړولي دي:

**۱- د علماوو قتلان:**

د ماسونیت کمونستانو غلامانو د اسلامي امت علماء د خپلې برېا په پیل کې قتلوي، څو له یو پلوه د دین د بقا او دعوت دغه اساسي وسیله ختمه شي او دوی ته لار هواره شي، په همدې وجه په هغو هېوادونو کې چې کمونېزم حاکم شوی دی، علماء یې وژلي دي، چې شمېر یې په لاندې ډول دی:

په روسي ترکستان کې: په مجموعي توګه له (۱۹۱۸) عېسوي کال څخه تر (۱۹۴۰) عېسوي کال پورې پنځوس زره علماء.

په چیني ترکستان کې: په مجموعي توګه له (۱۹۴۹) عېسوي کال څخه تر (۱۹۶۷) عېسوي کال پورې اووه زره پنځه دېرش علماء.

په البانیه کې: له (۱۹۴۶) عېسوي کال څخه تر (۱۹۶۰) عېسوي کال پورې اووه سوه نهه څلوېښت علماء.

په عربي نړۍ کې: له (۱۹۵۴) عېسوي کال څخه تر (۱۹۶۹) عېسوي کال پورې په مجموعي توګه یو نیم زر علماء.

په اندونیزیا او برما کې: له (۱۹۴۵) عېسوي کال څخه تر (۱۹۶۹) عېسوي کال پورې په مجموعي توګه درې نیم سوه علماء.

په افریقا کې: له (۱۹۵۶) عېسوي کال څخه تر (۱۹۶۹) عېسوي کال پورې په مجموعي توګه نهه سوه علماء.

په افغانستان کې: له (۱۹۷۸) عېسوي کال څخه تر (۱۹۹۲) عېسوي کال پورې دوه نیم سوه علماء، چې د یو څو نامتو علماوو نمونه د بېلګې په توګه وړاندې کېږي:

| نوم | ولايت | | دنده |
|---|---|---|---|
| ابراهيم خان مجددي | کابل | شهيد | د تصوف مرشد |
| مولوي شيخ الحديث محمد ګل خان | لوګر، کلنګار | شهيد | نامتو مدرس |
| مولوي عبدالرب احدي | وردګ | شهيد | استاذ |
| مولوي منهاج الدين ګهيځ | کندز خان اباد | شهيد | ژورناليست د ګهيځ اخبار |
| مولوي محمد ابراهيم هميم کاکړ | ننګرهار بهسود | شهيد | په نجم المدارس کې استاذ |
| مولوي حبيب الرحمن | لغمان | شهيد | استاذ |
| مولوي محمد ملتان عمرخېل | لوګر | شهيد | مدرس او خطيب |
| مولوي محمد هارون محقق | کندز | شهيد | په تخارستان کې استاذ |
| مولوي محمد امان (خان مولوي) | کاپيسا تګاب | شهيد | د جمعية العلماء غړی |
| مولوي محمد طاهر خطيبي | لغمان | شهيد | خطيب او مدرس |
| مولوي عبدالله (ګل اخندزاده) | لغمان | شهيد | خطيب او مدرس |
| مولوي عبدالرب | کندهار | شهيد | د تبليغاتو ولايتي رئيس |
| مولوي محمد سلطان | پکتيا، خوست | شهيد | د عربي دارالعلوم استاذ |

| مولوي سید محي الدین علوي | ننګرهار | شهید | د نجم المدارس مدیر او استاذ |
|---|---|---|---|

او نور داسې نامتو علماء، چې د افغانستان په مختلفو ولایتونو کې کمونستانو شهیدان کړل.

**۲- جوماتونه:**

د اسلام د مقدس دین دویمه ستن جوماتونه دي، چې د الله تعالی عبادت په کې کېږي.

د مومنانو روح په کې مسروره وي، د الله تعالی ذکر او د قران کریم تلاوت او تعلیم په کې کولی شي او د اسلام له مهمو شعایرو څخه دي او د نبوي قضایاوو او شرعي پرېکړو لومړی مرکز دی.

له همدې کبله کمونستان، چې په هر هېواد کې په سیاسي ډګر کې کامیاب شوي او سیاسي واک یې ترلاسه کړی دی، نو د علماوو له قتل کولو، بندي کولو، تعذیب او شړلو څخه وروسته یې له یهودي ماسوني پلانونو سره سم د اسلام په دغه دویمه ستن د نړولو بندولو، په ګودامونو، تیاترونو او سینماګانو د بدلولو یرغل کړی دی، چې بېلګه یې د مرکزي اسیا شپږ اسلامي هېوادونه، ازبکستان، تاجکستان، ترکمنستان، قرغیزستان، قزاقستان، اذربایجان دی.

کله چې روسي کمونستانو دغه هېوادونه پخپله ماسوني ولکه ونیول، نو په مجموعي توګه یې له (۱۹۱۸) عیسوي کال څخه تر (۱۹۴۱) عیسوي کال پورې څوارلس زره جوماتونه ونړول او یوازې په اذربایجان کې یې له (۱۹۲۱) عیسوي کال څخه تر (۱۹۲۷) عیسوي کال پورې د هغه هېواد مزدور کمونست مشر مصطفی کولیف یو زر نهه سوه درویشت (۱۹۲۳) جوماتونه ونړول او چې کوم ورڅخه پاتې شول، هغه یې د اسونو طبیلې،

موزیمونه، تیاترونه، شرابخانې، ګوداMونه او سینماګانې وګرځولې.[۱]
او دلته دا خبره د یادونې وړ ده، چې د لینن په لومړی کابینه کې نهه کسان یهودیان و، چې نومونه یې تروتسکي، زینوفیف، اوریتسکي، فلودارسکي، کامینیف، سفیردلوف، ستیکلوف، لوري، روبنفلیکات او پخپله د لینن مور ماریا الکساندروونا هم یهودي وه او دغه راز د لینن مېرمن نادیژداکروپسکایا هم یهودي وه، دغه کابینه په (۱۹۱۸) عېسوي کال کې جوړه کړای شوې وه او بیا کله چې په (۱۹۳۶) عېسوي کال ستالین خپله کابینه له (۵۹) کسانو څخه جوړه کړه، شپږ پنځوس غړي یې یهودیان وو او پاتې درې کسان نور د ستالین په ګډون د هغوی ښځې یهودیانې وې.[۲]
او د یهودیانو اسلام دښمني خو د لمر په شان هر چاته څرګنده ده.
دغه راز په چین کې ماوو هم په پنځو اسلامي هېوادونو کې له جوماتونو سره او مارشال تیتو د بالقان په اسلامي هېوادونو کې له جوماتونو سره هغه څه وکړل چې لینن او ستالین ورسره کړي وو.

**۳- دیني زده کړه:**

د اسلام د مقدس دین درېیمه بنسټیزه ستن دیني زده کړه ده او د دیني زده کړو لپاره په اسلامي امت کې د نوي نسل د عقیدوي کروړلتیا لپاره فرض ده او د دیني زده کړو لپاره په اسلامي هېوادونو کې په ځانګړیو مدارسو کې ورکولی شي، چې د دیني علماوو له پلوه یې ساتنه او چلول وي، مګر کله چې د یهودي ماسونیت منځته راوړې مفکوره کمونېزم په کومو اسلامي هېوادونو کې حاکم شي، نو د دین د خاتمې په لړ کې په درېیم ګام کې دیني مراکز او مدرسې ختموي، چې ښکاره بېلګه یې د مرکزي اسیا هېوادونه دي؛ ځکه

---

۱- صبح سمرقند: ۴۱-۴۵ مخونه.
۲- حکومة العالم الخفیة: ۳۲-۳۳ مخونه.

کله چې په هغو هېوادونو کې روسي کمونېزم یرغل وکړ او کمونېزم یې هلته حاکم وګرځاوه، نو هغه ټولې دیني مدرسې یې بندې کړې، چې په هغو هېوادونو کې موجودې وې او شمېر یې په لاندې اندازه ښودلی شوی دی:
یوازې په مرکزي اسیایي اسلامي هېوادونو او روس کې تر (۱۹۱۷) عېسوي کال پورې په مجموعي توګه پنځه ویشت زره دیني مدرسې وې، چې د هغو له جملې شخه لس زره ابتدایي مدرسې وې او پنځلس زره داسې دارالعلومونه و، چې د فراغت سندونه په کې ورکولی شول، دار التفسیر، دار الحدیث او د فنونو غټ غټ کتابونه په کې تدریس کولی شول، په داسې حال کې چې د لومړنیو زده کړو په مدارسو کې د قران کریم د تحفیظ مدارس هم و، مګر کله چې د کمونېزم سور ښامار پر دغو هېوادونو خپلې ناولې پنجې خښې کړې، نو له (۱۹۱۷) عېسوي کال شخه تر (۱۹۲۴) عېسوي کال پورې د لینن په حکم دغه ټولې مدرسې یا خو ویجاړې کړای شوې او یا هم کلبونه، ګودامونه، هوټلونه او تیاترونه په کې جوړ کړای شول.
او کله چې لینن په (۱۹۲۴) عېسوي کال د اپریل په میاشت کې مړ شو، نو تر (۱۹٦۱) عېسوي کال پورې یوازې په بخارا کې د میر عرب مدرسه باقي پاتې وه، هغه هم د سیلانیانو او اسلامي هېوادونو د غولولو لپاره او ددې لپاره چې په میر عرب مدرسه کې کمونست ملا، خطیب او مفتي تیار کړای شي، نورې ټولې دیني مدرسې له منځه یوړلی شوې او ددې لپاره چې د مرکزي اسیا د مسلمانانو د راتلونکي نسل له خپلې ماضي او خپل دین سره اړیکې په هر اړخیزه توګه غوڅې شي، عربي رسم الخط په روسي رسم الخط بدل کړای شو او د عربي ژبې زده کړه جرم وګڼلی شوه.[1]

۴- **اسلامي شریعت:**

په هر هېواد کې چې د کمونېزم حاکمیت راغلی دی له هرځ ‌منځه یې د

---

۱- مسلمان ملتونه د کمونېزم په ولکه کې: ۵۷- ٦٦ مخ.

اسلامي قوانینو او شریعت په له منځه وړلو لاس پورې کړې دی؛ ځکه چې هغوی پوهېږي، چې په اسلامي ټولنه کې د شرعي قوانینو تداوم او تعمیل د دین د بقا څلورمه اساسي ستن ده او ترڅو چې دغه ستن ختم نه کړای شي، دین نه ختمېږي، له همدې امله کمونستان د دین د خاتمې لپاره د شرعي قوانینو معطل کول ضروري او لازمي ګڼي.

نو کله چې په اسلامي او دین پال ملت کې د برچې په واسطه د اسلام دغه څلور محوري او بنسټیزې ستنې ختمې کړې او پرځای یې د الحادي نظام برنامه پلې کړې، دین پخپله ختمېږي او د اسلامي هغه محکوم ملت اړیکې له خپل دین سره پاتې ته رسېږي، چې د کمونېزم په زولنو کې ښکېل شي.

**ب: د کورني نظام ړنګول:**

د یهودي ماسونیت د کمونېزم د شیطاني مفکورې له منځته راوړو او په اسلامي هېوادونو کې له پیل کولو څخه دویم هدف د کورني نظام ړنګول او ختمول دي؛ ځکه چې په هر ځای کې دغه بشر دښمنه نظریه حاکمه شوې ده او شیطان صفته مزدکي کمونستان واکمنان شوي دي، نو د دین له خاتمې څخه وروسته یې دویم مقصد د کورني نظام تالاترغه کول او له منځه وړل وي، لکه چې د اوسني کمونېزم بنسټ کېښودونکی کارل مارکس متوفی (۱۸۸۴) عېسوي کال د کمونېزم پخپل لومړني مانیفیست «منشور» کې په دې اړوند داسې ویلي دي:

«موږ د کورنۍ ختمول غواړو او زموږ پر دغه تجویز ښایي اکاډمیک «اصول پالونکی» شخص په غوسه شي او دا اقدام به د کمونېزم د کرکې وړ اقدام وګڼي، مګر موږ وایو چې موجوده کورنۍ پر څه شي ولاړه ده؟ په پانګې او دولت او پر خصوصي ګټه ولاړه ده، کورنۍ په بشپړه بڼه کې یوازې د کپټالستانو پانګه والو په منځ کې موجوده ده او د دوی په منځ کې د کورنۍ موجودوالی په کارګرې طبقه کې د کورني نظام د نه موجودوالي د

عمومي فحشاء له امله ده، مګر پانګه واله کورنۍ به د هغو عواملو په له منځه وړلو پخپله پای ته رسېږي، چې د هغوی په وجه دغه کورنی نظام موجود دی او د پانګې او دولت په ختمولو سره به دواړه ختم شي.

ایا پر موږ «کمونستان» دا ملامتیا ویلی کېږي، چې موږ «د کورني نظام» په ختمولو سره له اولاد څخه د مور و پلار زیښناک «استثمار» او لوټماری ته خاتمه ورکوو.

خو موږ پخپل دغه جنایت کولو په ډېر ویاړ سره او د زړه له کومې اعتراف کوو.[۱]

دغه راز کله چې په (۱۹۱۷) عیسوي کال کې د اکتوبر په (۲۶) لینن په روس کې کمونستي انقلاب وکړ او بیا یې تر (۱۹۲۴) عیسوي کال، یعنې د خپل مرګ تر وخته وکولی شو، چې د مرکزي اسیا شپږ اسلامي هېوادونه مستعمره کړي او پکت یعنې اتحادیه ورڅخه جوړه کړي په یو تقریر کې یې د کورني نظام په باره کې داسې وویل.

«د نړۍ په ټولو متمدنو هېوادونو کې، که څه هم هغوی زیات پرمختګ کړی وي، د ښځو حیثیت د کهول له یوې مینځې څخه زیات نه دی، په هیڅ یو بروژوازي هېواد او ازاد جمهوري ملک کې ښځه مساوي حقوق نه لري او د روس د ډیموکراتیک اتحادي جمهوریت له مهمو چارو څخه یوه دا ده، چې د ښځو پر حقوقو کوم بندیزونه لګېدلي دي، هغه ټول ختم کړي او تر اوسه د روس حکومت په دې اړوند دا کار کړی دی، چې طلاق یې په بشپړه توګه منسوخ کړی دی؛ ځکه چې طلاق د ظلم او رسوایی ذلت او شرم سرچینه ده او کابو یو کال کېږي، چې موږ په طلاق کې د ازادۍ قانون تصویب او جاري کړی دی، دغه راز نژدې یو کال به کېږي، چې موږ یو حکم او فرمان نافذ کړی دی، چې د دغه فرمان به توسه به د حلالي او

---

۱- Manifesto of the communist pary,P.۶۷.

حرامي «ولد زنا» ماشومانو ترمنځ توپير ختم کړی شي او سياسي قيود او بنديزونه مو ورڅخه پورته کړي دي، چې د دنيا په هيڅ يوه سيمه کې هم د کارګر ښځې لپاره د ازادۍ او مساوات دغه ډول نظام قايم کړای شوی دی.[۱]

د کمونېزم د مخکښانو په دغو اقداماتو سره له ازدواجي تړون څخه د ښځو ازادي ده، چې په دې توګه کورنی نظام پای ته رسېږي، ذات البيني حقوق، مينه او محبت، د وراثت نظام، د قوم او قبيلې تعارفي اصول ټول پای ته رسېږي؛ ځکه چې د کمونېزم له نظام سره سم پلارتوب، مورولي، د اولاد مخصوصه روزنه، خورتوب، وروړتوب هرڅه خاتمه مومي، چې مذهب منځته راوړی دی. نسلي توپيرونه زړه سوی او خپلمنځي مرسته او نور ټول هغه شعاير له منځه ځي، ماشومان د مور و پلار د شفقت لرونکې او مينې ډکې غېږې پرځای په وړکتون کې روزل کېږي، چې له دغه کار څخه د ماسوني کمونېزم اساسي مقصد دا دی، چې کوچنيان په وړوکوالي کې د دهريت، الحاد او کمونېزم په مفکوره وروزل شي، لکه چې د همدغه هدف لپاره افغانستان څخه له (۱۹۸۹) عېسوي (۱۳۵۷) هجري شمسي څخه تر (۱۹۹۲) عېسوي کال (۱۳۷۵) هجري شمسي کال پورې پنځوس زره کوچنيان د کمونستي روزنې لپاره مسکوته ولېږل شو، چې له دوه کلنۍ څخه تر اووه کلنۍ پورې عمرونه وو.

مطلب دا چې کمونېزم د کورني نظام په ختمولو سره د يوې داسې بشري ټولنې د جوړولو اراده لري، چې د ښاريو په شان له هر چا سره خپل فکر وي، د جنسي غريزې سړول ازاد وي، ښځه د اجتماعي متاع حيثيت ولري او هرڅوک ورڅخه منتفع وي، لکه چې په (۱۹۲۴) عېسوي کال کې په ازبکستان کې د هغه ځای يو داخلي کمونست ليډر مسلمانانو ته يوه

---

۱ - Lenin, on Religion, P.۴۴.

غونډه کې داسې ویلي وو:

«د الله په مرسته موږ له تاسې څخه ستاسې څاروي وتروړل، اوس به ستاسې تنکورګانې او لورګانې هم به اجتماعي ملکیت کې اخلو، بیا به موږ هغه له ځانونو سره څملوو، چې په دې توګه به یو له بل سره په اسانتیا غاړه غړې شو.»[۱]

ج: د کمونیزم درېیم مقصد د فردي مالکیت الغاء او خاتمه ده:

څو د الله تعالی مالي عبادت او د اسلام دویم رکن زکوة له منځه لاړ شي او ماره هم وږي شي، لکه چې لینن په روس کې د مرکزي اسیا د شپږو اسلامي هېوادونو له مدغم کولو څخه وروسته په (۱۹۲۰) عېسوي کال کې په یو فرمان کې وویل:

«د ځمکې دنیا و من حل طریقه دا ده، چې د ځمکې شخصي مالکیت به د تل لپاره ختم کړای شي او له دغه اعلان څخه وروسته ځمکه نه پلورلی شي او نه پېرودلی شي، نه په اجاره ورکولی شي، نه په کرایه ورکولی شي او نه ګانه کولی شي او نه په هیڅ صورت کې منتقل کولی شي؛ بلکې ځمکه په مطلق ډول سرکاري ملکیت دی: برابره خبره ده، که د کومې مذهبي ادارې یا د کلیسا د کومې کارخانې وي، یا د نیکه څخه وراثتي وي، شخصي وي او که د عامه خلکو وي او که د بزګرانو وي، ټولې له معاوضې څخه پرته ضبط کولی شي چې په دې توګه به د ټولو خلکو ګډ ملکیت وګرځېږي.

د هېواد ټول بانکونه به په یو ملي بانک کې مدغم کولی شي، چې په دې توګه به نه خو فیوډال او د ځمکې څښتن څوک وي او نه به څوک سوداګر او تاجر وي او نه به هم سرمایه دار وي، ټول هېوادوال به د کمونیست ریاست تنخوا خواره مزدوران او نوکران وي، هر چاته به د هغه د کار په تناسب او

---

۱- صبح سمرقند: ۱۹۲ مخ

اندازه معاوضه ورکولی شي او مفت خواره به ختم کړای شي».[۱]
او کله چې د کمونستانو دغه مقصد ترسره شي، نو د اسلام د اقتصادي نظام چې په قران کريم، نبوي احاديثو او فقهي قواعدو کې اصول، حقوق، فرايض، اجتماعي ښېګڼې دي، هرڅه به ختم کړای شي، عبادات او اسلامي معاملات، راکړه ورکړه او د هغوی قوانين به ونغاړلی شي، هرڅه به د بشريت د يوې خاصې طبقې کمونستي په واک کې وي او د يهوديانو يو نيم زر کلن ارمان به پوره شي او هغه هلې ځلې به يې نتيجه ورکړي، چې له پېړيو څخه يې را په دېخوا د اسلام د مقدس دين د اجتماعي نظام، کورني نظام او اقتصادي فطري نظامونو په خلاف کولې.

***

۱- V.I. Lenin. Selected Works. V.۳.P.۳۱۰-۴۶۸.

# وسایل

د یهودي ماسونیت د کمونېزم جوړ کړی طاغوتي تنظیم هر هېواد ته د سرایت او نفوذ لپاره مختلف وسایل په کار اچوي، چې د هغو له جملې څخه یې یو څو په لاندې ډول د بېلګې په توګه وړاندې کېږي:

**دوستانه، تجارتي او ډیپلوماتیکي اړیکې:**

د کمونېزم واکمنان په هر اسلامي هېواد کې د خپلې الحادي او دهري مفکورې لپاره له هرڅه نه لومړی د دوستانه، ذات البیني تجارتي اړیکو د پیل کولو وړاندیز کوي او کله چې دغه اړیکې ورسره ټینګې کړي، بیا نو په دویم قدم کې سیاسي اړیکې ټینګوي، بیا وروسته تعلیمي، بیا نظامي او اجتماعي اړیکې قایموي، چې د کمونېزم د لېږدولو او په سوچه اسلامي ملت کې د دهریت د تخم کرلو لپاره اغېزمنې وسیلې دي، لکه چې زموږ په ګران هېواد افغانستان کې یې لومړی له همدغو وسیلو څخه کار واخیسته او هغه داسې پیل شوي:

کله چې په (۱۹۱۷) عیسوي کال کې په روس کې کمونستي نظام قایم کړای شو، نو د افغانستان د هغه وخت واکمن امیر حبیب الله خان په رسمیت ونه پېژانده او د روس د کمونستي نظام په مقابل کې یې له کرکې څخه ډک غبرګون وښود، خو کله چې په (۱۲۹۷) هجري کال کې د جمادي الاولی په (۱۸) نېټه د پنجشنبې په ورځ امیر حبیب الله خان د لغمان ولایت د کله ګوش په شاهي هستوګنځي کې ووژلی شو، په کابل کې د هغه زوی امیر امان الله خان د خپلې پاچاهۍ اعلان وکړ، نو وروسته سم له لاسه یې د روس د لینن د رژیم په رسمیت پېژندلو اعلان هم وکړ او خپل یو استاذی یې د محمد ولي خان په نوم د یو پنځه کسیز پلاوي په مشرۍ کې مسکو

ته ولېږه او له روسي کمونستي رژیم سره یې د سیاسي اړیکو د ټینګولو پیغام هم د امان الله له پلوه لینن ته ورکړ.
لینن د امان الله خان د دغه نېک او د ستانه اقدام په ځواب کې د (۱۹۱۹) عېسوي کال د مې د میاشتې په (۲۷) نېټه مثبت ځواب ورکړ او بیا یې د (۱۹۱۹) عېسوي کال د نوامبر په (۲۷) نېټه امان الله خان ته د دوستۍ بل مکتوب راولېږه او د (۱۹۱۹) عېسوي کال د دسامبر په (۱۴) لینن د براوین په نوم یو شخص په کابل کې د خپل کمونست حکومت د وزیر مختار په توګه ولېږه، چې په دې توګه په افغانستان کې د کمونېزم د فعالیت او ناولي قدم د کېښودلو لپاره دروازه خلاصه کړای شوه او بیا په (۱۹۲۱) عېسوي کال د جون په درېیمه نېټه د (۱۳۰۰) هجري شمسي کال د غبرګولي له میاشتې سره سم د لینن د رژیم د بهرنیو چارو وزیر، چیچرین په کابل کې د روس واکمن نماینده ته په مکتوب کې ویلي وو، چې دی باید د افغانستان امیر او د هغه رژیم د روسي ترکستان د مسلمانانو د جهادي حرکت له ملاتړ څخه منعه کړي او هم په کابل کې د پان اسلامېزم تحریک پرې نږدي او هغه همداسې وکړل او امان الله خان د لینن د خوشحالتیا لپاره اعلان وکړ، چې د پان اسلامېزم «د اسلامي تحریک» ټول غړي د انګلیس نماینده ګان دي...
په (۱۹۲۶) عېسوي کال د اګست په (۳۱) نېټه د کابل په پغمان کې د روس د مختار سفیر لیونید ستارک او د اماني حکومت د بهرنیو چارو وزیر محمود طرزي ترمنځ د روس او افغانستان ترمنځ د دوستۍ په نوم یو تړون لاسلیک شو، چې د همدغه قرار داد په نتیجه کې د لومړي ځل لپاره د افغاني ځوانانو یو ګروپ د هوایي فنونو د زده کړې لپاره تاشکند ته ولېږه او وروسته یې بله ډله په تاشکند کې په تبلیغاتي مکتب کې د زده کړې

لپاره ولېږله.[۱]
مطلب دا چې په یو اسلامي هېواد کې د کمونېزم پیلامه له دوستانه تجارتي، فرهنګي او اجتماعي، تعلیمي او سیاسي اړیکو څخه کوي او دا یې لومړۍ وسیله ده.

***

۱ - د افغان شوروي اړیکې په (۱۹۱۹-۱۹۶۹) کلونو کې: ۲۲ مخ

## کمونستي ګوندونه

دويمه وسيله يې په اسلامي هېوادونو کې د کمونستي ګوندونو جوړول دي او دغه تنظيمونه له هغو افرادو څخه جوړوي، چې د اسلامي هېواد په تعليمي مراکزو او تخنيکي پروژو کې د روس، چين او يوګسلاويه د کمونستي رژيمونو موظف شويو استاذانو او انجينرانو دعوت کړي او کمونست کړي وي او يا د اسلامي هېواد محصلين د عالي زده کړو او حربي فنونو د زده کړو لپاره روس يا چين ته ځي، له هغه پلوه کله چې متبوع اسلامي هېواد ته راستنېږي، نو په کمونستي مفکورې ګانلي وي او بيا د نورو هېوادوالو د کمونست کولو لپاره د خپل بادار په امر پخپل هېواد کې کمونستي ګوند جوړوي، چې د ګوند ټول مصارف او د ګوند د غړو اوچتې تنخواوې د جېب خرڅ په نوم د روس او چين له پلوه تاديه کولی شي، لومړی يې خپل سفارت ته لېږي او هغه يې د مرکز له هدایاتو سره سم ورته توزيع کوي، په دې شرط چې د خپل فعاليت مياشتنی رپوټ ورته ورکړي، چې څومره مزدوران، کارګران، متعلمين او محصلين، ښوونکي او مامورين يې کمونېزم ته دعوت کړي او پخپل ګوند کې جذب کړي دي.
په افغانستان کې کمونستي ګوندونه په (۱۳۴۷) هجري شمسي کال راښکاره شو، چې په دغو کمونستي ګوندونو کې ځينې د چين له پلوه ماويستي کمونستي ګوندونه و او ځينې د روس له پلوه لينستي ګوندونه وو.
د چين پلوه کمونستي ګوندونه د «صدای عوام» ګوند و، چې مشران يې معصومه عصمتي او کريم فروزان و، چې د صدای عوام په نوم يې يو جريده هم لرله او دويم په چين پورې تړلی کمونستي ګوند شعله يی جاويد و، چې لومړی مشر يې ډاکتر عبدالرحمن محمودي و، وروسته د هغه ورور رحيم محمودي، انجينر عثمان لنډی، عبدالهادي محمودي، سيدال سخن دان او داسې نورو، دغه ګوند هم د شعله جاويد په نوم جريده لرله، چې د چين د کمونستي مشر ماو

افکار به یې په کې منعکس کول او مصارف یې چین ورکول.
د روسي کمونېزم په افغانستان کې لومړی ګوند د خلق په نوم په (۱۳۴۳) هجري شمسي کال کې جوړ او په ډاګه یې روسي کمونېزم ته دعوت پیل کړ.
د خلق ګوند مشران نور محمد تره کی، حفیظ الله امین، اسدالله سروري او میر اکبر خیبر وو.
دغه ګوند یو جریده هم لرله، چې د خلق په نامه یې خپروله، چې مدیر مسوول یې بارق شفیعي محمد حسن وو.
خو بیا لږ موده وروسته د ببرک کارمل او اناهیتا راتبزاد او محمد خان جلالر چې د کا جي بي غړي هم وو، په مشرتابه کې د پرچم په نوم ډلې انشعاب ورڅخه وکړ او د خلق ګوند په دوه برخو ووېشل شو، د پرچم منشعبې ډلې د پرچم په نوم یوه جریده هم چلوله او د روسي کمونستانو د دغو دواړو جرایدو مصارف روس ورکول او بیا پرچمیانو یوه بله جریده د کومک په نامه هم خپروله، د پرچم جریدې لومړی مدیر مسوول سلیمان لایق و او د کومک جریدې مسوول مدیر یعقوب کومک وو.
دغه راز د خلق کارګر ګوند په نوم یو بل کمونستي ګوند هم د دستګیر پنجشیري په مشری کې کار کاوه او یوې بلې روسي کمونستي ډلې د ظاهر افق په مشرتابه هم کار کاوه او د روسي کمونست بلاک لپاره د ستم ملي په نامه هم یوې ډلې فعالیت کاوه، چې مشران یې طاهر بدخشي، بحر الدین باعث او مجید کلکاني وو.
مطلب دا چې کمونستي ګوندونه د ماسونیت د کمونستي مفکورې د خپرولو لپاره دویمه مهمه وسیله ده، له همدې امله په بشري نړۍ کې به ډېر لږ داسې هېوادونه وي، چې کمونستي ګوندونه په کې نه وي، بیا په خاصه توګه په اسلامي هېوادونو کې ځکه چې د ماسونیت اصلي ګوزار پر اسلام دی.

***

# طبقاتي شخړې

د کمونېزم د پیاوړتیا او خپرولو لپاره درېیمه لویه وسیله په اسلامي امت کې طبقاتي شخړې او جنګونه دي، چې د یو ملت مختلف طبقات په خپل منځ کې سره جنګوي، لکه بزګر د ځمکې د څښتن په مقابل کې لمسوي او ورته وايي، لاسونه ستا تناکې کېږي او خولې ستا له بدن څخه ځي، ځان ته ستړې کوې، محصول یې د ځمکې څښتن خوري، چې ساړه سیوري ته ناست وي او خوبونه کوي.

دغه راز مزدور د کارخانې د څښتن په مقابل کې، شاګرد د استاذ په مقابل کې، غریب د شتمن په مقابل کې پاڅون ته هڅوي.

په یو ملت کې اقلیتونه د اکثریت پر وړاندې جنګ ته چمتو کوي او بیا له ټولو پاټکیو سره دا ژمنه کوي، چې که زموږ کمونستي واکمني راغله، نو ستاسې ټولو حقوق به درکوو، زموږ ملکرتیا وکړئ او زموږ کمونستي تحریک حاکم کړئ، چې په هېواد کې مساوات راولو او د کمزورو حقوق له مستبدینو څخه واخلو او کمزورو ته یې ورکړو او دا د یهودیانو د ماسونیت دویم پروتوکول دی، چې هغوی په کې ویلي دي:

«موږ به د خپلو نوکرانو کمونستانو او انارشیستانو په واسطه زیارکښانو ته له ظلم او زېښاک څخه د نجات ورکوونکو په بڼه کې ښکاره کېږو او هغوی به لارو او سرکونو، بازارونو او کوڅو ته راوباسو او بیا به دغه بې کابو عوام د خپلې ساده لوجي او کم فهمۍ په وجه د هغو وکړو، وینې پرې توی کړو، چې د میندو په غېږو کې یې په ژوند غبطه کوله او بیا به موږ پردې هم بس والی نه کوو؛ بلکې د هغوی شته او املاک به هم ورڅخه لوټ کوو او ترورو به یې، چې له موږ سره سیالي پرې کوي.[۱]

---

۱- سازش یهود: ۳۵- ۳۹ مخونه، پروتوکول.

عیاشي: د کمونېزم د ټینګښت او پراختیا په تکل کمونستان نندارتونونه، موزیمونه، تیاترونه، د ټنګ ټکور محفلونه له عیاشۍ ډک فلمونه او د دین په خلاف ډرامې، افسانې، رومانټیک، سکسي او د حیا، عفت او اخلاقو فلمونه ښودل په کار اچوي، څو د اسلامي امت ځوانان او انجونې دیني او مذهبي بندیزونو ته بې تفاوته شي، په عیاشۍ او خرمستۍ کې مصروف شي او د کمونستانو فعالیتونو ته یې پام نه وي.

دوی بې ننګه، بې غیرته او له دین څخه لرې کړي او په دې باره کې د اسلامي هېوادونو حاکمان هم تشویقوي او د هغوی دوستۍ په نوم او ثقافتي مناسباتو ټینګولو په پلمه چیني او روسي کمونست جاسوسان د ډمانو او رقاصو په نوم اسلامي هېوادونو ته لېږي، ترڅو له یو پلوه فساد او فحشا خپره کړي او له بل پلوه ورسپارل شوې د جاسوسۍ دنده ترسره کړي.

دغه راز د فحشا او فساد د مراکزو په جوړولو کې روسي او چیني کمونستان د اسلامي هېوادونو له بې خاصیته مسلمانانو حاکمانو سره نغدي مرسته هم کوي، لکه چې د روس کمونست واکمن خروس چیف کله چې په (۱۹۵۹) عیسوي کال کې د هند له لارې کابل ته راغی او په کابل کې یې له محمد ظاهر او محمد داود سره د اقتصادي او فرهنګي مرستو ژمنه وکړه، نو د کابل د ښار په منځ کې یې د کابل ننداري چې سینما وه او تیاتر و، خروسف چیف نیم میلیون روبل د هغې د تعمیر د جوړولو لپاره مرسته ورسره وکړه، چې ظاهر شاه په ډېرې مننې ورڅخه قبوله کړه.[1]

***

۱- د روس د تېریو بیلګه: ۷۴ مخ.

# ثقافتي خپروني

د کمونستانو پنځمه مهمه وسیله ثقافتي خپروني دي، لکه کتابونه مجلې او متحرک فلمونه، چې په اسلامي هېوادونو کې یې توزیع کړي دي او توزیع کوي یې او دا په یوه ژبه نه وي؛ بلکې تر اوسه پورې یې د اسلام په خلاف، د دین او مذهب په ضد په څلور سوه درې اتیا ژبو تالیفات کړي دي او بیا له کمونستي مرکزونو چین او روس څخه اسلامي هېوادونو ته لېږدولې او توزیع کړي دي، څو نوی اسلامي توکوم بې دینه او دهري وګرځوي، تر اوسه پورې یې پنځه څلوېښت زره کتابونه په عربي، پښتو، فارسي، اردو، جاوايي، ترکي، ازبکي او نورو ژبو چاپ او خپاره کړي دي او یو نیم زر متحرک فلمونه یې د اسلام په خلاف او د کمونېزم په توصیف کې جوړ کړي او تکثیر او توزیع کړي دي.

دغه راز په اسلامي هېوادونو کې یې د راډیو مرکزونه هم جوړ کړي دي، چې کمونستي خپرونې ورڅخه کوي او دغه راډیويي خپرونې د هر اسلامي هېواد په مختلفو محلي ژبو کوي، لکه چې په افغانستان کې یې له (۱۳۵۸) هجري شمسي څخه تر (۱۳۶۷) پورې په اته ویشتو ولایاتو کې دوه دېرش راډیويي مرکزونه جوړ کړي وو، چې د افغانستان په نهه دېرش محلي ژبو یې خپرونې کولې.

سربېره پر دې پخپله له مسکو او پیکنګ څخه د نړۍ په مختلفو ژبو یې خپرونې کېږي شي، چې د اسلام او دین په خلاف تبلیغات کوي او د کمونېزم توصیف ورڅخه کوي.

سربېره پردې په هر اسلامي هېواد کې کمونستان او کورني ایجنټان هم ورځپاڼې، جراید او مجلې خپروي، کتابونه لیکي او چاپوي یې او توزیع کوي، روس او چین د چاپ او خپروني ټول امکانات په څو چنده ورته

ورکوي.

ترور: د کمونېزم د پرمختګ شپږمه وسیله غلچکي وژل او ترورېزم دی، په داسې ډول کله چې د یهودي ماسونیت الحادي مفکوره کمونېزم په کوم اسلامي هېواد کې تبارز وکړي، نو هغه څوک وژني او قتل کوي یې، چې د دوی په لاره کې خنډونه پیدا کوي، لکه عوام د دوی له عقایدو او نظریاتو څخه خبرول.

د دوی سیاسي او تبلیغاتي فعالیتونه شنډول، د دوی له شومو او اسلام دښمنو پلانونو څخه د ملت پر وړاندې پرده پورته کول او داسې نور... او کله چې د مطلوبه شخص پر قتل کولو د داخلي کمونستانو وس بر نه شي، نو پخپله د هغوی بادار دا کار کوي او لاره یې ورته صفا کوي، لکه چې په (۱۳۵۱) هجري شمسي کال کې د مرغومي په میاشت کې روسانو په کابل کې په رڼا ورځ منهاج الدین ګهیځ د هغه د کور په مخ کې شهید کړ؛ ځکه چې هغه به پخپل اخبار کې د کمونېزم پر ضد خپرونې کولې او د روسي کمونېزم له پلانونو څخه به یې پرده لرې کوله، د دوی له دغه ترورستي عمل څخه مطلب په خلکو کې ډار اچول وي.

د کمونېزم مخکښ کله نا کله د خپل سیاسي مصلحت په خاطر د خپل کمونست په ترور کولو هم صرفه نه کوي، لکه چې په (۱۳۵۷) هجري شمسي کال کې یې د ثور د انقلاب د راوستو لپاره خپل یو غټ کمونست میر اکبر خیبر پخپل کور مکروریان کې د شپې قتل کړ او مړی یې په شپه کې د کابل د باغ بالا د سړک پر غاړه وغورځاوه او سبا ته یې غوغا جوړه کړه، چې میر اکبر خیبر د داود حکومت وژلی دی، په داسې حال کې چې هغه کا جي بي ترور کړی و او میر اکبر خیبر هغه څوک و، چې کمونستانو د کمونېزم فیلسوف او د افغانستان د کارل مارکس په القابو نومولی و.

***

## عقاید او نظریات

کمونېزم مادي مذهب دی، له همدې کبله په کومو معتقداتو او نظریاتو چې د کمونېزم مادي مذهب جوړ او ولاړ دی، د هغو خلاصه په لاندې ډول ده او هغه نظریات او عقاید دي، چې له پیل څخه تر اوسه پورې ټول کمونستان پرې ګروهمن دي، که څه هم د نظام په چلولو کې یې د کیفیت په لحاظ اختلافات سره لري، مګر د نظریاتو په کمیت کې سره یو دي:

**۱- د الله تعالی له وجود څخه انکار**: کمونستان د الله تعالی د بې سیالۍ مقدس ذات له وجود څخه په مطلق ډول منکر دي او دا عقیده لري، چې دغه ټول کاینات او موجودات د انسان په ګډون په طبیعي توګه په ناڅاپي ډول منځته راغلي دي، دوی وایي دا خبره غلطه ده، چې دغه کاینات خالق، رب او الله لري او هغه پخپل کامله او لم یزل او لا یزال قدرت سره پیدا کړي دي.

د یو الله تعالی نظریه د انسان د هغو توهماتو زېږنده ده، چې لومړی یې طوطم پرستي کوله، بیا یې په څو مخصوصو معبودانو پورې خاص کړه، بیا یې په درې معبودانو پورې، عیسی، مریم او الله پورې خاصل کړه او بیا یې یوازې او یوازې په یو الله پورې خاص کړه، نو لکه څرنګه چې طوطم پرستي د بشري توهماتو په نتیجه کې منځته راغلې ده، دغه راز د یو الله تعالی د وجود نظریه هم توهمي نظریه ده او هیڅ حقیقت نه لري.

د الله تعالی له وجود څخه انکار د ماسونیت او صهیونېزم د څلورم پروتوکول یوه برخه ده؛ ځکه چې هغوی په دغه پروتوکول کې خپلو کمونستو نوکرانو ته داسې هدایت او امر کړی دی، چې:

«زموږ د مقاصدو د بشپړتیا لپاره دا لازمه او ضروري ده، چې په بشري نړۍ کې د ټولو مذاهبو اهمیت ختم کړو او د غیر یهودیانو له اذهانو څخه د الوهیت او روحانیت تصور له منځه وویستلی شي او هغوی د مادي

اړتیاوو او همدارنګه د حسابي اعدادو د شمېرنې په کړکېچ کې اخته کړی شي». [۱]

د یهودیانو له دغه هدایت سره سم کمونستو واکمنانو په اسلامي امت کې؛ بلکې د بشریت په سطحه له الله تعالی څخه د انکار عقیده تبلیغ کړه، لکه چې کله په (۱۹۵۵) عیسوي کال کې د مارچ په میاشت کې د روس کمونستي نظام د لومړي ځل لپاره سیاره فضا ته لېږلې وه، د روس کمونست واکمن خروس چیف داسې خپله راډیويي عقیده بیان کړه او ویې ویل:

«د روس مصنوعي سیاره، چې همدا اوس خلا ته لېږلی شوې ده، په داسې نازکو ساینسي تجهیزاتو او الاتو مجهزه ده، چې په هغو کې د لیدلو، اورېدلو او اندازه کولو بشپړ ځواک موجود دی، دغې سیارې چې تر اوسه پورې څومره خبرونه رالېږلي دي، په هغو کې هیڅ داسې یو خبر موجود نه دی، چې له هغه څخه د مختلفو ادیانو ددې دعوې ثبوت ترلاسه شوی وي، چې په اسمان کې کوم اوچت پاچا موجود دی، چې د الوهیت پر تخت ناست وي او له هغه څخه چار چاپېره پرښتو حلقه جوړه کړې ولاړ وي او د هغه پر اطرافو پیغمبران طواف کوي او د هغه په شاو خوا کې جنت او دوزخ جوړ شوی وي او د هغه له عدالت څخه د قضا او قدر فیصلې صادرېږي.

له همدې کبله دغه تصورات محض وهم دی، چې جهالت د خلکو په عقلونو کې اچولی دی، یا دا یو فرېب دی، چې د دنیوي اقتدار سرابنند یې د حربې په توګه استعمالوي». [۲]

کمونستان په دغه ډول بې اساسه تبلیغاتو سره د الله تعالی د وجود په اړوند له اسلام، قران او نبوی احادیثو څخه د بې خبرو او کمزورو عقیده

---

۱- صهیوني پروتوکولونه: ۴۵ مخ.
۲- سویت ساینسز میګزین، د (۱۹۵۵) م د اپریل ګڼه.

لرونکو خلکو عقیده خرابوي، په داسې حال کې چې د خروس چیف دغه خبره په دوه دلیلونو سمه نه ده، یو دا چې په دنیا کې د هیچا سترګې د الله تعالی ذات لیدلی نه شي، لکه چې الله تعالی فرمایلي دي:

﴿لَا تُدۡرِكُهُ ٱلۡأَبۡصَٰرُ وَهُوَ يُدۡرِكُ ٱلۡأَبۡصَٰرَۖ وَهُوَ ٱللَّطِيفُ ٱلۡخَبِيرُ﴾. (الانعام/۱۰۳)

ژباړه: نه شي موندلی الله لره سترګې او الله مومي سترګې او هم دی نهایت ښه خبردار دی.

پر همدې اساس په دنیا کې هیڅ ډول سترګې د الله تعالی مقدس ذات لیدلی نه شي او نه د الله تعالی د بې سیال او بې ساري ذات د نور د تجلیاتو پر وړاندې انسان او دده سترګې او ساینسي وسایل د ثبات او مقاومت ځواک لري؛ بلکې د کایناتو هیڅ یو موجود هم دغه ځواک نه لري، لکه چې الله تعالی په قران کریم کې د موسی علیه السلام او د هغه د قوم د سپین روبو په پېښه کې خبر ورکړی او فرمایلي یې دي:

﴿وَلَمَّا جَآءَ مُوسَىٰ لِمِيقَٰتِنَا وَكَلَّمَهُۥ رَبُّهُۥ قَالَ رَبِّ أَرِنِيٓ أَنظُرۡ إِلَيۡكَۚ قَالَ لَن تَرَىٰنِي وَلَٰكِنِ ٱنظُرۡ إِلَى ٱلۡجَبَلِ فَإِنِ ٱسۡتَقَرَّ مَكَانَهُۥ فَسَوۡفَ تَرَىٰنِيۚ فَلَمَّا تَجَلَّىٰ رَبُّهُۥ لِلۡجَبَلِ جَعَلَهُۥ دَكًّا وَخَرَّ مُوسَىٰ صَعِقًاۚ فَلَمَّآ أَفَاقَ قَالَ سُبۡحَٰنَكَ تُبۡتُ إِلَيۡكَ وَأَنَا۠ أَوَّلُ ٱلۡمُؤۡمِنِينَ﴾. (الاعراف/۱۴۳)

ژباړه: کله چې هغه زمونږ په ټاکلې نېټه راورسید او د هغه رب له هغه سره خبرې وکړې نو هغه هیله وکړه چې 'ای پروردګاره ! ما ته د لیدو چانس راکړه چې زه تا وګورم' ویې فرمایل: 'ته ما نشې لیدلی. هو، لږ شان د غره لوري ته وګوره که هغه پخپل ځای ولاړ پاتې شو نو البته ته ما لیدلی شې.' نو کله چې د هغه رب پر غره د دیدار وړانګې وغورځولې نو هغه یې مېده مېده کړ او موسیع بېهوښه پرېووت. کله چې په سد شو نو ویې ویل' پاک

دی ستا ذات، زه ستا په دربار کې توبه باسم او تر ټولو مخکې ایمان راوړونکی زه یم.

دویم دلیل دا دی، چې د روس فضايي سیاره په خلاء کې وه، چې د اسمان او ځمکې ترمنځ ده او له اسلامي عقیدې سره سم د الله تعالی عرش له اووه اسمانونو څخه په بره دی او تر اوسه پورې هیڅ یو ساینسي سیاره د دنیا اسمان ته هم ختلې نه ده او نه به په راتلونکي کې وختلی شي، نو کله چې لومړي اسمان ته ختلی نه شي، له اووه اسمانونو په بره به څه ولیدلی شي؟

دغه راز سپوږمۍ، مریخ، مشتري، عطارد، زهره او نور ټول له اسمان څخه لاندې هر یو پخپل فلک کې چورلېږي، له همدې کبله که کوم انسان د اسابو په وسیله ددغه سیارو له افلاکو څخه کوم فلک ته خېژي، دا معنا نه ده، چې ګواکې اسمان ته ختلی نه دی، کمونستان دغه تبلیغات د مسلمانانو د بې لاره کولو په تکل کوي.

**۲- له ټولو مغیباتو څخه انکار:** کمونستان له هر هغه څه نه انکار کوي، چې په سترګو نه لیدل کېږي او حواس یې د ادراک ځواک نه لري، لکه پرښتې، پېریان، جنت، دوزخ او داسې نور...

**۳- ماده د هرڅه بنسټ ده:** کمونستان عقیده لري، چې د هر څه بنسټ، اساس او زېربنا ماده ده او نور هر څه پر ماده ولاړ او له مادې څخه سرچینه نیسي.

ماده اصل او بنسټ دی او نور هرڅه فروع او د مادې تابع دي، هیڅ یو شی هم له مادې څخه وړاندې والی او زیات ارزښتناک نه دی، له همدې امله کمونستان په لومړۍ درجه کې حسي تمدن ته ارزښت ورکوي او په دویمه درجه کې عقلي تمدن ګڼي او له دغو دواړو څخه پرته بل هیڅ تمدن نه قبلوي، یوازې او یوازې د مادې پر اصالت قایل دي.

**۴- ماده اذلي او ابدي ده:** کمونستان عقیده لري، چې ماده اذلي او ابدي ده، په دې معنا چې هیڅ شی موجود نه و، چې ماده موجوده وه، چې له

همدې امله ماده ابتداء نه لري او بیا وروسته نور هرڅه له مادې څخه موجود شوي دي.

ابدي په دې معنا چې ماده انتها او پای نه لري؛ بلکې تل تر تله به وي، مطلب دا چې د کمونستانو رب خالق او الله ماده ده، په داسې حال کې چې د اسلام او مسلمان په عقیده دغه دواړه صفتونه یوازې او یوازې د الله تعالی دي، لکه چې الله تعالی فرمایلي دي:

﴿ هُوَ الْأَوَّلُ وَالْآخِرُ وَالظَّاهِرُ وَالْبَاطِنُ ۖ وَهُوَ بِكُلِّ شَيْءٍ عَلِيمٌ ۝ ﴾.

(الحدید/۳)

ژباړه: همغه لومړی هم دی او وروستی هم، او ښکاره هم دی او پټ هم، او هغه پر هر شي علم لري.

**۵- د دنیا ژوند ابدي دی او پس له مرگه ژوندون نشته:** کمونستان عقیده لري او وایي: له دې کبله چې دنیا، انسان، روح او دنیوي ژوندون هرڅه د مادې محصول دی او له مادې څخه منځته راغلی دی، له همدې امله دا دنیا، انسان او دنیوي ژوند تلپاتې او ابدي دی او یو ځل چې انسان مړ شي، بیا بېرته پس له مرگه نه ژوندی کېږي، نه قیامت شته، نه حساب شته نه کتاب، نه جنت شته نه دوزخ، نه ثواب شته نه عذاب، لکه چې الله تعالی د دوی دغه عقیده په قران کریم کې داسې بیان کړې ده:

﴿ أَيَعِدُكُمْ أَنَّكُمْ إِذَا مِتُّمْ وَكُنتُمْ تُرَابًا وَعِظَامًا أَنَّكُم مُّخْرَجُونَ ۝ هَيْهَاتَ هَيْهَاتَ لِمَا تُوعَدُونَ ۝ إِنْ هِيَ إِلَّا حَيَاتُنَا الدُّنْيَا نَمُوتُ وَنَحْيَا وَمَا نَحْنُ بِمَبْعُوثِينَ ۝ ﴾. (المؤمنون/۳۵-۳۷)

ژباړه: ایا دی تاسې ته خبر درکوي چې کله تاسې مړه او خاورې شئ او دهډوکو ډېرۍ درڅخه جوړه شي په هغه وخت کې به تاسې (له قبرونو څخه) راوویستل شئ؟ ژوند نورڅه ندی مگر یوازې دهمدې دنیا ژوند دی،

همدلته مرو او ژوندي کېږو او مونږ هېڅکله راپاڅول کېدونکي نه یو.

**۶- حلال او حرام:** د کمونېزم مفکوره د اباحیت مفکوره ده، له همدې امله کمونستان وايي: حلال او حرام، روا او ناروا دا هرڅه ارتجاعي نظر دی، هیڅ حلال او حرام نشته، انسان کولی شي، چې په ژوند کې په ازادانه توګه مزې چړچې وکړي، هرڅه وخوري، هرڅه وڅښي او هرڅه واغوندي، له همدې کبله د کمونستانو په نزد شراب څښل، د خنزیر او سپي غوښه خوړل، وربښمین کالي اغوستل، د سرو زرو استعمالول، زنا کول، لواطت کول او داسې نور هرڅه مباح دي، دغه راز له محرماتو سره واده کول، لکه خور، لور او داسې نورې مجاز دي او هېڅ بندیز پرې نشته.

**۷- د عباداتو په هکله:** کمونستان د عباداتو د هیڅ ډول پر لزوم معتقد نه دي او وايي، چې اسلامي عبادات ټول د محیط او چاپېریال زېږنده ده، چې ځینې یې د بدني ګټو او ځینې د اقتصادي ګټو لپاره وو، لکه چې یو کمونست فیلسوف ژر ژوفولیتسر پخپل کتاب مقدماتي فلسفه کې لیکلي دي:

لمونځ یو بدني ورزش دی، چې په حجاز کې محمد صلی الله علیه وسلم د خپلو پیروانو لپاره دود کړی وو، اوس چې له لمانځه څخه نور ښه ورزشونه منځ ته راغلي دي، لمانځه ته ضرورت نشته.

روژه یې له دې امله یوه میاشت لازم کړې وه، چې غله او نور غذايي مواد ذېرمه کړی شي؛ ځکه چې په حجاز کې غله چندان نه وه، نو ددې لپاره چې د غلې له انفلاسیون سره مخ نه شي، روژه نیول یې دود کړل، دغه راز حج محمد صلی الله علیه وسلم خاص په مکه کې ددې لپاره خاص کړی و، چې د خلکو په ورتللو د حجاز او بیا په خاصه توګه د مکې د هستوګنو اقتصاد پیاوړی کړي او هغه د نړیوال تجارتي سنټر او مارکېټ په توګه وګرځوي او ناپوهه وکړي یې د ثوابونو او جنتونو په ګټلو سره پرې غولول او

سرغړوونکي يې په دوزخ وېرول.[۱]

**۸ - د انبیاوو په هکله:** کمونستان د انبیاوو په اړوند عقیده لري، چې هغوی (Refars) ریفارمرز او د بشري ملتونو داسې مصلحین فلاسفه وو، لکه څرنګه چې نور عام فلاسفه دي، چې په هره زمانه او هر ملت کې وخت په وخت تبارز کوي او د بشري ملتونو رهبري کوي او د هغوی د سمون او اصلاح لپاره د علمي او مادي پرمختګ نظریات وړاندې کوي، د کمونستانو پر وړاندې عام فلاسفه او انبیاء په مراتبو کې سره برابر دي «نعوذ بالله» انبیاء له فلاسفه وو څخه هیڅ امتیاز نه لري.[۲]

**۹ - د ادیانو په باره کې:** کمونستان د اسلام د مقدس دین په ګډون له ټولو ادیانو څخه انکار کړی دی، د اسلام د مقدس دین له حقانیت څخه منکر دي او وایي: له یهودي دین څخه پرته نور ټول ادیان باطل دي.

د ملتونو د تخدیر او غولولو لپاره جوړ کړای شوي دي، د پانګه والو کپیټالستانو او امپریالېزم په خدمت کې دي، چې له همدې امله کمونېزم د ټولو ادیانو د له منځه وړلو لپاره بې امانه مبارزه کوي او د ټولو ادیانو د خاتمې هوډ يې نیولی دی، پرته له یهودي دین څخه؛ ځکه چې د کمونستانو په نزد یهودي ملت هم د مزدورانو او کارګرانو په شان مظلوم ملت دی، یهودیان د خپلې ازادۍ او حقوقو ترلاسه کولو لپاره خپل دین او دیني لارښودونو ته اړتیا لري.

مګر حقیقت د دوی د وینا په خلاف دی او هغه دا چې کمونستان د یهودیت ملاتړ ځکه کوي، چې د کمونېزم مفکوره په خپله د یهودیانو د طاغوتي او شیطاني ذهنیت او فکر زېږنده ده او د کمونېزم بنسټ کېښودونکي، مبتکرین او اصول جوړوونکي یهودیان دي او دا د یهودیانو د څلورم

---

۱- اصول مقدماتي فلسفه ژر ژوبولیتسر: ۱۲۳ - ۱۵۰ مخ.

۲- اصول مقدماتي فلسفه: ۱۷۹ مخ.

پروتوکول یو اصل دی، چې له یهودیت څخه پرته نور ټول ادیان باطل دي، باید ختم کړی شي او پر بشریت یوازې د یهودیت دین د حاکمیت حق لري، نو ځکه یې کمونستان ملاتړ کوي.

۱۰- **د فردي مالکیت په باره کې:** کمونستان عقیده لري، چې هیڅوک په وګړیزه توګه د مالکیت حق نه لري، هرڅه اجتماعي ملکیت دی او ترڅو پورې چې فردي مالکیت ختم کړای شوی نه وي، خپلمنځي شخړې او جنګونه پای ته نه رسیږي.

له همدې امله کمونستان د فردي مالکیت لغوه کول او ختمول لازمي ګڼي، د وراثتي قانون چې د اسلام د اقتصادي نظام اساسي رکن دی، لغوه کول ضروري ګڼي او دا عقیده لري، چې فرد د اجتماع د مشین هغه پرزې دي، چې دغه کارخانه پرې چلیږي او له دې څخه پرته په کمونېزم کې بل هیڅ حیثیت نه لري.

۱۱- **د تاریخ په هکله:** کمونستان د بشري تاریخ په اړوند عقیده لري، چې دغه تاریخ عبارت دی د بروژوازي او پرولیتاریه ترمنځ شخړې، اختلافات او جنګونه چې دغه طولاني جنګ یوازې د پرولیتاریه د دیکتاتوري نظام په قیام سره ختمیږي، مطلب دا چې د کمونستانو په نزد ټول بشري تاریخ یوازې په همدغه موضوع چورلیږي او بس؛ ځکه چې معنویات ادیان او عقاید هرڅه د دوی په نزد باطل دي.

۱۲- **د اقتصاد په باره کې:** کمونستان د اقتصاد په باره کې دا عقیده او نظریه لري، چې اقتصاد د ټولو افرادو او ټولنو ترمنځ د تحرکاتو اساس اقتصادي عوامل دي او په بشري نړۍ کې د ټولو بدلونونو حتمي نتیجه اقتصادي تولیدات دي، له همدې امله د کمونستانو په عقیده تمدن او ثقافت د اقتصاد زیږنده ده.

۱۳- **ډیالیکټیک ماتریالېزم** (Dialectcal Materialism): کمونستان عقیده لري، چې کاینات په پرله پسې توګه په حرکت کې دي او دغه حرکت یې نه

ختمېدونکی دی او ټول عالم د اضدادو او تناقضاتو مجموعه ده، یعنې په هر شي کې ایجابي او سلبي دواړه ځواکونه په ایکي یو وخت کې موجود وي، چې پخپل منځ کې یو له بل سره په جګړه بوخت دي، چې په نتیجه کې یې د ټولنې په بڼه کې تغیر او بدلون راځي.[1]

خو د دوی دغه نظر دومره چټي او ماشومانه دی، چې پخپله د دوی فلاسفه یې هم منلو ته تیار نه دي.

**۱۴- جبري انقلاب:** کمونستان په جبري انقلاب عقیده لري او وايي: کمونېزم په مسالمت امېزې او صلحه ایز چلن عقیده نه لري؛ بلکې کمونستي او وښتون سور او وښتون دی، چې د وینو په تویولو او قهري پاځون منځته راځي او پخپلو مخالفینو زړه سوی نه کوي، د هغوی لپاره یا مرګ دی او یا زندان دی او یا له هېواد او سیمې څخه شړل دي، له همدې امله کله چې په چین کې د ماو په زعامت په (۱۹۴۹) عېسوي کال کې انقلاب راغی، نو یو میلیون کسان یې ووژل، پنځوس زره یې هجرت ته مجبور کړل او باقي پاتې یې په زندانو کې واچول، چې د زندانونو او زندانیانو مجموعي شمېر په لاندې ډول دی:

له (۱۹۴۹) عېسوي کال څخه تر (۱۹۹۵) عېسوي کال پورې په چین کې په مجموعي توګه شپږ سوه نوي (۶۹۰) زندانونه جوړ کړای شوي دي، چې (۲۸۵۰۰۰)، یعنې لس میلیونه «یو کروړ» دوه لکه پنځه اتیا زره بندیان په کې دي، چې د هغو له جملې څخه اووه ویشت (۲۷) زره ښځې محبوسین دي او لس زره له اتلس کالو څخه کم ماشومان دي او نور یې غټان دي.

د دغو بندیانو له جملې څخه دوه لکه په لیبر کمپونو کې په جبري کار مامور دي او دوی ټول له محاکمې څخه پرته په جېلونو کې پراته دي او ګناه یې یوازې دا ده، چې د کمونېزم طاغوتي بشر دښمنه نظام نه قبلوي او خپله

---

۱ - الانسان بین المادیة والاسلام: ۱۰۹ مخ.

هغه پنځېزه ازادي غواړي، چې د صهیونېزم نامشروع بچي کمونېزم ورڅخه تروړلې ده.

۱۵- **جنسي انارشېزم**: کمونستان د نارینه او ښځې ترمنځ د جنسي غریزې د سړولو په مطلق اباحیت او ازادۍ عقیده لري او په دې باره کې هیڅ ډول قانوني او عنعنوي بندیزونه، اخلاقي او دیني حدود نه قبلوي، کمونستان وایي: ترڅو پورې چې انسان ته نر وي او که ښځه د شهوت او جنسي غریزې د ایفاء او سړولو هر اړخیزه ازادي ورنه کړی شي، ترهغه پورې په بشپړه توګه ذهني ډاډ او سکون ترلاسه کولی نه شي، له همدې امله انسان باید په دې اړوند ازاد پرې ښودلی شي.

۱۶- **د حمیده اخلاقو په هکله**: کمونستان له کریمه او حمیده اخلاقو څخه، لکه حیاء، شرم، ننګ، عفوه، زړه سوی، عاطفه، غیرت، مېړانه، صبر، زغم او داسې نور هیڅ یو هم نه مني او خورا زیاته کرکه ورڅخه کوي او وایي دغه ارتجاعي خصلتونه په منځنیو پېړیو کې «د اسلام په راتګ سره» منځته راغلي دي او د ټولنې د افرادو د هر اړخیزې ازادۍ په لاره کې لوی خنډونه دي، چې کمونېزم یې نه یوازې دا چې نه قبلوي؛ بلکې د دغو ارتجاعي بقایاوو له جرړو څخه د ایستلو امر کوي او بشریت ته له دغو امورو څخه نجات ورکوي، څو د جنسي غریزې د سړولو په ګډون په ټولو وکړو، وړوکي ازادوي.

کمونستان په دې باره کې د مزدک ایراني وژل شوي (۵۲۸) میلادي فروید (Signund Freud) سګنډ فراید متوفی (۱۹۳۹) عېسوي کال باکونین متوفي (۱۸۷۶) عېسوي کال او روسي لیکوال لیوټو لستوی متوفی (۱۹۱۵) عېسوي کال او د انارشېزم د مسلک نورو پیروانو او د صهیوني پروتوکولونو په لارښودنو عمل کوي، څو داسې یوه ټولنه منځته راوړي، چې کټه مټه د ځنګلي او وحشي حیواناتو په شان وي.

۱۷- **د کورني نظام په باره کې**: کمونستان د کارل مارکس یهودي له هدایت

سره سم کورنۍ اړیکې او د دغه نظام اصول او قواعد او بیا په خاصه توګه هغه قواعد چې د اسلام مقدس دین د کورني نظام لپاره وضع کړي دي، لکه د زوجینو یو پر بل حقوق، د اولاد حقوق، د مور و پلار حقوق، نکاح، طلاق، خلع، عدت او داسې نور یو هم نه قبلوي.

کمونستان وایي: د کورني نظام موجودیت او کورنۍ چې په هره بڼه وي، په دیني بڼه وي او که په کلتوري او عنعنوي بڼه وي، د بروژوازي ټولنې او نظام مهمې ستنې دي، چې په بقا او کروړلتیا کې مرسته ورسره کوي، له همدې امله کورنۍ او نظام یې باید منحل شي او پرځای یې انارشېزم، یعنې بې قید او شرط کمونستي نظام دود او نافذ کړای شي.

**۱۸- د قرآن کریم په باره کې:** کمونستان د اسلامي امت د انړو یعنې عوامو او بې خبره ځوانانو په اذهانو کې د قران کریم په اړوند خپل اسلام دښمنه دا طاغوتي تبلیغات کوي، چې قران کریم د عثمان رضي الله تعالی عنه د خلافت په زمانه کې جوړ کړای شوی دی او بیا له هغه څخه وروسته تر اتمې هجري پېړۍ پورې ډېر زیات تغیرات او بدلونونه په کې راغلي دي، چې له همدې امله د عمل کولو جوګه نه دی پاتې شوی او صرف د ملتونو د تخدیري وسیلې په توګه کار ورڅخه اخستلی شي.

**۱۹. د یهودیانو په هکله:** د یهودیانو په باره کې د کمونستانو دریځ او نظر دا دی، چې له کارل مارکس څخه نیولې تر وروستي فرد پورې وایي: د یهودیانو دوست د کمونستانو دوست دی او د یهودیانو دښمن د کمونستانو دښمن دی او قانوني سزا به ورکولی شي.

## د اوسني کمونېزم وتلي مخکښان

موجوده کمونېزم د يو کس د فکر او اندود محصول او طراوش نه دی؛ بلکې په مختلفو ادوارو کې د مختلفو ذواتو د نظرياتو هغه مجموعه ده، چې کارل مارکس يهودي په نولسمه مسيحي پېړۍ کې د انګلز په ملګرتيا راغونډه کړل او علمي بڼه يې ورکړه، چې دا دی يو څو د کمونېزم وتلي او برازنده مخکښان او د کمونستي نوښت بنسټ کېښودونکي ذکر کوم.

۱- **لائي کرګس**: نوموړی د يونان د سپارټا عسکري جنرال و، چې په (۹۴۵) قبل مسيح کې تېر شوی دی، لائي کرګس لومړی هغه کمونست و، چې د ځمکې د مساوي وېش بنسټ کېښودونکی و، هغه د نظامي کودتا په نتيجه کې په سپارټاکي کمونستي حکومت جوړ کړ او اعلان يې وکړ، چې ځمکه د ټولو مشترک ملکيت دی او بايد مساوي ووېشل شي، د سپارټا ځمکه يې په نهه دېرش (۳۹) زره برخو تقسيم کړه او بيا يې پر ټولو برابره ووېشله سربېره پر دې لائي کرګس د نارينه او ښځو ترمنځ جنسي ازادي هم ترويج کړه، د سپارټا پېغلو انجونو به له ځوانانو سره بربنډ ورزشونه کول، اجنبي ښځو به له اجنبي نارينه وو سره ددې لپاره زنا کوله، چې صحيح او شريف نسل ورڅخه واخلي، بازاري کار و بار او راکړه ورکړه هم يوازې د ښځو معمول و او له هغوی څخه زېږېدونکي اولاد به هم د حکومت او رياست ملکيت ګڼلی شو.[۱]

۲- **ډيموکريټ «ديمقراطيس»**: ډيموکريټ په (۳۷۰) عېسوي کال کې مړ شوی دی، نوموړی د روم د سمندر د ابيرا په ټاپو کې زېږېدلی و، نوموړی له الله تعالی څخه منکر و او ويل يې ټول موجودات نيچر يعنې طبيعت

---

۱- موسي سي کارل مارکس تهک: ۴۲-۴۳ مخونه.

پیدا کړي دي.[۱]
هیڅ یو شی له عدم څخه وجودته نه راځي او موجود شی نه معدوم کېږي، روح او ذهن هم مادي دی، ټول کاینات د اتومي پوټیو «ذراتو» له یو ځای کېدو څخه په ناځاپي توګه منځته راغلی دی، کارل مارکس او لینن ډیموکریټ ته د کمونېزم د پلار لقب ورکړی دی.[۲]

**۳- انکسي ماندر**: نوموړی په (۵۴۷) قبل مسیح کې مړ شوی دی، د یونان د مالاتوس ټاپو اوسېدونکی و، د هغه نظریه دا وه، چې انسان لومړی سمندري کب «ماهي» و، بیا وروسته کله چې وچې ته راغی، اوسنۍ انساني بڼه یې غوره کړه، له پیل څخه انسان په اوسني شکل او صورت نه و؛ بلکې د کب تکاملي بڼه ده.
ټول ژوي او حیوانات د لنده بل له بړاسونو «بخاراتو څخه پیدا شوي دي.»

**۴- هیراقلطیس**: نوموړی په (۴۷۰) قبل مسیح کې مړی شوی دی، دغه کمونست فیلسوف د ترکیې و، چې په هغه زمانه کې د ترکیې نوم ایفي سکس و، نومړی د شاهي کورنۍ غړی و، د دارا- اعظم معاصر و.
هیراقلطیس د ډیالیک ټیک ماټریالېزم لومړی موجد او مبتکر ګڼلی شي، د هغه د مادي د جدلیت نظریات داسې دي:
۱- د عالم ټول موجودات یو وحدت دی.
۲- دا دنیا د ټولو لپاره یو شان او برابره ده، دا دنیا نه خو انسان او کوم بل معبود پیدا کړې ده؛ بلکې پخپله ناڅاپه منځته راغلې ده.
۳- دا دنیا له اور څخه جوړه شوې ده، له اذل څخه موجوده وه او تل ترتله به وي، یعنې اذلي او ابدي ده.
۴- ته په یو سین کې دوه ځلې لامبلی نه شې؛ ځکه چې پر تا هره شیبه نوې

---

۱- J.B.Bury: Ahistory of Greece. P.۱۳۳ Newyark. ۱۹۴۴.
۲- نچریه: ۱۷ مخ، سید جمال الدین افغان.

او تازه اوبه تېرېږي.
۵- خلک نه پوهېږي، چې د ضدینو اجتماع څه شی دی، دا د کشش اهنګ دی، لکه لیندۍ او غشی.
۶- زموږ لپاره په تضاد کې ګټه ده.
۷- خیر اوشر دواړه یو دي.
۸- جدلیت عین انصاف دی، هر شی له جدلیت «جګړې» منځته راځي او په جدل سره فنا کېږي.
۹- د ژوند عمل مرګ دی.
۱۰- د پورته ختلو او ښکته په خوړ راتللو لاره ایکي یوه وي.
۱۱- د چمبې «دایرې» پیل او پای ایکي یو وي.
۱۲- موږ په یو سمندر کې ښکته کېږو هم او نه ښکته کېږو هم.
۱۳- موږ په ایکي یو وخت یو هم او نه یو هم.
۱۴- د انسان کړه وړه دده تقدیر دی.
لنډه دا چې هیراقلطیس د کایناتو په دوامي جهش «حرکت او بدلېدو رابدلېدو قایل وو او هغه ویلي دي: په هر شي کې دننه د هغه نفي یا ضد موجود دی، د هغه له مثبت او منفي جدل او تکرونو څخه یو نوی شی موجودېږي.
۵- د یوجانس کلبي: نوموړی فیلسوف د یونان دی، اصلي نوم یې دیوجانس دی، کلبي یې تخلص او لقب دی او د دغه لقب سبب یې دا ښودل شوی دی، چې نوموړی له سپیانو سره زیاته مینه لرله او همېشه به یې له ځان سره سپی ساته او دده پیروانو ته به یونانیانو کلبیون ویل او په همدغه لقب سره مشهور شو.
دیوجانس کلبي په (۴۱۲) قبل مسیح کې زېږېدلی او په (۳۲۳) قبل مسیح کې مړ شوی دی او د یونان د فلاسفه وو د متاخرینو سرخېل و.

**نظریات:**

دیوجانس کلبي په یوناني فلاسفه وو کې ځانګړې فلسفي نظریه لرله، چې خپلو شاګردانو ته یې په خپل ښوونځي کې تدریس کاوه، د دیوجانس نظریات د لائي کرګس د کمونستي نظریاتو فلسفي په بڼه او تکمله وه، چې عمده اصول یې دادي:

۱- انسان پخپل لومړي خلقت کې د خنزیر په شان له سر څخه تر پښو پورې په وېښتانو کې پټ و، چې بیا ورو ورو د تکاملي پړاوونو په تېرولو سره یې موجوده بڼه او صورت غوره کړ.

۲- انسان د پنځ او طبیعت په حکم له ټولو ژوو او حیواناتو ناقص او ټیټ دی او دا خبره غلطه ده، چې انسان اشرف المخلوقات دی او دا چې انسان جامع الکمالات او نوښتګر دی.

۳- د انسان په ذریعه چې کوم صنایع منځته راغلي دي، دا د انسان خپل ذهني کمالات او ایجادات نه دي؛ بلکې له نورو ژوو، حیواناتو څخه یې زده کړي دي او د هغوی په تقلید سره یې منځته راوړي دي، د بېلګې په توګه:

- د رختونو اوبدل یې له غنې «عنکبوت» زده کړي دي.
- د کورونو او تعمیراتو جوړول یې د شاتو له مچیو څخه زده کړي دي.
- د معبدونو جوړول یې له سپینو مېږتونو «نمل مورچه» څخه زده کړي دي.
- د غذایي موادو زېرمه کول یې له عامو مېږتونو څخه زده کړي دي، سندرې ویل او خوش اوازي یې له بلبل څخه زده کړې ده.

۴- د انسان ژوندون د وښو او زرغون شویو ګیاهونو په شان دی، چې له دې دنیا څخه پرته بله دنیا نه لري او هغه له دغه ژوندون څخه پرته بل ژوندون نه لري، له همدې امله انسان ته په کار دي، چې «د حلال او حرام او عباداتو کولو» په وجه ځان په ریاضت او کړاوونو اخته نه کړي او د طبیعت په خلاف خپل ځان له راز راز مزو، چړچو او لذتونو څخه محروم نه کړي او

ددې دنیا له خوندورو شیزونو څخه خوند واخلي او د هغه چا خبرې وانه وري، چې ځانونه یې له حلالو او حرامو، مناسب او غیر مناسب افسانوي او له خپل ځان څخه جوړ کړ، یو بې حقیقته خیالي جنتونو په زولنو کې ښکېل کړی دی او په ناحقه یې پر ځانونو بندیزونه لګولي دي.

۵- شرم او حیاء ښه خوی او ښه اخلاق د نفس له کمزوری څخه پیدا کېږي، هر انسان ته لازم دی، چې دغه کمزوري له ځان څخه لرې کړي او د اخلاقو زنځیرونه وشلوي، ترڅو د ټولو هغو چارو پر کولو کامیابي ترلاسه کړي، چې قبیح، مذموم او ناوړه یې ګڼي او ددغه ډول اعمالو په ډاګیزه توګه له کولو څخه شرم محسوس نه کړي.

۶- «المال مشاع بین الکل» مال او دولت د ټولو مشترک حق د یو یو یا څو افراد حق نه لري، چې دغه ټولنیز حق له ټولنې څخه وتروړي او خپل فردي ملکیت یې وګڼي.

دیوجانس کلبي په اتن کې ډېر پیروان وروزل او هغوی ته یې د پېژندلو لپاره د سور لباس اغوستلو حکم وکړ، په هر ځای کې به یې غونډې کولې او د اتن عوامو، بېوزلو او مزدورانو ته به یې د انقلاب دعوت ورکاوه، بزګرانو ته به یې ویل: چې له دوی سره ملګری شي، څو په اتن کې هم د سپارټا په څېر انقلاب راولي او ځمکې په مساوي توګه ووېشل شي، ښځې او مریونه ازادي ترلاسه کړي او اشرافي حکومت ختم کړای شي.

***

## سور انقلاب

د ديوجانس کلبي پيروانو د سپارټا د کمونستي حکومت په ملاتړ په اتن کې د کمونستي نظام د قيام لپاره پاڅون وکړ، سره بيرغونه يې په لاس کې د اتن په کوڅو او بازارونو کې يې لاريون وکړ، چې په نتيجه کې يې د اتن اشرافي حکومت نسکور کړ او خپل الحادي نظام يې پلی کړ او هماغه څه يې په اتن کې عملي کړل، چې په سپارټا کې کړای شوي و.

مګر په اتن کې د ديوجانس کلبي د شاګردانو حکومت زياته موده پاتې نه شو، لکه چې ويل ډيورانټ پخپل کتاب د بشري ملتونو د تمدن تاريخ کې ليکلي دي: د افلاطون له مرګ څخه نهه کلونه وروسته په اتن کې انقلاب راغی، چې سبب يې د اتن کمونستي خلک وو.

د هغوی په خلاف د افلاطون تره سيتياس او د افلاطون ماما کارميډيز وو.

دغو دواړو په اتن کې کمونستي حکومت نسکور کړ، يو نيم زر کمونستان يې قتل کړل او پنځه زره نور سپارټا ته وتښتېدل، چې له همدې امله د سپارټا کمونست حکومت پر اتن يرغل وکړ، څو دسيتياس اشرافي حکومت ختم کړي او بېرته کمونستي نظام قايم کړي او د اتن او سپارټا ترمنځ دغه کورنی جنګ اووه ويشت کلونه جاري وو، مګر بيا کمونستانو ونه شو کولی، چې په اتن کې کمونستي نظام راولي، که څه هم د اتن سوکاله ژوند يې تباه کړ، ښارونه يې ويجاړ کړل، د سرو زرو کانونه ي لوټ کړی شو، د زيتون ونې يې ختمې کړې، تجارتي سمندري بېړۍ يې وسوځولی شوي او بيا د مقدوني سکندر تر زمانې پورې اتن ښه ورځ ونه

لیده، ترديې چې په (۳۳۸) قبل مسیح کې سکندر قبضه پرې وکړه.[۱]

مطلب دا چې د دغو پنځو ذکر شويو دهري فلاسفه وو نظریات او ډیالیکتیکي ماتریالیستي «مادي» اصول اووه سوه کلونه وروسته بیا مزدک په ایران کې او له هغوی څخه دوه نیم زره کلونه وروسته کارل مارکس راغونډ کړل او بیا په شلمه پېړۍ کې لینن په روس کې، مارشال تیتو په یوګوسلاویه کې او ماو په چین کې عملي بڼه ورکړه او دغه اصول یې کارل مارکس ته منسوب کړل.

په داسې حال کې چې د کمونېزم او ډیالیکتیک ماتریالېزم اصول د پخوانیو ملحدو فلاسفه وو دي.

***

۱- نیچریه:۴۵مخ، سید جمال الدین افغان. د بشر ملتونو د تمدن تاریخ:۲۲۸ - ۴۱۴ مخونه، ویل ډیورانټ، موسي سي کارل مارکس تهک:۵۷- ۵۸مخونه، سبط حسن.

## سیاسي کړنلاره

دغه راز لکه څرنګه چې د کمونستانو نظریاتي اصول له پخوانیو دهري فلاسفه وو څخه په میراث پاتې دي او معجون مرکب یې ورڅخه تیار کړی دی، ددوی حکومتي او سیاسي جابرانه، وحشیانه او انسان دښمنه نظام اصول او کړنلاره هم یهودیانو، د انارشېزم، توتالیترېزم او دیکتاتوري د حکومتي اصولو له مجموعې څخه ورته جوړ کړي دي او بیا یې د پرولیتاریا دیکتاتوري نوم پرې کېښودلی دی، نه د لینن اختراع ده، نه د ماو او نه د ټیټو او د حکومت کولو د دغو وحشي نظامونو د مجموعي چې کمونستانو ایمان پرې راوړی دی اصول یې په لاندې ډول دي.

**۱- د یو ګوندي حکومت کولو اصل**: په دې معنا چې پرته د کمونست له غړو څخه بل څوک د حکومت د اوچتو پوستونو لکه ریاست، وزارت، والیتوب، سفارت، قاضي، ولسوال او داسې نورو حق نه لري او په کمونستي حکومت کې یوازې د کمونست ګوند غړي د اوچتو منصبونو حق لري.

**۲- د قدرت نه محدودیت**: دویم اصل یې دا دی، چې په کمونستي نظام کې کمونست لیډر هرڅه وغواړي هغه کولی شي، ټولواک وي، هیڅوک یې صلاحیت محدودولی نه شي.

**۳- د یوې کوچنۍ ډلې ګټې په نظر کې نیول**: درېیم اصل یې دا دی، چې د یوې کوچنۍ حاکمې کمونستي ډلې له ګټو څخه ملي ګټې قربانولی شي او یوازې د کمونست ګوند د غړو د ګټو ساتلو لپاره د دولت ټول وسایل استخدامول او له هغو څخه دفاع کول د کمونستانو دحکومت له خصوصیاتو څخه دي.

**۴- د ټولو چارو څارنه**: د هېواد پر ټولو سیاسي، ټولنیزو او اقتصادي چارو د کمونست حکومت شدیده څارنه او نظارت کول.

**۵- ترور او اختناق:** کمونست واکمن ګوند د خپلو مخالفینو د ځپلو په تکل په هیڅ وحشیانه او غیر انساني حربې استعمالولو صرفه نه کوي، لکه ترور «پټ وژنه»، اختناق، بندي کول، ځورول، له ټولو حیاتي وسایلو څخه محرومول، سیاسي، اقتصادي، فردي او اجتماعي، علمي او نورو حقوق ورڅخه ترورل دي، وېره او دار اچول د یوې سیاسي وسلې په توګه استعمالوي.

**۶- د کمونستي ایډیالوژۍ په زور تحمیلول:** کمونستي حکومت خپله کمونستي ایډیالوژي د ملت پر ټولو پرګنو، پاټکیو او توکونو د برچې په زور تحمیلوي.

فردي مالکیت او فردي ازادي ختموي او ټول ملت د څو محدودو کمونستانو مریې او غلام ګرځوي.

**۷- دماګوژي** (Demagogic): کمونست دولت او دده ملحد پرسونل د خپل حکومت د بقا لپاره عوامو ته غوړې او خوږې وعدې ورکوي او له دې امله چې د کمونېزم بنسټ په عوام فریبۍ، چل ول او درواغو ولاړ او جوړ شوی دی، د واکمنۍ په زمانه کې هم پر پوچو او بې اساسو درواغجنو شعارونو خلک وغولوي او خپلې طاغوتي واکمنۍ ته ادامه ورکړي.

کمونستان ټول د ډګماټېزم په رنځ اخته دي او په اوسني عصر کې هم د هیراقلطس پنځه زره کلنه پخوانۍ د ډیالیکتیک ماټریالېزم د فلسفې سندرې وايي.

**۸- د دیني شعایرو او قوانین ختمول:** لکه څرنګه چې د اوسني کمونېزم مخکښ کارل مارکس یهودي ویلي دي، چې زموږ دیالکتیک ماټریالېزم به په بشریت کې د الله تعالی د وجود تصور بېخي ختم کړي، له همدې امله کمونستي سیاسي نظام، چې په هره سیمه کې قایم کړای شي، له هر څه نه لومړی د دین، دیني شعایرو، شرعي او دیني قوانینو، حمیده اخلاقو په خلاف نه پخلا کېدونکي جنګ پیل کړي او د دین په نوم هرڅه له منځه

وړي؛ ځکه چې د کمونستانو تصور د متا فزیک خلاف دی.

**۹- د انتقاد مخنیوی:** د پرولیتاریه دیکتاتورۍ، انارشۍ او توتالیتریزم د نظام له اصولو څخه یو اصل دا دی، چې هیچا ته هم اجازه نه ورکوي، چې د کمونېزم پر نظام نیوکه وکړي او که څوک انتقاد پرې کوي، هغه بیا د ژوند کولو حق نه لري او داسې هم نه دی چې پر منتقد به مقدمه چلولی شي، یا خصوصي کسان مخالفینو ته د سزا ورکولو حق لري، بلکې هر کمونست چې هر څنګه وغواړي یو شخص یا اشخاص قتل کوي او پلمه یې دا وي، چې پر پرولیتاري او کارګري حکومت نیوکه کوي.

**۱۰- لا قانونیت:** د کمونېزم پیروان په حکومت کولو اصلا معتقد نه دي؛ ځکه کارل مارکس ویلي دي: حکومت داسې یوه پدیده ده، چې د اجتماعي تضاداتو په نتیجه کې منځته راغلې ده او کله چې ټولنیز تضادونه ختم شي، د حکومت قیام ته اړتیا نه پیدا کېږي.

همدا وجه ده، چې کمونستان د حکومت کولو لپاره قانون جوړول ضروري نه ګڼي؛ بلکې د هر کمونست او د ګوند د مشر هره خبره او فرمان قانون دی او دغه نظریه کمونستانو د اروپا د کمونستو انقلابي انارشستانو مخکښ باکونین (۱۸۷٦) عیسوی کال څخه اخیستي، چې هغه د روسی لیکوال تولستوي (۱۸۳۸-۱۹۱۵) عیسوي کال پرودون اوپاتکین په ملګرتیا منځته راوړې ده.

**۱۱- فحشا خپرول:** د کمونست حکومت یوولسم اصل په ټولنه کې د فحشا خپرول دي، څو په دې توګه وکولی شي اخلاقي نظام پای ته ورسوي او د جنسي غریزې د اطفاء لپاره دیني او ملي بندیزونه ختم کړای شي، د مېړه او ښځې روایات پای ته ورسولی شي؛ ځکه چې د ښځې اشتراک د کمونېزم له لومړنیو او مبرمو اصولو څخه دی، لکه چې کارل مارکس ویلي دي:

«مخکې له دې څخه چې مثبت کمونېزم منځته راشي، د منفي کمونېزم په نامه یوه مرحله هرو مرو رامنځته کېږي، په دغه مرحله کې لکه څرنګه چې

مالکیت ختمولی شي، د ښځې او مېړه په نوم د نارینه او ښځې ترمنځ روابط ازدواجي قوانین او دودونه هم ختمولی شي، څو مثبت کمونېزم ته لاره هواره شي.

کارل مارکس دغه نظریه له افلاطون څخه اخېستي ده؛ ځکه چې هغه پخپل کتاب ریپبلک کې ویلي وي: ددې لپاره چې له بشري ټولنې څخه مادي او معنوي زېښناک له منځه لاړ شي او ټولنیز طبقات ختم کړای شي، باید ښځې د ټولو نارینه وو ترمنځ شریکې کړای شي او ټول په برابره توګه ګټه ورڅخه اخلي؛ ځکه چې د کمونستي مفکورې دا یوه مبرمه تقاضا ده.[۱]

د همدغه اصل پر اساس کمونستان د خپل اقتدار په دوران کې د جنسي تعمیم او د فحشاء د خپرولو لپاره له هر ډول غیر اخلاقي او غیر انساني چارو څخه په ګټه اخېستلو سره د عفت، عصمت او حیا په منافي چارو اقدام کوي.

۱۲- شوینیزم: د کمونېزم د نظام د کړنلارې دولسم اصل د نورو ملتونو غلام کرځول او د خپل رژیم وسعت طلبي ده، چې ښکاره بېلګه یې د لینن او ستالین له پلوه د مرکزي اسیا پر پنځو اسلامي هېوادونو یرغل کول و، چې له (۱۹۱۷) عېسوي کال څخه تر (۱۹۵۶) عېسوي کال پورې یې په ظالمانه توګه د خپل کمونستي نظام د برچې په زور مستعمره وګرځول او د خپل شومې پراخې غوښتنې طاغوتي موخې د ترلاسه کولو لپاره د دغو پنځو اسلامي هېوادونو یوولس میلیونه بې ګناه او سوله دوست مسلمانان یې ووژل، دغه راز د چین ماویستي کمونېزم د چیني ترکستان د پنځو اسلامي هېوادونو د نیولو او مستعمره کولو لپاره پنځه میلیونه مسلمانان د خپل شوینستي هدف قرباني کول.

***

۱- کارل ماکرس د (۱۸۴۸) م د پاریس له یادداشتونو څخه.

# په ټوله نړۍ کې د کمونستانو شمېره

په (۱۹۸۲) عیسوي کال کې له (۱۴۰۲) هجري اوله (۱۳۶۱) هجري شمسي سره سم یوې امریکایي مجلې، چې نوم یې (Problems of Communism) دی، یعنې « په بشري نړۍ» کې د کمونېزم رېړې، دغې مجلې په مذکوره تاریخ کې پخپله خپره کړې ګڼه کې د جنګ، انقلاب او امن په باره کې پخپله خصوصي ګڼه کې په ټوله بشري نړۍ کې د کمونستانو شمېره لیکلې ده او د هغوی مجموعي شمېر یې خپور کړی دی او داسې یې لیکلي دي:

په ټوله نړۍ کې په اوس وخت کې د کمونستانو مجموعي شمېر شپږ اویا میلیونه اووه لکه څلور زره پنځه سوه شپږ څلوېښت دی، چې په دې توګه د بشري نړۍ د نفوسو په سلو کې دوه د کمونېزم اصلي غړي بڼودلی شوي دي او د کمونېزم په دوه نیم زره کلن تاریخ کې د دغې مفکورې له پیل څخه تر اوسه پورې د دعوت نتیجه ده، چې دا پخپله پردې دلالت کوي، چې بشري نړۍ او انسانیت له دغې طاغوتي مفکورې څخه کرکه کوي؛ ځکه چې د کمونېزم وحشي ایډیالوژۍ غیر فطري او د بشریت د فطرت په خلاف دی.

**هېوادونه:**

د پرابلمز اف کمونېزم نومې پورتنۍ مجلې لیکلي دي: د کمونستانو پورتنۍ شمېره د نړۍ په کوم ځانګړي ایکي یو هېواد کې نه ده؛ بلکې د دنیا په اته نوي مختلفو هېوادونو کې په کمونستي ښکاره او پټو جوړ کړای شویو ګوندونو کې غړیتوب لري، چې ددغو هېوادونو له جملې څخه په چین کې د کمونستانو شمېره زیاته ده؛ ځکه چې یوازې په چین کې د کمونستانو شمېره اته دېرش میلیونه ښودلی شوې ده او په روسیه کې د کمونستانو شمېره اوولس میلیونه ده، د ختیزې اروپا په اتو هېوادونو کې د کمونستانو مجموعي شمېر پنځلس میلیونه ښودلی شوی دی.

په داسې حال کې چې د اسیا په نورو هېوادونو کې، یعنې له چین او روس څخه پرته د کمونستانو شمېر څلور میلیونه څلوېښت لکه دی او په امریکا کې یې شمېر اووه لکه شپږ زره دی.

دغه راز په افریقایي هېوادونو او منځني ختیز کې د کمونستانو مجموعي شمېر پنځه ویشت زره دی، په داسې حال کې چې په فرانسه کې شپږ لکه کمونستان دي او په ایټالیه کې سل زره کمونستان دي او په برتانیه کې شل زره پنځوس سوه نهه نوي دي، چې د انګلستان د نفوس په سلو کې څلور تنه تشکیلوي او په پرتګال، اسپانیه، لوېدیز المان، فنلینډ، یونان او استرلیا کې د کمونستانو شمېر ښودلی شوی نه دی.[1]

مګر دغه شمېر اوس ډېر لږ شوی دی؛ ځکه چې بشریت ته د کمونېزم اصلي څېره معلومه شوې ده او د افغانستان د برمیال جهاد په واسطه په ډېرو هېوادو کې د هیراقلطیس د ډیالیکتیک ماټریالېزم زړه، ارتجاعي او ورسته پوچه مفکوره مسترد کړای شوه او ډېر اسلامي ملتونه د کمونېزم له استعماري جغ او ظالمانه زنځیرونو څخه خلاص شو او بل په تېرو اتلسو کلونو کې ډېر کمونستان مړه شول او نور اضافه والی په کې رانغی او دعوت یې په ټپه ودرېده. «الحمد لله».



۱- جسارت ورځپانه د سه شنبې د ۱۳۶۱هـ ش کال د حمل لسمه.

# انحرافي مذهب

د اسلامی امت د بې لارتيا په تکل د يهوديانو او مسيحيانو بله لويه وسيله انحرافي او له اسلام څخه مرتد شوي معاصر اديان او مذاهب دي، چې د هغو له جملې څخه بهائيت، قاديانيت، کمونېزم، ډيموکراسي، اغا خانيت، ذکري مذهب، چې مرکز يې په کويټه کې دی، براهوي دين چې مرکز يې په هند کې دی او د پاکستان په کراچۍ کې زيات پيروان لري او مشر يې برهان الدين نومېږي او پرويزيت چې له ټولو نبوي احاديثو څخه منکر دي او مشر يې د علي ګړ پوهنتون بنسټ کېښودونکی سيد احمد خان وو او وروستی مشر يې غلام احمد پروېز لاهوري دی، چې دغه مذاهب د خاصې يادونې وړ دي، چې ددې کتاب په دويم ټوک کې په تفصيل سره د کروړليو په دلايلو په ذکر کولو سره ما څېړنه کړې ده، چې ان شاء الله ډېر ژر به چاپ او د مينه والو لاسونو ته ورسولی شي.

***

# د مخنیوي تدابیر

د اسلامي امت پر اسلام مېنو ټولو پاتکیو نر وي او که ښځه، حکومت وي که رعیت، ځوان وي او که زوړ، زده کوونکی وي که استاذ، دهقان وي که سوداګر، غریب وي که مالداره، ښاري وي که کلیوال او که بل څوک د اسلامي امت او اسلام د دښمنانو د دغو ټولو اسلام دښمنو هلو ځلو او پلانونه شنډول فرض دي او پر ټولو لازم دی، چې په اسلامي امت کې د اسلام د دښمنانو د طاغوتي او کفري دعوت د مخنیوي لپاره لازم او اغېزمن تدابیر ونیسي، چې د بېلګې په توګه یې یو څو په لاندې ډول ذکر کوم:

**الف: سالمه روزنه:**

له هر څه نه لومړی د نوي نسل سالمه تربیه ده، چې مور و پلار، د جومات امام، د ښوونځي او مدرسې ښوونکي ته لازم دي، چې له اسلامي اصولو سره سمه تربیه ورکړي او د روزنې په هر پړاو کې د اسلامي روزنې ښودنه ورته وکړي، د نوي نسل اخلاق، ناسته ولاړه، خبرې اترې، خوب او بېداري، لباس او پوښاک د اسلام له ښودنو سره سم ورته زده کړي.

**ب: تعلیمي نصاب:**

اسلامي امت ته په کار دي، چې د ژوند په هره کچه کې تعلیمي نصاب پر اسلامي اصولو عیار کړي، تدریسي اصول اسلامي وګرځوي او د تعلیم په هر پړاو کې عقاید، د اسلامي شعایرو عظمت، د قران کریم او نبوي احادیثو زده کړه لازمي وګرځوي، د تاریخ مضمون هم اسلامي وګرځولی شي.

**ج: د ټولنې اصلاح:**

درېیم تدابیر د ټولنې اصلاح ده او هغه داسې، چې په اسلامي ټولنه کې د کفري تهذیب له منځه وړل او اسلامي تهذیب پلی او احیاء کړای شي، د فکري تهذیب زیانونه او د اسلامي تهذیب مزایاوې بیان کړای شي.

**د: ثقافت:**

څلورم تدبیر یې د اسلامي ثقافت ترویج دی او هغه داسې چې د اسلامي امت ټول ثقافتي وسایل لکه جراید، ورځپاڼې، مجلې، راډیو تلویزیون د اسلام له لارښوونو سره سم عیار او وچولولی شي، واهي او غیر اسلامي خپرونې چوږتلې له منځه یوړلی شي.

**هـ: اسلامي اخلاق:**

پنځم تدبیر یې دا دی، چې د ټولنې په ټولو پاټکیو کې اسلامي اخلاق لکه حیاء، زړه سوی په هرڅه کې اعتدال، قناعت، زغم، عفو، ورورولي، د شرعي حلالو او حرامو توپیر، پرخپل دین ثبات، ننګ او غیرت او له کفري نظریاتو شخه کرکه او نفرت کول ترویج کړای شي.

**و: فکري استعمار:**

د اسلامي امت په ټولو پاټکیو کې د دغه مضمون تدریس او تعمیم لازم دی، څو امت د یهودیانو، نصرانیانو او هندویېزم له اسلام دښمنه پلانونو څخه خبر کړای شي او د هغوی د اسلام ضد فعالیتونو د شنډولو او مخنیوي لپاره، په سیاسي، نظامي، تعلیمي، اجتماعي او اقتصادي، ثقافتي او تمدني ډګرونو کې شنډ او خنثی کړای شي.

د اسلامي ایډیالوژۍ د نړۍ وال کېدلو په هیله

ومن الله التوفیق

پای

Afghan University
Islamic Department

# THEOLOGICAL RAID



By

M.A. Zahidee "Ahmadzai"

Gold Medalist

Designed by: Ab. Hadi Asar




چاپ چارې:
د مسلم خپرندویه ټولنې تخنیکي څانګه
٠٧٧٦٠٠٦٤١٦-٠٧٠٦٢٦٢٤٦٣
muslim_pub@yahoo.com